


# د پولادي امیر تر سیوري لاندې


لیکوال:

فرانک. اې. مارتین

ژباړن:

محمد معصوم هوتک

# د پولادي امير
# تر سيوري
# لاندې



ليکوال:
فرانک. اې. مارتين

ژباړن
محمد معصوم هوتک

بسم الله الرحمن الرحیم




## کتاب پېژندنه:

د کتاب نوم :: د پولادي امیر تر سیوري لاندې
لیکوال :: فرانک.اې.مارتین
ژباړن :: محمد معصوم هوتک
خپرندوی ::د افغانستان د کلتوري ودې ټولنه - جرمني
د خپرېدو لړ :: ۵۷
چاپ شمېر :: ۱۰۰۰ ټوکه
چاپ نېټه :: ۲۰۰۴م/۱۳۸۳ل

چاپځی

دانش کتابتون، قصه خوانی بازار، پېښور
Tel/Fax:091-2564513/E-mail:danish2k2000@yahoo.com

# د خپرندويې ټولنې يادښت

"د پولادي امير تر سيوري لاندې" د فرانك مارتين هغه په زړه پورې اثر دى چې د افغانستان د معاصر تاريخ د يوې ډېرې مهمې دورې (د امير عبدالرحمن خان او امير حبيب الله خان د واکمنۍ د دورو ) په هکله ليکل شوى دى او سره له دې چې په افغانستان کې په هغه وخت کې د يو بهرني مهم کارکوونکي او ماهر د خاطراتو بڼه لري، خو د دې په څنګ کې داسې نويو او په زړه پورې موضوعګانو ته اشارې لري، چې تر اوسه يې په بل ځاى کې څرك نه دى لګېدلى او له همدې کبله د افغانستان د معاصر تاريخ څېړونکيو او مينه والو ته د لوستلو او استفادې وړ دى.

د دې تاريخي اثر پښتو ژباړن ښاغلى محمد معصوم هوتك، د پوره ستاينې او کوروداني وړ دى چې د غه کتاب يې په روانه او خوږه پښتو ژباړلى او د نورو ډېرو علمي کارونو او د پښتو ژبې د علمي کولو او شتمنېدو په لاره کې د خپلو نورو هلو ځلو په څنګ کې يې د اسې يو اثر پر ژباړه هم پوره ډېر وخت تېر کړى دى.

د افغانستان د کلتوري ودې ټولنه، ځان نېکمرغه ګڼي چې د غازي امان الله خان د واکمنۍ او د افغانستان د خپلواکۍ د پنځه اتيايمې کاليزې په مناسبت، د "غازي امان الله خان ـ د افغانستان د خپلواکۍ ستورى" په نوم د

علمي ـ تاريخي سيمينار په ويار دا او داسې يو شمېر نور خورا مهم تاريخي آثار خپروي او د ګران افغانستان د تاريخ مينه والو هېوادوالو ته يې وړاندې کوي. مـوږ د دې اثر د قـدرمـن ژباړن د لا زياتو بريا وو هـيله کوو او خپـل هېوادوال د دې اثر لوستلو ته رابولو.

په درناوي

د افغانستان د کلتوري ودې ټولنه
جرمني ـ د کولن ښار
د ۲۰۰۴ ع کال د مارچ دولسمه
د ۱۳۸۳ ل کال د کب ۲۲

# دژباړونکي يادښت

د ۱۸۸۷ م کال په سرکي اميرعبدالرحمان خان ( ۱۸۸۰ ـ ۱۹۰۱ م ) له يوه انګرېزمهندس سرتوماس مارټين ( ۱۸۵۰ ـ ۱۹۰۶ م ) Sir Thomas Martin سره په افغانستان کي دصنعتي کارونو پرسر موافقه وکړه . نوموړي مهندس خپل استازی سر سالټر پاين Sir Salter Pyneکابل ته ولېږه . سالټر پاين ، چي وروسته په کابل کي په مسټر پاين سره مشهور سو ، تر مسيو ژيروم فرانسوي وروسته لومړنی اروپايي دئ ، چي د افغان و انګليس تر جګړې وروسته په کابل کي استوګن سو ( ۱ ).

مسيو ژيروم د هغه سفرپه ترڅ کي له اميرعبدالرحمان خان سره وپېژندله ، چي نوموړي امير په ۱۸۸۴ م کال له لارډ ډفرين سره دکتلو په نيت راولپنډۍ ته کړی و. امير ورته بلنه ورکړه ، چي په کابل کي دصنعتي کارخانو په جوړولو کي مرسته وکړي . نوموړی مهندس کابل ته راغی او له خان سره يې د کريم بخش په نامه يو هندی ، چي دبرېښنا ماهر و ، راووست . مسيو ژيروم څه موده په کابل کي پاته سو او وروسته دامير په حکم د څينو سامانونو دپېرودلو له پاره هندوستان ته ولاړ . د يولك و څلوېښت زرو هندي روپيو په بيه يې سامانونه وپېرودل او کابل ته يې راولېږل. خودده دژوند و مرګ پته ورکه سوه او امير وايي ، چي له زيات تلاښ سره سره بياهم څرګنده نسوه ، نوموړی ژوندی دئ که مړ ؟ ( ۲ )

---

( ۱ ) مسټر پاين لومړی وار د ۱۸۸۷ م کال داپرېل په سر کي کابل ته ورسېد . څو مياشتي يې تېري کړې او بيرته انګلستان ته ولاړ . ( دافغانستان پېښليك دمسټر پاين راتګ د۱۸۸۹م کال په پېښو کي راوړی دئ ) نژدې يو نيم کال وروسته دوهم وار بيرته کابل ته راغی . په دې وار راتګ کي ورسره دغه کسان ملګري وو : جان الفريډ ګري John Alfred Gray. مسټر ستېوارټ Mr.Stewart او مسټر ميډليټن Mr.Myddleton . دوی درې واړه انګرېزان وو . جان الفريډ ګري دامير جراح و . خپل دسترګو ليدلی حال يې په يوه پنډ کتاب کي بيان کړی دئ . چيAt the court of the Amir نوميږي او په ۱۹۰۱ م کال په لندن کي چاپ سوی دئ .

( ۲ ) تاج التواريخ ـ دوهم ټوك ـ ۱۷ مخ ـ لاهور

سالتهر پاین د مسیو ژیروم فرانسوي لخوا رالېږل سوي ماشینونه په کار واچول . په هغو کي د ترکاڼی ، برمه کاری ، ولډنګ کاری ، اري اورندي د ستګاوي شاملي وې . ددې پرڅنګ یې د توماس مارټین دشرکت په نمایندګي یې یوه جبه خانه ، یوه ضرابخانه ( دسکو وهلو دستګاه ) او نوري دستګاوي او ورکشاپونه جوړ کړل ، چي وروسته بیا دغو ورکشاپونو یو شمېر عصري صنایع منځ ته راوړل . ویل کیږي چي نوموړي مستهر پاین د سر مارټیمر ډیورنډ له هیات سره چي د افغانستان د جنوبي او ختیځي پولي د ټاکلو لپاره په ۱۸۹۳ م کال کابل ته راغلی و ، ډېره مرسته وکړه او دافغانستان په امیر یې د انګریزي هیات خبري ومنلې. ( ۱ )

امیر عبدالرحمان خان له سر توماس مارټین سره ټینګي اړیکي لرلې اوامیر ورته دهغه هیات دسرېښتي کار په لاس ورکړ ، چي لندن ته دده د دوهم زوی شهزاده نصرالله خان دسفر ملګری و . شهزاده نصرالله خان د ۱۸۹۵ م کال په اپریل کي له کابله روان سو او د مي له څلېرویشتمي څخه بیا د دسمبر تر دریمي پوري په لندن کي و . شهزاده له انګلستان سره دمستقیمو ډیپلوماټیکو اړیکو د ټینګېدو په نیت دخپل پلار امیر عبدالرحمان خان لخوا هغه هیواد ته استول سوی و. امیر که څه هم پخپل دغه مقصد کي بریالی نسو ، خو له سرتوماس مارټین سره یې مناسبات بیاهم دوستانه پاته سول او دپوره باور وړ یې و . له شهزاده نصرالله خان سره کابل ته دراستنېدوپه وخت کي دنوموړي توماس مارټین کشر ورور فرانك مارټین Frank . A . Martin ملګری و( ۲ ) . داشخص زموږ دهمدي کتاب لیکوال دئ ، چي په کابل کي د سر سالتهر پاین پر ځای د کارخانو او ورکشاپونو د سرانجینیر په توګه ټاکل سوی و . فرانك مارټین د پاټریك ویلیام مارټین Patrick William Martin کشر زوی کېدی .

---

( ۱ ) فراهي ـ غبدالغفار ـ افغانستان د دیموکراسی او جمهوریت په کلونوکي ـ ۲۴ مخ ـ اول چاپ ـ امریکا ـ ۲۰۰۱ م

( ۲ ) سردار نصرالله خان دخپلو دغو لیدنو کتنو په باب رساله ولیکله او په کابل کي چاپ سوه . خو امیر عبدالرحمان خان د خینو مصلحتو له مخي نشر نکړه .

پلار یې دانګلستان دبرمنګهم ښار دځرمنو دصنایعو څښتن و . مشر ورور یې، سر توماس مارټین په ۱۸۷۴ م کې دهندوستان دکلکتې په ښار کې یو صنعتي شرکت پرانیست . دغه شرکت ته په ۱۸۸۹ م کال دبنګال داوسپنې او پولادو دکمپنۍ سرپرستي ور دغاړې سوه او تر هغه وروسته یې په هندوستان کې داورګاډو دپټلیو په غزولو کې درنه ونډه واخیستله . دغه راز یې دکلکتې ښاروخواکلیو او د اله آباد ، بنارس ، کانپور ، لکهنو ، اګرې او سـرینګر ( کشمیر ) ښارونو ته دچښلواوبو رسولو پروژې بشپړې کړې .

لکه وړاندې چې مو یادونه وکړه ، سرتوماس مارټین په هند کې دکابل دامیر،عبدالرحمان خان داستوګنې په وخت کې دنوموړي امیر پاملرنه ځانته واړوله او ورسره اشنا سو . ( ۱ ) ددغو دوستانه اړیکو اغېزه وه ، چې زموږ دهمدې کتاب مولف فرانک مارټین یې دکابل دورکشاپونو سرانجنیری ته ورساوه او په کابل کې بیا ددغه خیرک او متشبث انګرېز استوګنې ددغه کتاب ، چې ستاسي په واک کې دئ ، دلیکلو زمینه برابره کړه .

فرانک مارټین هم کابل ته دوه واره راغلی دئ . لومړی وارسفر یې په ۱۸۸۹ م کال کې و او دکابل دورکشاپو په څنګ کې یې داستوګنې له پاره ځای ورکړی و . ( ۲ ) دوهم وار ، لکه وړاندې چې مو ولوستل ، له شهزاده نصرالله خان سره یوځای راغی . دوهم وار یې دخدمت ټوله موده څه دپاسه اته کاله وه ، چې په دې موده کې دامیر عبدالرحمان خان دپاچهۍ شپږ کاله او دسراج الملت والدین امیرحبیب الله خان دواکمنۍ دسرکلونه شامل دي . فرانک مارټین دامیر عبدالرحمان خان په دربارکې دپوره عزت څښتن و . له درباریانو سره دومره زیات محشور و ، چې ان دهغوی د کورنیو مسایلو او خپل منځي دښمنیو او رقابتو په باب یې ښه پوره معلومات درلودل . نوموړی ګرځنده سړی و او دکابل ښاروخوا سیمې یې ټوله تر پښو کښلې وې . دعادي خلکو او د کوڅو و بازار په حالاتو ښه سم بلد و . په پاړسي او اردو یې خبرې کولای سوې

( ۱ ) جورج سمیت ـ د ډیکشنري آف نېشنل بیوګرافي ـ لومړی ټوک ـ ۵۷۸ مخ ـ اکسفورډ .

( ۲ ) وګورئ : دهمدې اثر لسم خبرکی .

. نوموړی دخپل مسلك انجنيري پر څنګ هنرمن سړی هم و. دكتاب په منځ كي ځيني تصويرونه ده په هنرمندو ګوتو انځور سوي دي .دده دكتاب تر لوستلو وروسته سړی ويلای سي ، چي فرانك دهغه وخت دكابل او دهغه ځای د دربار او درباريانو په معرفي كي په بشپړه توګه بريالی ليكوال ګڼل كيدلای سي . دده دكتاب ځيني برخي داسي ترخه حقايق دي ، چي لوستل به يې درانه تمام سي . خو ما يې په دې نيامت ژباړلو او خپرولو ته ونهنګل ، چي زموږ دهيواد اوسني حالت هم تر دوه ويشت كلني جګړې او ګډوډيو وروسته د امير عبدالرحمان خان تر واكمنۍ ورانديني شرايطو ته ورته دي . زموږ دهيواد اقتصادي و سياسي و ټولنيزه شيرازه دهماغه وخت په شان ورانه سوې ده اود هيواد اوسيدونكي د مطلقي خپلسرۍ او بې قانونۍ په حالت كي ژوند تيروي . زموږ راتلونكو مشرانو ته دغه شان وران ويجاړ هيواد ور دغاړې سوی دئ، لكه امير ته چي په غاړه كي ورلوېدلی و.ددغه اثر لوستل به له درنو لوستونكو سره مرسته وكړي ، چي دخپل ګران هيواد دتاريخ له يوې داسي مرحلې سره اشنا سي ، چي وګړي يې دنن په شان دخپلي بقا و فنا له ستونزو سره مخامخ وو .

دافغاني تاريخ په باب بهرنيانو په تيره بيا انګريزانو ښه ډېر آثار كښلي دي . له دغو آثارو سره له هغو كسانو پرته ، چي په لوېديځ كي ورته داستوګني زمينه برابره سوې ده ، نور افغاني څېړونكي په پوره اندازه اشنا نه دي . زما په فكر ددغو آثارو ژباړل له هغو كارونو څخه دي ، چي په بهر كي داستوګنو افغانانو پر غاړه پراته دي . ما دهمدې اړتيا له مخي په داسي حال كي دغه كار ته ملا وتړله ، چي نه له انګريزي څخه دترجمې اوږده سابقه لرم او نه پوره صلاحيت . خو بيا مي هم له ځان سره ټينګه كړې ده. چي كه پاك خدای توان او حوادثو فرصت راكړ ، له خپل وس سره سم به ددغو آثارو په ژباړلو كي برخه اخلم . داكتاب چي ستاسي په واك كي دئ ، دهمدې ژمني لومړی محصول دئ . دكتاب ژباړه مقيده نه ده او مطالب په آزاده توګه ژباړل سوي دي . لمنليكونه يې ما پر زيات كړي دي . دترجمې په ځينو برخوكي زما مشر زوی ذكي هوتك مرسته كړې ده او دټايپ ستونزه يې ګران سعيد لودين پر ځان ومنله . دواړو ته د نېكمرغه ژوند دوعا كوم . زه دغه راز د پاك خدای ( ج ) له دربــــاره څخه

غواړم ، چې افغانانو ته دخپل کور بیرته ودانولو ، د استقلال او خپلواکۍ دساتلو په لارکې یې توفیق ورکړي. آمین .

محمدمعصوم هوتک

ټورنټو ـ کاناډا

دمارچ دوولسمه ـ ۲۰۰۲ م کال

# لومړی څپرکی

**د مارش حکم ـ سرتېري او ساتونکي ـ پربوده وو ( څارويو ) باندي دمالونوچلولوچلند ـ دکمپونوبيان ـ مارشونه (مزلونه ) ـ په کليو اوښاروکي د سردارنصرالله هرکلی ـ د ښېتو بيان ـ کندهار ـ امير او هغه ملا چي دکندهار بست ته يې پناه وړې وه .**

---

د ۱۸۹۵ ع کال په دوبي کي افغان شهزاده نصرالله ( ۱ ) د درو څلورو مياشتوله پاره دانګرېزي حکومت مېلمه و او مخکي له دې چي دسمندرله لاري کراچي اوبيا په اورګاډي کي چمن ته چي افغان پولي ته نژدې دبلوچستان کوټې پر لور د اورګاډي تم ځای دئ ، ولاړ سي ، د بېرته ستنېدو سفر يې په پاريس ، روم او ناپلس کي په لنډ تم کېدو سره نور هم خوندور سو .

شهزاده ته د اورګاډي په سټېشن کي دکوټې دسيمه ييزآمرجنرال سربرون General Sir Brown اونوروافسرانواوسرکاري مشرانوله خواهرکلی ووېل سو ، چي وروسته بياد پولي په اوردوکي خپل کمپ ته ولاړ ، په کمپ کي هغه شمېرعسکراودشهزاده ملګري ورسره يوځای سول چي دامېرله خوادده دسفردملګرتياله پاره رااستول سوي وو ، زه (فرانک مارټين ـ م . هـ ) له شهزاده سره (په انګلستان کي يې دی په دغه نامه باله ) له هغه وخته ملګری سوی وم چي له لندنه رارهي سو اودغه رازدکندهارله لاري ترکابله پوري داس په سپرلي ورسره وم اوکله چي يې په دابله ورځ وختي له کمپه حرکت کاوه ماورته يوه دملازمينوټولی جوړه کړه . داکتوبرپای نژدې کېدونکی اوفصل پرتماميدوچي موږ سفرپيل کړ ـ خودغه ورځ ډېره توده وه اوڅومره چي وړاندي تلو ، هومره پسې تودېدله. له شهزاده سره دسپرو ملګرواسانوددړو وريځي جوړي کړي وې اودې کارنورهم تموښن(sultry) جوړکړ اوسفريې ستومانوونکی کړ .

دښت ډېروچ ښکارېدی . شاوخوايې د ريګوغټې اوبې وښوميدانونه اودلته وهلته پکښې داغزيوبوټي وو ـ ځای ځای به غټې ډبري هم له مخکي راوتلي وې اولېرڅه لېري يې لوڅي شاګی اوډېرين غرونه پراته وو . د لمرسوځنده وړانګوله ريګواوډبروڅخه پخپله دلمرتبی جوړه کړې وه . له چمن څخه تـــــر کندهارپوري

سړک نسته خوله پخواځخه دکاروانودتېرېدلوله امله پرمخکه باندي لاري جوړي سوي دي چي پرځنده يې خاى خاى داسانواوښانوسپين هډوکي پراته وو . خوبياهم شهزاده اوملازمينو يې په خوشالى سره لاري وهلې خکه دوی د يوه بهرني سفرله ټولوخطرونوځخه روغ رمټ راستانه سوي وو اوکابل ته په رسېدو سره يې خپلو دوستانوته دعجايبوسيمواوعجايبودودونو او رواجونو ډېري کيسې لرلې.دغه رازيې له دغوسيموځخه له ځانوسره داسي توليدات راوړي وو چي هم سوغاتونه کېدلاى سواى اوهم دسوداګرۍ اوډېري ګټي مالونه .د شهزاده په مخکي داوزبکودسپروسرتېرو(Lancers) دوه قطاره يوله بل ځخه لرشانته ليري روان وو اولږ ځه ورروسته يې په دواړوخواووکي په اوزبکوپسې د شاهي رسالې د ساتونکودوه قطاره وو. دوی توري اوکارابين توپك درلودل اوترنوروېې جامې هم ښې وې اوپه هغه پسې بيا سپاره عسکروو‌چي شکېدلي جامې يې اغوستي وې اووحشي ځېرې يې لرلې ، البته دومره وحشي نه لکه اوزبك چي دپسود پوستکوخولی(busbies) يې پر سر، وربښتان يې پرمخونوراايله کړي اوځېرې يې لا ور وحشي کړي وې . دسپروسرتېرودوه قطاره ښايي له پوځي نظره سم نه وي خوسره له دې هم د اړتيا په وخت کي ډېرګټوروښکارېدل.

ترټولوړاندي يوسړی روان و. دآس پرځين (زين ) ښاندي محلي ډول ورته پروت اوداسانوډېښنوله برغ سره سم يې په پرله پسې توګه ډباوه . دادود (رواج ) د شاهي کسانود تېرېدلواورسېدلو ښکارندويي کوي.

دشهزاده اړخ ته يوسړي په منډه ځغستل په لاس کي يې سترزرين سايوان(چتر ) وچي دلمرد سوځنده وړانګوځخه په نيول کېدله اوشاوخوايې پلي ساتونکي وو ترهغولږځه وړاندي بيانورپلي ساتونکي له ( اضافي ) اسانوسره روان وو. دسپروخدمتګارانوشاته دخانانواوقومي مشرانوهغه ډله وه چي له شهزاده سره ملګري وو. زه هم ددوی په منځ کي وم اوپوهېدلم چي ددوړو په اوريځوکي سپرلوځه رازښکاري . مځ له خولوډك اودوړي باندي ځيشتې پرتې ـ دومره غليظي دوړي چي اسانوپکي لارنه سواى ليدلاى اودم وګړی به يې پرډبروباندي نوکان ځوړل.

دلاري په اوږدوکي ترموروړاندي اووروسته پـــــه يوځه ليري واټن کي

داوښانو اوپابو ګانو لیکي رواني وې پر هـر یوه باندي له دوړو ډك بارونه باراو جلوونه یې د پلیو خلکو په لاس کي وو. په بارونو کي ددغه کوچني لښکر خېمې اوسامانونه وو. د بوده وو ( ښاروېو ) له هري لیکي سره یوسپورعسکر (سوار ) رهي و. دده وظیفه پرلاري باندي دبېښا یه ښنډ ېدو مخنیوی اوراتلونکي کمپ ته د بارونو سلامت رسېدل وه . زیاتره بارکښ ښاروي دمالونودوړولو راوړلو د سوداګر (کریه کښانو ) ملکیت واودا هغه کسان دي چي موقع ورته برابره سي ترکوچني ګټې لاهم نه تېرېږي.

زه د پرخوبښ سوم کله چي مـي واورېدل ، شـهزاده تـرغـرمـې وروستـه دچایوچښلوله پاره دتم کېدوامروکړ، ښکه خوله مي دګرمۍ اودوړوله امله سره نښتې وه اوبدبوی یې تېږ . مورېتول دیوې کوچني شاګۍ(غونډۍ) ښنګ ته له اسونوراکښته سوواودچایوترد مېدلوپوري خدمتګاران اوعسکرهماغه شان سپاره ولاړوو، ښکه دوی هغه کسان دي چي ستړیانه پېژني . دچایوترچښلووروسته، شهزاده ماته سګریټ تعارف کړل اوزه بایدووایم چي نوموړي دسفرپه ترڅ کي پرماډېره پاملرنه کوله اوراباندي مهربان و. ده خپلوګنډونکو ته امروکړچي زماله پاره پوست لرونکي بالاپوښونه (پوستینان ) جوړکړي.ده ویل چي انګریزي کوټونه دهغې سختي یخنۍ له پاره مناسب نه دي،چي مونږته په راتلونکي کي ګوري اوما دده ددغي پرخاې پاملرني له امله مننه ترې وکړه . شهزاده پخپل هیوادکي هغه رازکورټ نه ولکه په لندن کي چي افغان شهزاده و. دلته دی یوبېل شخصیت و.

له یوې لنډي دمې وروسته مارش بیاپیل سواودکمپ تررسېدوپوري یې دوام وکړ ـ ماپښینۍ سپرلوډېرخوندوره وه ښکه ګرمۍ لږاولارېرکلکه مخکه باندي وه، دوړه بیخي نه لیدل کېدله.

دټولوهغوکلیواوسېډونکي چي زموږپه لارکي وو، ددټوالونومخي ته راغونډسوي وو چي شهزاده اوملګري یې وګوري. دکلي مشران ترنوروبخکي ولاړوو او کله چي به شهزاده ورنږدې سودوی به خپلي بګړۍ په دواړولاسوکي ونیولې اوده ته به یې دښه سفردوعاوکړه . دزیاتروکلیوپه مخ کي به یې دلاري پردواړوخواووارډې لګړي په مخکه کي ښخي کړي وې اودلګړوڅوکي به دلاري

په پساره په یوه تناوسره تړل سوي وې، دتناوپه مخ کي به یې په ټوکرانوکي پېچل سوی قرآن مجید خوړند کړی و. شهزاده اوملګري یې چي به ترقرآن مجید لاندي تېرېدل ـ هغ ' به یې په ښي لاسومسح کړاوبیابه یې هغه لاس خپلو سترګو، خولو اوخګرونو (ټټر ) ته وړړ اویوه لنډه دوعابه یې کوله . تردې وروسته به شهزاده دکلمې له مشرانوسره تم سو، خبري به یې ورسره وکړې اوترهغه وروسته به یې بیاخپله لاروهله . زمورسره دوې دري باجه خانې ملګري وې اوهرکمپ ته به یې دشهزاده په رسېدوسره لویه سلامي (Royal Salute) په داسې حال کي ږغول،چي دی به یې مخ ته تېرېدی . کله چي به یې له کمپه حرکت کاوه، همدغه عمل به تکرارېدی. په هرکمپ کي به دغه رازیوه لویه ماښامنی(شامیانه ) برابرېدله اوهلته به نوده دربارکاوه اودشاوخواسیمي ټول مشران به په دې نیامت پکښې ناست وو چي یابه یې دشهزاده سلام کاوه اویابه یې هغوخلکوته دخوراکي موادو او وښوبرابرولوله بابته پیسې ترلاسه کولې،چي دشهزاده دورتګ له پاره به یې هرڅه مخکي له مخکي تهیه کول.

په زیاتروتم ځایونوکي به هغه کسان راغونډسوي وو،چي خپلوان اودوستان یې انګلستان ته تللي او دوی یې دکتلوغوښتونکي وو. افغانان واردواره په چمن کي په خپلودوستانوخبرسول. دوی له خپل دوست سره په لومړی کتنه کي هغه دري واره په غېږکي نیسي ، یووارښې خواته بیاکیڼ ته اودوهم واربیاښی ته ، اووروسته نودپوښتنواوځوابونواوږده لړۍ پیل کیږي. تررږغېږ وروسته چي څوک د دوی مینه ناکي پوښتني یا ژړاوي چي معمولاًدخپلوانودمرګ د خبر د اورېدلو یا ددوستانواوخپلوانودلیدلودخوښۍ له امله اوري، ډېره اغېزه پرکوي اوپرې متاثرکېږي.

دچمن داورګادۍپه تم ځای کي مې دشهزاده یومامور (کوټوال ) په داسې حال کي په سترګه سوچي له اورګاډۍ څخه یې دمالونواوبارونودراکښته کولواوخلاصولوسرپرستي کوله. دی دانګلستان په سفرکي له شهزاده سره مل و. کوټوال پر صندوخانوناست واوخوراخواشیني ښکارېدی . ده په اردوژبه ښه سمي خبري کولای سوې اومایې دستونزي پوښتنه څني وکړه . له خولې یې اسوېلی ویوست اووې ویل همدااوس یې واورېدل،چي وررور یې پـــه کابل کي بندي

سوی دئ . اوس دده دښمنان، پدرلعنتان دده دوررله زوال څخه گټه اخلي او غواړي دامیرذهن دده په وړاندي مسموم کړي. ده ته داهم ویل سوي چي که کابل ته ستون سي امیربه یې غالبا ووژني . ده وویل چي دبرچورت یې وهلی اودي نتیجې ته رسېدلی دئ چي ښه به دا وي ، بیرته کراچي ته ولاړسي او هورې له خینودوستانوسره ترهغوپاته سي ترڅوکولای سي بیرته خوندي هیواد ته ستون سي. ده له ماڅخه وغوښتل چي په بل اورگاډي کي ور سره په بیرته تگ کي مرسته وکړم .

زماله خوابه دکابل دیوه لوی ماموربه تېښته کي مرسته کول امیرته یوه بده پیلامه وي خوداهم سخته ده چي له یوچاسره دي دمرگ په تېښته کي مرسته ونه سي. په داسي حال کي چي ویل مي زه به فکرپکښې ووهم اوداورگاډوبه باب به پوښتنې وکړم ، له ده څخه رهي سوم .حیران دې ته وم چي څرنگه داستونزه په سمه توگه اواره کړم . دامي معلومه کړه چي ترماښام دمخه به بل اورگاډی نه وي . مور په دغه وخت کي افغان پولي ته نزدې خپل کمپ ته نزدې سوي وو، څرنگه چي په دې برخه کي دسملاسي گام اخیستلواړتیانه وه، ځکه مي نو سمدلاسه څه ونکړل خو کار مي په پام کي ونیو .

دغرمې دډوډۍ پروخت هغه انگریزي ژبی راته راغی چي دسورسات اوبه چمن کي دشهزاده دهرکلي په ارتباط دنوروچارومسئول ؤ،راته وې ویل چي کوتوال دخپلي تېښتي په باب ده ته هم مراجعه کړې ده او زیاته یې کړه چي دی بایدڅه وکړي؟ ماته څرگنده وه چي زموږله وسه سمدلاسه څه پوره نه وه. ځکه مي نوپرده ټینگاروکړچي هیڅوك بایدپوه نه سي چي موږ ددغه سړي په تېښته کي شریك یو او ده ته مي هغه بدتاثروښودچي پرامیرباندي به وسي . حکومت به بې له شکه معلومات وکړي اوموږبه ملامت سو. دی ولاړخوبیرته له کوتوال سره راغی، له هغه سره یې په فارسي ژبه، چي زه یولږڅه په پوهېدم ، اوږدې خبري وکړې . زمایقین دئ چي دی یې هڅاوه په هماغه ورځ افغان کمپ ته ورسره ولاړسي اوبه شپه کي یاپه دابله ورځ بیرته راوگرزي اوخپل ځانوربه وربربېږدي چي په کراچي کي ورسره وگوري . په هرصورت ، کله چي زه په هغه مازیگر د افغان کمپ پرلور وخوځېدم، کوتوال راسره و او مـــوږ کمپ ته یوځای



شهزاده له کندهاره کابل ته دتللو په حال کي ( دمولف رسامي )

ورسېدواوپه دابله ورخ چي مود کندهارپرلورتګ ته څانونه سمبالول، کوتوال دشهزاده دملازمينوپه ډله کي و.

وروسته له هغه، که څه هم شهزاده ته له کندهاره حکم وسوچي کوتوال به کابل ته لاس تړلی ورولي، خوده له اميرسره سوله وکړه اودڅه وخت له پاره يې له خپلي څوکۍ څخه ښه پوره خوندواخيست، خلك به يې په وحشيانه تو‌ګه شکنجه کول اوو‌ژل اودبډواوشوکماری له لاري يې خپله پانګه زياتوله.اته کاله وروسته چي مړکېدلی ، څولکه روپۍ يې درلودې.دمرګ په ورخ يې ماواورېدل چي ختي عسکرله دې امله اندېښمن وو،چي دده روح به په هماغه شپه په دوزخ کي مکوټ سوی وي . ماته دزرګونودغه رازاندېښنواوتسليت ناموچورت را ولوېد او په دې هم پوه ومه چي ماله ده سره څه وکړل؟ عسکروچي دده دبرخليك په باب اټکل کاوه، هغه ناشوني نه ښکارېدی .

دافغانانوله عقايدوسره سم دانسان له روح سره دښخېدوپه هماغه لومړۍ ورخ حساب وکتاب کيږي له دې امله به نوعسکروده دلومړۍ شپې حساب وکتاب په باب خپله خوښي څرګنده کړې وي.

دهروارتم کېدلوکمپ دېرپرتمين ښکارېدی اوديوې ستري غونډي په شان ايسېدی . څکه دشهزاده اودهغه دملازمينواړخو ته عسکرو، د بارونو او څارويو مسئولينو، چي هغه پخپله يوه لويه ډله وه او يوازي داوښانومسئولين يې پنځه سوه کسه کېدل، دغه رازخېمو، اسانواواوښانويوه پراخه سيمه نيولې وه. ترماښام وروسته هرځای اورونه بل وو اوخلکوخپل خواړه پخول هراوړتاکلې اندازه سري لرل چي عموما دلوښوپه برابرولواودپخلي په تنظيمولوبوخت وو. خيني نوروبه شاوخواڅنګونه اچولي يابه ولاړ وو او دهغي شيبې په انتظاربه وو، چي کله به هرڅه تيارسي اودوی به نورڅملي.

په کمپ کي دېرشخول نه و او په زوره چيغي خوکورټ نه وې، څکه افغاني ډله دنړۍ ترټولومنظمه اوخاموشه ډله ده ، خودافسرانوداوامرورغونه دغه رازله نابلده اسونوسره دنوراسونودجنګ شيشنی (هره شپه به ورك آس ليدل کېدی ) د اوښانو بړهار، په پښتو ژبه دګزمه عسکرو د خبرداري اوازونـــه او د وخت د ،

اعلامولو له امله د نغارو ږغونه اوريدل کېدل. زماپه ياددي يوه شپه، اصلا يو سهار په خړه دنغاروساتونکی خوب وړی و اوناځاپه راويښ سو. ژرژرېې پرله پسې شپاړس واره نغاره وډبوله ، په داسي حال کي چي هغه صرف دشپې يوه نيمه بجه وه! زه نه سم ويلای چي دابه دشوګيرئ نتيجه وه اوکه به هغه سړي فکرکاوه چي يوڅه زيات فعاليت به دده زياته بيداري وښيي.

موږکندهارته په څلورو ورځو ورسېدو، يوازي يوه ورځ موښه اوږد مزل وکړ. نوري ورځي موددوی په اصطلاح "شاهي مارش" کاوه چي د "کاروان له مارش" سره بيخي ډېرتوپيرلري، شاهي مارشونه دخلکواونوروشيانودشمېرپه لحاظ لنډ مزلونه وي.له يوه کمپ څخه تربل پوري واټن معمولا ديوڅوساعتوسفردئ . اسان په سفرکي په يوه متحده الشکله سرعت سره ځي، چي دڅټك تګ اوډوبلي (Jog trot) ترمنځ وي .دوی همداسي روزل سوي دي. په ځيني حالاتوکي کولای سي په يوه ورځ کي پنځوس شپېته ميله لاروهي - که څه هم رواجي تګ داسي نه وي اوبې له ضرورته يې په دومره چټکي نه ځغلوي . که دلاري غرونه، دمنظم سړك نشته والی اوداسانواندازه (په منځنی توګه ديارلس ترڅورلسوپوري ) په پام کي ونيول سي ، نودايوه مناسب واټن دئ چي موږ وواهه.

په افغانسان کي دوی دواټن (فاصلې ) يوواحدلري چي(کروه ) يې بولي او ويل کيږي چي يونيم انګريزي ميل سره برابردئ .خوڅرنګه چي د «ګز» يعني (Yard) ټاکلي شمېرنسته څکه نوله فردي سليقې سره سم بېلابېل اوږدوالي ورته ټاکل کيږي. ماته يووخت دشهزاده پرلاس داميرفرمان راغی چي په هغه کي يې په ګزه اوکروه سره دسړکونودفاصلې ښوولوله پاره ديوې ګرځنده وسيلې دجوړولوغوښتنه کړې وه اوماشهزاده ته وليکل چي په کروه کي دګزونودشمېرپه باب معلومات راکړي چي زه بيا دهغه له مخي لازم څرخ ترتيب کړم. ده ځواب راکړ،چي معلومات يې وکړل اوبېلابېلوخلکودومره متفاوت شمېرورکړی دئ، چي دی مجبور سواميرته ديوې معياري اندازې دټاکلوپه باب ليك ولېږي خوپه دې ترڅ کي اميرناروغ سواوموضوع همداسي معلقه پاته سوه اوهماغه ناانډولي تراوسه لاسته . اوسني اميرفاصلې په يارډ اوميل سره اندازه کوي.

یووخت له کابله پېښورته تلم له اوو، اتوساعتوسپارلی ورروسته مي له خپل ملګري(سوار ) څخه دهغه کلي دفاصلې پوښتنه وکړه چي زموږخيال و، پکښي واړوو. څوک چي پرآس څوساعته مزل وکړي معمولا یې تلوسه وي چي پوه سي څومره به لاوړاندي خي ـ ده راته وویل یویادوه کروه وړاندي دئ خوموږله درې ساعته مزله ورروسته کمپ ته ورسېدو. له دې ورروسته به مي نودواړن پوښتنه دساعتوپه حساب کوله اوهغه ډېره مایوسوونکې نه وه.

کندهارته چي لاڅومیله پاته وه، دشهزاده مخي ته دسيمي عمومي آمراومهم افسران چي یوڅه لیري لاله اسونوراکښته سوي وو، سرتورسرونه راغلل. کله چي ورته راورسېدل، پښې یې ورمچ کړې اوورروسته یې دده لاس پخپلولاسوکي ونيو، پرسترګويې کښېښوا‌ومچ یې هم کړ. داخپل مشرته دهرکلي ویلو او وفادارۍ څرګندولوافغاني دوددئ. ښارته نزدې دقشلې عسکرله توپخانې سره یوځای لیکه ولاړوو. اوورروسته یې په داسي حال کي چي شهزاده تېرېدی، دډزوشاهي سلامي وکړه. وربسې شهزاده عسکرمعاینه کړل اویوڅوخبري یې هم وکړې چي دټولوافسرانواومامورینوله خواورسره تکرارسوې، شهزاده چي مسجدته دلمانځه له پاره روان سو، زه ښارته ولاړم چي دځان له پاره ټاکل سوې مېنه(کور ) پیداکړم.

دکندهاردلاري سړک داسي نه دئ لکه څوک چي له هندوستانه کابل ته خي. له پېښور څخه دخیبردلاري سړک یوسیده خط السیردئ چي په پوځي مارش باندي له لږڅوري سره نزدې اته ورځي نیسي، په داسي حال کي چي دکندهاروغزني لاردرې څلورااونۍ وخت غواړي. نه دارابه لرونکوګاډوله پاره سړک سته او نه اورګاډی. څوک بایددآس په سپارلي سفروکړي یادتخت روان په شان یول ډول چوکۍ (کجاوه ) کي، چي ددوواسانوپه شاپوري تړل سوې وي. افغاني واکمنان له اورګاډي سره سخت تعصب لري. که یوڅوک دغه رازیوه پلان یا نقشې ته اشاره وکړي، سمدلاسه پرې بدګومانه کیږي. په داسي حال کي چي داورګاډي یوه خانګړې نقشه به هیواد شتمن اونېکمرغه کړي اواوسنی بېوزلي او بدمرغي به پای ته ورسوي.

شهزاده چي له کابله انګلستان ته تلی، امیرمرحوم د پېښورله لاري ولېږی

اودراستنبدلوانتظام يې دکندهارله لاري تړل سوی و دا ددې له پاره چي دی بايدخومره چي ممکنه وي، خپل هيواد ووينې . هغه وخت چي دی له روسيې څخه راغی ، نهء کلن هلك و او ترکابل دباندي څوميله زيات نه و وتلی ، ځکه اميردخپلي کورنۍ غړوته اجازه نه ورکوله چي بې له ضرورته دي سفروکړي.
اميردغه رازغوښتل چي شهزاده له سفرڅخه دراستنېدلوپروخت په کندهارکي تم سي اودهغوموضوعگانوپه باب معلومات راغونډکړي چي دحکومت داندېښنې وړوو. داځکه چي له ډېروکلونوراهيسي خلکودواليانوله ظلمه اودعدالت له نشته والي څخه شکايت کاوه.
ماته په کندهارکي ويل سوي وچي اميرپه پخوانيو واليانوباندي دوظيفې دتسليمولوپه وخت کي ليکلی سند لاسليك کړئ وچي که دوی بډي واخلي ياپرېږدای يابې وزلي باندي ظلم وکړي، په داربه سي اوداډېره مهمه خبره وه چي درې څلورورستني واليان ټول په دارسوي وو. هغه شخص چي دشهزاده دورتگ په وخت کي والي و، ناڅاپه ناروغه اوڅوورځي ورروسته مړسو. هيچا دانه غوښتل چي له ناوړه پېښو څخه دتېښتي له امله دي خان بربادکړي .
کندهاردښنوکروندوپه منځ کي پروت دئ اوکه يې داوبولگولواوکرني کارپراخ سي ، چي بايدوسي، نورهم شين کېدلای سي. خوکله چي زه هورې وم دکرني علايم لږښکارېدل که څه هم په رودوکي پرېمانه اوبه بهېدلې. په افغانستان کي دبارانودلږوالي په پام کي نيولوسره دمځکودخړوبولوله پاره داوبولگولوانتظام ضروري دئ . په ځينوحالاتوکي دهغومځکوله پاره چي غواړي خړوبه يې کړي . څاهان دنريوکانالو (چود ) له لاري سره وصل سوي وي . له ورروستي ځای څخه اوبه دمځکي سطحي ته په ايراني څرخونوباندي راخېژي. دايوستونزمن جريان دئ ، ځکه نري کانالونوته نه شيشکان وهل سوي اونه په بل رازسره محافظه سوي وي اواوبه زياتره وخت دمځکي د بنوييدلو يا ګروبېدلو له امله بنديږي اوترڅوچي کانالونه ترميميږي، حاصلات بياتباه سوي وي.
زماڅخه وغوښتل سوه داوبولگولوپوه داسي طرحه جوړه کړم چي دهغې په واسطه شاوخواټوله مځکه دکرني وړ سي اوخپله نظريه ورته وړاندي کړم . سره

له دې چي داکارکېدونکي وخودخزانې زياتي پيسې پرې لګېدلې، خکه نو موضوع پسې پاته سوه .

ښار (مراديې کندهاردئ . ژباړونکی ) دېرستړنه دئ اوپوجګ دېوال پرراتاوسوی چي دزياترونورروودانيوپه ګډون له ختهواوډبرويالـه ختهواوموخښتوڅخه(sundried brick) څخه جوړسوی دئ . ټول ښارپه ښځي وران حالت کي دئ اود وروستيوشلوکالو په جګړوکي خوقسماځوواره نړېدلی اوبياودان سوی نه دئ چي سړي ته ددغه ځاى داوسېدونکودډېري بې وزلى فکرورپيداکوي . سره له دې چي ځيني ښه کورونه اومسجدونه په پخو خښتو او اهاکوجوړسوي دي؛ خوپه مجموع کي دورانی اثرات پکښي څرګندي اوسړی فکرکوي چي خلك دخپل ښارپه ودانولوکي زړه ماتي اوبې وسه دي . ځيني کوڅې اوبازارونه ترشاوخوامخکي لړلوړپراته دي اودمسو، حلبو، څرمنواونوروشيانودکاروباردغه نړېدلي دوکانونه څوك سم ليدلاى نه سي .

يوشی ته چي په بازارکي زماخانګړې پاملرنه واوښتله ،هغه کوچني خره وو ، ترماستيف Mastiff سپيولږڅه غټ. دوی د بارونو چلولوته استخدام سوي وو اوډېرمي د وښولـه دومره لويوبارونوسره وليدل چي يوازي به يې دپښوسوې (hoofs) اودسريوه برخه ښکارېدله، نوربه پټ وو. چي دا له ځارويوسره دخشونت د مخنيوي د ټولني دمداخلې له پاره تيارکېسونه دي .

ماپه يوه کوچني کورکي ژوندکاوه چي دصليب په شکل جوړسوی و. يوازي يوه خونه يې درلوده چي څلورو خواوو ته سره غزېدلې وه . زمايقين دئ، چي له روسانوڅخه به کاپي سوی و. داکوردهغه باغچې پرڅنګ پروت ولچي شهزاده پکښي اوسېدی اوڅرنګه چي هوامخ پرسړېدووه نوترځېمې راته غوره ايسېدئ ، که څه هم له معمارڅخه هېرسوي وه،چي داورځاى هم ورسره جوړکړي. دکورله بام څخه مادښارزياتره برخي ليدلاى سوې اودغه رازمي دهغه مسجدمنارې هم کتلاى سوې چي پناه ځاى(بست ) دئ .کله چي چاهرڅومره جنايت کړی وي او يو وار ورننوزي ، بيانومحفوظ دئ . داځاى دځينو زړو انګرېزي کليساووله پناه ځايونوسره ورته دئ.

اميرمرحوم ماتـه يوروخت دکندهارديوه ملاکيسه وکړه چي پرده يې د «کافر»

حکم کړی و ، اوخلك یې دده پرضدپاڅون ته پارول . که څه هم دادمذهب پر خلاف کاردئ، چي خلك د پاچاپرضد ، چي په حقیقت کي ددوی روحاني مشرهم دئ، وپارول سي . خودوی باید «کافر» له منځه وړی وای .کله چي نومړی بغاوت خاموش کړه سو ، امیرته وویل سوه چي دغه سړي(بست ) ته پناه وړې ده. امیرخلکوته مخ واړاوه او ورته وېویل چي (بست ) یوازي دمسلمانانوله پاره دئ ، نه ددغسي کافرانوله پاره چي خلك دخپل پاچاپرضدپاروي . ورڅته یې خپله توره واخیستله ، مسجدته ورغی اوسړئ یې ځای پرځای وواژه .( ۲ ) داسي لېږ پېښه سوې وه'چي عبدالرحمن دي ترغچ اخیستلوتېرسوی وي .

## دلومړي څپرکي لمنليکونه

( ۱ ) سردارنصرالله خان ( ۱۸۷۵ ـ ۱۹۲۰ ع ) دامير عبدالرحمان دوهم زوی و، چي د ۱۸۷۵ ع کال داپريل پر اوومه په سمرقند کي زيږېدلی و . مور يې دبدخشان دميرجهانداد شاه لورکېده . د پلار په ژوند کي يو وخت د کابل د لښکرو عمومي قوماندان اوپه کابل کي د دولتي شورا مشر و. دنايب السلطنه دولتي لقب يې درلود . په ۱۸۹۵ ع کال يې انګلستان ته سفر وکړ. په نظر اوعمل کي دانګرېزانو ضد او ډېر زيات مذهبي سړی و . د آزادوقبايلوپه مشرانوکي يې ډېر نفوذ درلود . سردارنصرالله خان د۱۹۱۹ ع کال په فبروري کي د سراج الملت والدين اميرحبيب الله خان تر وژل کېدو وروسته په جلال آباد کي پاچهي اعلان کړه خو څو ورځي وروسته د امان الله خان په ګټه تر پاچهی تېر سو او امان الله خان ته يې بيعت ورکړ . امان الله خان کابل ته راوغوښت او په ارګ کي يې بندي کړ . يو کال وروسته په بنديخانه کي مړ اوپه قول ابچکان کي ښخ سو . د سردارنصرالله خان پنځه زامن پاته سول : نوراحمد خان ، عزيزالله خان ، عبدالروف خان ، عبدالغفارخان او عطاوالله ناصرضياء .

( ۲ ) داشخص شهيد مولوي عبدالرحيم اخونزاده کاکړ و، چي دعلامه حبيب الله کندهاري زوی او دميوند د زمري سردار محمدايوب خان له کلکو پلويانو څخه و. ( دزيات تفصيل لپاره وګورئ : درنه کورني ـ دمحمدمعصوم هوتك ليکنه ـ ناچاپ )

# دوهم څپرکی

په رودوکي دکب نیولوطریقه ـ دکلات اومقرله لاري دغزني سړک اوله کندهاره یې فاصله ـ دسفریخني اوواوره ـ غزني ـ دامیرعبدالرحمن تروخت دمخه په لاروکي غلاوي اووژني ـ دسړک دغاړي کلي اوکرنه ـ کابل ته رسېدل اودامیرله خواسردارنصرالله ته هرکلی

---

شهزاده دکندهارپه ښارکي تریوڅوورخوتېرېدووروسته درودپرغاړه څومیله لوریوباغ ته ولاړچي څوورځي په کب نیولوتېري کړي. زموږدورتګ په ورځ مازیګرشهزاده خپلوملازمینوته وویل چي سباته به ټول په افغاني جاموکي راوزي اوکه چاانګرېزي جامې اغوستې وې رودته به وغورځول سي. د رود اوبه پې وې اوورغورځول ګویایوه کوچنی غوټه وه . له خلکوڅخه یوه تن پېشنهاد وکړ، چي زه ( فرانک . ژباړونکی ) هم بایدپه دغه لوبه کي شامل واوسم خو فیصله وسوه چي زه دي دخپل هیوادجامې واغوندم .یودووتنودشهزاده د خوشالی اوسرګرمی له پاره په دابله ورځ انګرېزي جامې اغوستي وې اوپه رودکي غوټې ورکول سوې چي ټولوډېرپروخندل.

دغرمې په شاوخواکي هوامخ پر ښه کېدوسوه اوشهزادهاونوري عملې یې مخ پرلوړه درودپرغاړه په داسي حال کي تګ پیل کړچي اسان درود دنالویاکله هم پخپله د رود داوبو دپی وهلوله پاره مخکي روان وو. دوه کب نیوونکي د رود په منځ کي رهي وو اوخپل ګردي تورونه یې رود ته اچول . نورجمعیت درود پرڅنډوښه ورروسته په پسې و، داځکه چي کبان ترتوراچولودمخه ونه توریږي. درودپه تل کي رېګ وډېري اوښوي کاڼي ښکارېدل اواوبه ترڅلوروفوټوزیاتي نه وې . داوخت داوبودلږوالي موسم وځکه نوډېري صافي وې . ښه په پېخرکبان ونیول سول چي ( trout)(۱) ته ډېرورته وو ، څېنوېې څلورېنځه پونډه وزن درلود خودخوند مزه یې نه وه.

دکب نیوونکوتورونه دهندوستانیانوتورونوته ورته وو، قطریې له لسوڅخه ترڅورلسوفوټوپوري و اوپرګرداورد یې په لنډو فاصلوکي دسرپوګولی څوړندي

سوي اوپه دروندسوی وي. دګولیوترمنځ کښوري وي اوکبان چي ترتورلاندي . ګرزي اوغواړي وتښتي ، سریلټول بدن یې، که دپرغټ نه وي، په کښوروکي بندیږي اوبیاخني وتلای نه سي، دتورپه منځکي یوه اوږده رسی تړل سوې وي .

ددغه توردا چولوترتیب داسي دئ : درسی پای په راسته خپپوري غوټه سوی اونوره رسی سره حلقه سوې اوپه ښي لاس کي نیول سوې وي . تورپه رسی پوري تړلی وي .دتورنیمه تا (نیمایي برخه ) پرکیڼ لاس اونیمه یې پرښی لاس غوړېدلې وي ، لاسونه داسي نیول سوي وي چي دتورتاوي سره جړنه سي . په لاسوباندي تاوي سره نزدې اوتریوه یادوومقدماتي څرخولووروسته یې وړاندي ارتاوکړي. تورداوبودمخ پریوه لویه ساحه وغوړیږي .پراوبوباندي له ښتلوسره سم ددرنوزنونودوره یودم په اوبوننوزي اوپه دغه برخه کي ټول کبان پکښې بندسي. پرمخکه باندي دنیول سووکبانوداچولوترتیب داسي دی : فرض یې کړئ یوګردی ټوکرچي پرګرداوردیې په لنډوفاصلوکي وزنونه خوړندوي، پرمېزباندي غوړېدلی وي. که دټوکرمنځ ورو ورو پورته کړه سي ،ګرداورد ټوکرپه دمېزمرکزته راکش سي اووریسې به پرمېزټول کوټه سي . دتورپه موردکي هم دشاوخواوزنونه یوپربل فشارراولي اودکبانودلوېدلو مخه نیسي خوله اوبوڅخه څنډی ته په اساني سره راپورته کېدلای سي.

دتوراستعمالول اسانه کارنه دئ اوښه دپرتمرین غواړي . پرلاسوباندي دتاووسره راغونډول اوبیاغورځول دپرستونزمن کاردئ اوپه لومړي سرکي سړي ته داسي ایسي چي بایدلږترلږه دري لاسونه ورته په کاروي. افغاني ماهیګیران دتورپه اچولوکي دپرمهارت لري . دوی کولای سي دروديااوبودجریان له اړتیاووسره سم تورپه دایروي شکل یادمستطیل په ډول یاهم په درې کونجه ټوګه واچوي . دکب نیولوپه وخت کي ضروروده چي تورله ګاروانورموانعوڅخه بچ سي اودایوظریف کاردئ ، چي څوکلنه تجربه غواړي.

دلویوکبانودنیولوپه تورپوري ترکوچنیوهغي دانه وزنونه خړیږي خوپه یوه سپک تورباندي دوه ساعته کب نیول به هغه چاته چي ورسره عادت نه وي ، ښه پوره اندازه ورزش ښکاره سي . هغه چاته به دغه رازتوررونه ښایي ګټوروي، چي ماهیګیری دسپورټ په خاطرنه، بلکی صرف دکب نیولوله پاره کوي .

شهزاده په باغ کي ترددوو ورڅوتېرولو وروسته ښارته راستون سوخوهغه کوريې خوښ نه و، چي پخواپکښې اوسېدی. په دابله ورځ منزلباغ ته ولاړ، هغې ماڼی ته، چي اميردښارتر کلادباندي يوکال ياڅه مخکي ودانه کړې وه . ماته يوه خېمه راکړه سوه چي دباغچې ترڅنګ ولاړه وه څکه دماڼی خوني غټې اومحدودي وې اوېوازې يې دشهزاده دپذيرايياواوشخصي خدمتګارانوله پاره کفايت کاوه .

په دغه ځای کي زه ناروغ سوم، تبه اوپېچش راته پېښ سو.انګرېزي دارو درمل راسره نه و. ښنايي بدخواړه مي خوړلي وه . شهزاده چي زماپه ناروغي خبرسو، خپل شخصي حکيم ياډاکتريې زماکتوته راولېږه . دغه سړي خپل کوښښ وکړ او ډېره پاملرنه يې راته وکړه . په هغه وخت کي زه لکه څنګه چي بايدوای ، ممنون نه وم څکه دورځي يې درې واره ديوې ترخې دوا دوه تر څوکو پوري ډک ګيلاسه راباندي څښل اودی به دڅښلوترپايه راته ناست و. دعلاج پرڅنګ يې دناروغی ترتېرېدوپوري وږی هم ساتلم . زماروغېدوته ډېرتلوارو. دناروغی ترپايه پوري به مي هرکله دی هڅاوه ، چي پخپل لاس د دوا د راوړلوله امله ځان په تکليف نه کړي . وروسته مي ترخپل کټ لاندي په وچه مځکه کي يومناسب سوری پيداکړ،چي مايع درمل يې ترماښه جذبول. زماپه فکرپه افغاني طريقه باندي درمل خوړل څه ناڅه عادت غواړي . کله چي زه د نقاهت په دوره کي وم، حکيم به ماته هررازخواړه ښه په پرېمانه اندازه انتخابول. ډېرهېزترماتېدووروسته زه له نوروړلاروڅخه دناروغه کېدوترخطرلاندي سوم . زه بايدپه رشتياسره دده ډېرممنون وای څکه دی ډېروظيفه پېژندونکی ، باوجدانه اوآزادخياله سړی هم و او زماپه ناروغي کي يې ډېره زياته خواري وکښه.

کله چي زه بياروغ سوم پرشاوخواسيمه باندي پرآس باندي خوراډېروګرځېدم اودزرکواوکرکانو (مېزانو ) ښه ښکارمي وکړ. ماواورېدل چي لږڅه ليري هوسی هم موندل کېدای سي خوڅرنګه چي هغه ښکارديوې يادووشپوله پاره دکمپ لګولوخواري غوښتله ، نومي فکروکړ ، چي بخت ازمويل په دې خواريو نه ارزي. له بلې خوا مور له لېساتونکو سره تر ښار بهرکمپ لګولوڅخه سخت منع

سوي وو.

یوه ورځ زه دسروزروپړیوه متروك کان پېښ سوم. دخلکوله خولې مې اورېدلي وو، چې دغه کان پخپل وخت کي ډېره اندازه سره زردرلودل . دغره په ډډه کي یې یوغته کنده چاودول سوې وه اوددebris کوټي شاوخوا پرتې اوپه ځینوبرخوکي پخواني کندي په بشپړه توګه ډکي سوي وې. د غرنیو بلورو (Quartz) رګونه په چارچاپېرکي ښکارېدل خوسره زرېې ظاهرا «جیبونو» ته تللي و او نورنوهیڅ نه و پاته . زه زیات هیله من وم چې په دغه ځای کي مې پخپله دزیارایستلوخت موندلی وای.خومادخپلوسپاروساتوونکوپه واسطه د کوارتز ډبري ماتي کړې، چې وګورم څه شي به وموم . سره زرزیاتره خلك ځان ته ورکشوي.

له هغې ورځي څخه چې زه ترسرحد وروابنتم اووه تنه سپاره ساتوونکي له خپل مشر( دافع دار ) سره راته ګومارل سوي وو، چې هرځای زمامراقبت وکړي اوکه چاپه مذهبي جذبه زمادمړیني تلاښ کړی وای ، سزایې ددوی خپل مرګ و. ساتونکي به زماسره ډېرنژدې روان وو. چاته یې دبرید موقع نه ورکوله.

شهزاده په کندهارکي نژدې یوه میاشت تېره کړه اودژمي دپاته کېدلوفکرېه ډېرزړه تنګی کړ . څکه دنومبرمیاشت پای ته رسېدونکې وه . یومازیګرزه احوال پوښتني یادده سلام ته ورغلم (دوی یې همداسي بولي ) او د دربارخوني ته دراتلوپه حال کي مي ورسره وکتل ډېرخوشاله ښکارېدی . ماته یې وویل "How do you do?" (دغه نودده ټوله انګریزي وه ، چې په پوهېدی ) ، دلاس روغبړې، چې په ندرت سره یې له چاسره کاوه راسره وکړ بیایې نوراته وویل دامیرفرمان ورته رسېدلی دئ اوبایدسمدلاسه کابل ته ولاړسي.

ماورته په هغه یخني کي دسفرکولوبه باب یادونه وکړه اوده په ټوکوسره اطمنان راکړچي دمارش په وخت کي ترکندهارشل چنده زیاته یخني وي.څرنګه چي زماپه خېمه کي اوبه هره شپه کنګل کېدې ـ نوبه مي خپل زړه په څه شي ښه کاوه ـ په هرصورت دبیاروانېدلوخبره راته خوندوره وه.

په هغه ماښام شهزاده څوسندرغاړي راغوښتي وو. دوی یوراز نل یا (bamboo)(۲) ، ړغاوه ، چې فلوټ ته ډېر ورته و.که څه هم پرغربي غوږباندي

افغاني سازښه نه لګېږي ، خو بیاهم ماته د دغو خلکو سازښه او په زړه پورې ښکاره سو. د ساز دغه وسیلې چې دوی ږغولې ، خاص د کندهار وې.
ماته وویل سوه ،چې شهزاده د دغو خلکو له یوتن څخه وغوښتل چې کابل ته ورسره ملګری سي، خو دسري خوښه نه سوه او تریلني تېرسو.
شهزاده په دابله اووني له کندهاره وخوځېد . دسفرله پاره په تیاریو باندي دېروخت ونیول سو په داسي حال کي چې دغه راز تیاری ښایي تر هغه په نیمایي وخت کي بشپړي سوي وای، خو خلك په کار کي دتلوار عادت نه لري او دهغه پرځای بېاداغوره بولي چې ټول کارونه سبایا او ربېسې ورځي ته وځنډوي .
دلومړي ورځي کمپ صرف دوولس میله له کندهاره بهرو. دلومړي ورځي مارش څکه تل لنډوي چې اسان او باري څاروي دراتلونکي سفرله پاره آماده کړي او په عمومي توګه دادمارش دترتیباتو دازموېلو په وسیله وي.
دکابل تګ لوری دکلات ، غزني اومقرپه استقامت پروت دئ . ترکلات پوري لارځلور ورځي نیسي او شمال ختیځ لوري ته غزېدلې ده چې زیاتره یې دهغه رود پرغاړه پرته ده چې دشاوخواغرونو څخه دکندهارپرلور بهېږي(۳) .
لارورو وروسوه اوارد ښت تـه ورځـیـژي خـودلاري دواړو خـواووتـه لـږ څـه لـیـري دغرو لړی ستـه .ترهغو په هاخوا بیاترمقرپوري، چې نوري څلورورځي نیسي ، لار دځینو غرونو دلړیو په لمن کي تېره سوې ده چې دسفرله پاره ښه لار ده اوسخت کوتلونه نلري.
له مقرڅخه ترغزني پوري لاردیوې لوړي جلګې دپاسه تېرېږي چې دواړو خواووته یې دغرونو لړی چې دلاري له استقامت سره سمي غزېدلي دي ، ستـه اولاري تـه یې دیوه سړك ښـه ورکړې ده . دالارغزني تـه ترر سـېـدو پوري دڅلور وورځو مزل وازموږ دسفرډېره سره برخه همداوه. څکه باد ډېرسوړاو دومره توندو چې زماپنډي جامې یې لاڅیري کړې . دورځي له خوابښه لمرو. خوتودوخه یې نه درلوده . شاوخواغرونه په واوروپټ وو. غزني ته ترر سېدو یوه ورځ دمخه یې په اوربدلو پیل وکړ او په خېمه کي یې زمور خوب راناارامه کړ. واوره دشپې پیل سوه اوزه چې سهارراپاڅېدم ، په خېمه کي دننه بکسونه اوکټ مي په واوره پټ وو. څکه باد د خېمي پېڅول پورته کـــړی او واوره یې دننه راوړې وه . تر

لمرختو پوري مي جامې لکه يخې داسي وې . څکه کالي مي چي پرچوکۍ اچولي وو. تراوري لاندي سوي وو ترڅومي نورله بکسه راايستل هماغه دشپې نازکي جامې اوخپلې مي اغوستي وې.

غزني ته دهماغې ورځې مارش يوله سختومارشونوڅخه و. ترهغه دمخه ورځي لمريني اوهواوچه وه اودواوري لندبل بادلازيات سوړکړ. موږکله مجبوروو له اسانوراکښته سو، لاسونه وپښې وغوږوو، پزي وغوږونه وموږواړه دې ډول ديخ وهلومخه ونيسو. زياتروافغانانود Balaklava ( ۴ ) په شان څولۍ پرسرکړي وې چي يوازي به يې سترګي پکښې ښکارېدلې اومافکرکاوه ددغه رازسختي يخنۍ په مقابل کي ډېره ښه محافظه وه چي کاشکي ماهم درلوداى.

واوري ، مخکه ډېره ښوى کړې وه اوډېراسان پکښې غوزارسول. داوښانوحال تراسانولابترو.څکه ددوى پلني پښې چي پرلنده لارهري خواته ښوييږي ، په واوره کي له سفرسره ډېرلږتطابق کولاى سي . دوى درانه بارسوي هم و او هرګړۍ به چوخېدل . دخينوخوپښې لاهم ماتي سوي اوبايدحلال سوي واى. ځرنګه چي داوښ غوښه دخوړلووړده ، څکه نومړينه يې دښتنانوله پاره جدي تاوان نه و.

شهزاده ترغزني دباندي دهغه خاى له افسرانواومامورينوسره وکتل اوهغوى ورته کالي ، اسونه اوپيسې دسوغات په توګه ورکړې اوکله چي ښارته را ورسېدى، دتوپونوپه ډزوباندي شاهي سلامي پرځاى سوه اودآس دسپروڅوټولۍ دده دهرکلي له پاره ليکه ولاړي وې . ترهغه وروسته دى ښارته ننوت اودمخه تردې چي د ښارترکلادباندي خپل کمپ ته بيرته راستون سي ، ددوساعتوله پاره يې درباروکړ.

غزني په داسي يوه کوچنۍ ناوه کي پروت دئ چي ټيټې غونډۍ پرراڅرخېدلي دي. دايوډېرکوچنى ځاى دئ اودافغانستان د نورو کليو او ښار ګوټو په شان يوه جګه کلا لري چي يو وخت دامپراتورانوکورو. ښې ودانۍ پکښې نسته اوکوڅې يې ډېري تنګي اوچټلې دي، دبازارېې هم مزه نسته . يوبالاحصارېې ديادوني وړدئ چي پرښاروخواسيمه باندي حاکميت لري خوهغه پخپله دنن ورځي په توپکوباندي له ورځرمه غونډيوڅخه ترکنترول لاندي راتلاى

سي .

ترغزني لوړنورمارش کوونکي مجبورو، چې دخپل سفرډېرسخته برخه د ډيسمبرترنيمايي مخکي ووهي. په دغه وخت کي معمولا زوروي واوري پيل کيږي . غزني ته نارسيده اواردښت هغه چاته ښه معلوم دئ، چې پرهغه لاريې سفرکړی وي. زياتره يې په واوروکي گيرسوي اوهورې له منخه تللي دي٬په نتيجه کي مودهري ورځي مارش ښه ډېراوږدواويوه ورځ خومونژدې څلوېښت ميلوته ورساوه، چې ديوه شهزاده له پاره ښه ډېره فاصله ده . زه خوځوميا شتي مخکي له سپارلي سره بيخي عادت نه وم اوپه لومړيوورځوکي مي ورنونه په زين باندي سوليدل خوډېرژرکلك سول.

په يوه ډېراوږدمارش کي ، شهزاده زياتره لارپراوښانووهله اوپه هغه وخت کي به زه وړاندي روان وم اوپه دې ډول مي له دړړواونوروناراحيتوڅخه ځان ژغوره . څکه داوښ سپور، چې هرڅومره کوښښ وکړي دآس په سپورېسې نه سي رسېدلای. وړاندي والي ماته ددې موقع راکوله چې څه لارپه بېړه ووهم ، څه په ډوبله (منځنی سرعت ) اوڅه پلې. خودچټکی تاوان بيادااوچې دکمپ وهلوځای ته به ژرورسېدم اومجبوربه وم چې دباري ځارويو او خېمو و نوکرانو ترراسېدلوپوري درې څلورساعته انتظاروباسم اوترهغه وروسته بيايوساعت ياڅه کم دخوړوتربرابرولوپوري وګورم. مامعمولا ډوډۍ د مازيګر د څلورو بجو او د ماخستن دنهوبجوترمنځ خوړله . خوبې له خېمې اوډوډۍ په هغه توندبادکي څو ساعته انتظارډېرسخت کارو. په تېره بياچې داوږده مزله ستړی به هم وم . د سپارلي په وخت کي به مي پښې معمولا ديخنی له لاسه داسي کرخت سوي وي چې حس به يې کورټ نه درلود اوپه کمپ کي خوبه دشپې يخني دومره زياته سوه چې اوبه به پرمځکه باندي تړپاشلووروسته سمدلاسه کنګل کېدې اوزمانوکر (خانه سامان ) چاره راښکاره کړه چې په اوبوکي ترغوټه کولووروسته ديخي ورغ پرنښتی و. دشپې به، چې بادتېزېدی اودتودوخي درجه به ورسره سمه ټيټېدله اوټيټېدله .هرڅومره چې به څوك ژرپه بسترننووت اوځان به يې تودکړ هغومره به بختورو.

يوه شپه مي دننه په خېمه کي غاروکينده اوارو مي پکښې بل کړ، خو په

دوودقیقوکي یې بیادیاندي راوتلی وم ، توخل مې ، له سترگومې اوښکې بهېدلې اومجبورروم ترهغه وخته دباندي وساړوته ودرېږم چي باددښمې فضاله دوده پاکه کړي. له هغه وروسته مې یومنقل (داوسپني غاب چي پر څلورو پښو ولاړوي ) پیداکړاواورمې ترښمې دباندي پکښښې بل کړچي سرې سکروټې سو،بیامي نودننه کړاوخای یې خوراډېرراته مستریح کړ. دمخه تردې چي بیده سم منقل به مې ، چي له پورونددوپرته بل څه پکښښې پاتـه نوه، ترکټ لاندي کښېښواوځای به مې په تودواوه، نیالي مي نه درلوده اوبه پرستن کې به ښبدېدلم چي دهغه یخ بادپه وړاندي یې سرترنوکه نه سوای پټولای چي دښمې ددېوالوله ښخه به راتلی اوترکټ لاندي به چلېدی .

موږیه لارکي ترڅوکلیوراتېرسولو، چي خیني به یې لوړدغره په نیمایي کي اوخیني به کښته په دره کي پراته وو. پرټولوباندي دساتني له پاره جگې کلاوي راتاوسوي وې . باغونه اودکرنې مځکي یې ترکلیودباندي وې اوکله چي به موږتېرېدلوخیني غټ افغاني سپي به چي St.Bernard ته ډېرورته وو، راپسې څغستل ، راته غپل به یې اوخوراغټ اوخروړي ښکارېدل. دومره غټ، چي څوك له دوی څخه اصولاً درمودساتلوکاراخلي اوخیني وخت خو پر لېوانو لا بریدکوي اوورژني یې.

دبیابان خلك زیاتره لاري وهونکي دي اودامیرعبدالرحمن ترزمانې دمخه یې ټول شاوخوا په لاس کي وو. مسافرېه که ډېرش یاترهغه زیات په ډله نه تلل، سخت به ډارېدل . خکه غریبب خلك ، چي یوازې به یې سفرکاوه، داغوستو جامو په خاطروژل سوي وو.

له مسافروسره ترکلیودباندي دکلیوالودچلندپه باب ډېرې کیسې کېدلې. یوه یې داوه ، چي یوغریب سړی پرلارتېرېدی اویوه غوټه یې پراوږواخیستې وه، دیوتن لاري وهونکي په سترگه سوی و اوفکریې کاوه چي په غوټه کي به کوم ارزښتناکه شی وي . خکه یې پرسړي ټك وکړاو ویې واژه . خوکله چي غله د نومړوي سړي غوټه وشنډله ، وچ خوشایې یې پکښې ومونډله(خوشایې دغریبوخلکوله خوادسون دموادوپه توگه کارېدله )، مړی یې خکه په لغته هیسته وواهه چي خپل کارتوس یې ارمان وا! ماته یوه بله کیسه هم وسوه اوهغه

دا، چي دژمي په موسم کي يوخاى ديارلس تنه مسافردغلوله خواودرول سول اوهرڅه چي يې درلودل ، ترې واخيستل سول. حتى دتن جامې يې هم ترې وايستلې اولوغ ليږيې خوشي کړل ، چي په يخنى کي مړه سول .

ددغه رازغلاوواوژنو دشمېر دلږوالوله پاره داميرچلندساده خواغېزمن و. که به يوځاى څوک لوټ ياووژل سو، دهماغه ځاى دلسوميلوپه شعاع به ټول کلي له شلو زروڅخه ترپنځوسوزرروپيوپوري جريمه کېدل. اوکه په خلکوددغه شمېرروپوپه ورکولوځنډوکړ، دوې يادري ټولى عسکريه وروليږل سول اوترهغوبه پرناست وو، چي دجريمې روپى به يې ترلاسه کولې . يوافغان عسکرچي پريوچاواړوي، دنوموري دکورډېرښه شيان څني غواړي . ښې بسترې، ښه کوټه ، ښه خواړه . که په کورکي دچرګ ياپسه غوښه نه وي، څښتن يې بايد سمدلاسه ورته برابره کړي که څه هم دهغه دبرابرولوله پاره دکورهرڅه خرڅولوته مجبورسي،خرڅوي به يې .که داونه کړي نودتوپك کونداغ به پرنرى ملابانديوخوري اوياتردې لاسخت وهل. کليوال چاتَه شکايت هم نه سي کولاى څکه دادحکومت عسکردئ اوخپله وظيفه سرته رسوي . په دغه ډول دحکومت جرمانه څومره چي ممکنه وي ، هغومره ژرترلاسه کېږي څکه دهري ورځي ځنډ دکلي هرکورته ددرانه تاوان په بيه تماميږي.

داميردسياست اغېزه داوه ، چي هرکليوال احتياط کاوه پخپله سيمه کي د مسافرمزاحم نه سي . څکه ديوه سړي جنايت ټولوته غم جوړاوه . په هغه وخت کي چي زه پردغه لارتېرېدم ان يکړسړي لاکولاى سواى ، چي له کندهاره ترکابله پوري بې له دې ، چي په ټوله لارکي دي يې څوك په ناحقه مزاحم سي، سفروکړي. په دې شرط چي بهرني نه واى. ايرانى اوهندوستانى هم په دغه کټګوري کي راځي . څکه دوى داسي کوم څوك نه لري چي حکومت ته دي ددوى عرض اوشکايت ورسوي اوله همدې امله نودوى ته دښه ښکارپه توګه کتل کېدل.

له کلات څخه دغزني ترشاوخواپوري لارښه هواره ده، وروسته ترغزني پوري مخ پرکښته اودغزني شاته بيادغزني کوتل تردروازې(۵) پوري مخ پرلوړه اوترهغه وروسته بياترکابله پوري بيامخ پرخوړ ځي.

دغزني اوکابل ترمنځ دښت په ډېره ټيټه سطحه کي وروسته تقريبالوړ سوی و. هواډېره نرمه وه خوشاوخواپرغرونواوره پرته وه اودشپې له خوادتودوخي درجه ترصفرټيټه وه. موږ دلاري پرډغه برخه باندي پنځه ورځي مزل وکړ اودغه سيمه چي موږپکښې تېرسولو، زياتره يې غونډۍ وې خووادي په ښه ډول کرل سوې وه اوشاوخوايې زيات شمېرکوچني کلي پراته وو.

له چمن څخه ترکندهاره اوبياترکابل پوري لارکښېدلای سي چي دعراده لرونکي ټرافيک له پاره جوړه سي اوهاورګاډي دخط جوړولوله پاره هم ستونزي پيښي نه سي . داحقيقت چي اميرته دهنددحکومت له خوادوه سوغاتي توپونه پرهمدغه لارباندي دجرثقيلو (Traction Engines) په واسطه رسېدلي وو، په ډرګندډول ښيي، چي ديوه ښه سړك جوړېدل به اسانه کاروي.

کله چي موږ دراني کلا ته ورسېدو، له کابل څخه صرف لس دوولس ميله ليري .البته که څوك دکارګه په شان ورالوزي ، يعني دهواله لاري ورسي . خوموږمجبوروچي پرکوتل باندي راتاوسواونژدې شل ميله نوروړاندي ولاړسو. دغه کلي ته نزدې موږ دهغه ډګرترڅنګ تېرسو، چي له انګرېزي لښکر سره جګړه پکښې سوې وه اوپرهغوکسانوباندي دډېروکوټنی جوړي سوي وې چي په جګړه کي وژل سوي و.کله چي زه ددغوډېروپرېوه کوټنۍ ناست وم يوزوړ سړی مي په سترګه سوچي کله مخ ته اوکله شاته ځي اوله ځانه سره غړومبېږي کله چي زه يوڅوګامه ولاړم ، ترشامي ديوعسکرچيغه واورېده، مخ مي وروااړاوه . که مي کتل دزاړه سړي په لاس کي دومره غټه ډېره ده چي په سختۍ سره يې ورلای سي اوپه ماپسې راروان دئ. زماسپاره ملګري په خنداورته وويل ، چي که دي دده دمرګ تلاښ وکړ، اميرصاحب به دي بندي کړي. خو زاړه سړي وويل، چي انګرېزانو دده زوی ورووژلی دئ اودی بايد په بدل کي يوانګرېزووژني . داخبره د خندا وړنه بلکه دزيات تاثروړوه چي يوزوړغريب سړی څوکاله مخکي دخپل زوی له لاسه ورکولوترله ايسته‌لی دئ اودومره غټه ډېره يې ، چي دغورخولوتوان يې نه لري، رااخيستېده او خپل غچ اخلي. په هرصورت دا د خلکو د جذباتو ښکارندويي کوي.

کلاقاضي ته چي له کابله اته ميله ليري ده ، ورسېدو، هلته مود درو ورځو له

پاره کمپ وواهه : که شهزاده بایدکابل ته په راتلونکې یکشنبې ننوزي.داورځ دنجومګروپه نظرچې په داسې حالاتوکې ورسره هرومرومشوره کیږي ، یوه نېکمرغه ورځ وه.

مورچې په کومه ورځ کمپ ته ورسېدو، سردارحبیب الله خان(اوسنی امیر ) هم دخپل وروړلیدوته راورسېد. یوه شپه یې ورسره تېره کړه اوپه داسبابیرته کابل ته ستون سو. سردارمحمدعمرهم دده لیدوته راغی اوځرنګه چې نوموړي دملکې سلطانې زوی اوپه هغه وخت کې تقریبالس کلن و، شهزاده په هماغه شپه دده دخوښې له پاره داورلوبې(آتش بازې ) حکم وکړ. سردارهغه لقب دئ، چې دPrinces معادل اوبرازي دامیرزامنوته ورکول کیږي . که څه هم خلک دشاهي کورنۍ نورغړي هم ددرناوۍ له امله په دغه نامه یادوي.

دیکشنبې په ورځ شهزاده اوعمله یې کابل ته رهي سول . ددغې ورځې له پاره یې ترټولوښه کالي اغوستي وو اوټول ښه خوشاله ووچې بالاخره کورته رسېدل . تقریبا په نیمایي لارکې یوه ستره ماښامنۍ ورته جوړه سوې وه اوهلته دشهزاده دوه کلن ماشوم زوی دسردارحبیب الله خان له زامنوسره یوځای دملاقات له پاره منتظروو. شهزاده دخپل زوی په لېدوبیخي ډېرمتاثرښکارېدی، چې ماته دحیرانتیاوړو. ښه ماتل فکرکاوه ،چې دی یوښې عاطفې سړی دئ . موږ یوساعت لاڅه زیات پرماښامنۍ باندي تېرکړ.چای اونوردخورک وچښنګ شیان راکول سول اووروسته نوسپاره سولو.

دکابل ترښاردباندي ورکشاپ ته نژدي په یوه پراخ ځای کې ځوټولی عسکراودوه درې توپونه درول سوي وو اودعسکروپه مخ کې دکابل له نورولښکري قوماندانانوسره یوځای سردارحبیب الله اونورمامورین دشهزاده دهرکلي اوترسلامخانې پوري دهغه ملګرتیاپه خاطرمنتظروو. دشهزاده په رسېدوسره دتوپوپه ډزوشاهي سلامي پرځای سوه اووروسته بیلابیل افسران راوړاندي سول اوشهزاده ته یې سلامي وکړه . دوی ټول په ګډه د ښار پر لور وخوځېدل . پرسړکونوباندي په زرګونوخلک دتماشي له پاره ولاړوو. عسکرددې له پاره ځای پرځای سوي ووچې دخلکودړاندي تګ مخه ونیسي اوشهزاده داونورملګروته یې لارخلاصه کړي.



اميرخپل زوی ته دهرکلي اوله ډېرلیري سفرڅخه دروغ رمټ راستنېدوپه خاطرعمومي دربارجوړکړی و . شهزاده دسلامخانې دروازې ته له رسېدوسره سم له آس څخه راکښته اودسلامخانې پرلوررهي سو .اميرته هم خبرورکړه سو. شهزاده دربارته وخوت ، پرزنګنوکښېنوست په داسي حال کي چي دوعاوي اوسلامونه يې کول ، دپلارلاس يې په خپلودواړولاسوکي ونيو او پر دواړو سترګو يې په وارسره کښېښوواومچ يې کړ. اميرشهزاده راپورته کړ اوپرچوکۍ باندي دکښېنستلوامريې ورته وکړ اوبيانوټوله ورځ خوشالي وې اوټول مامورين اوافسران داميردسلام اودهغه دزوی دصحيح وسلامت رسېدلودشکرانې له پاره په وارسره دربارته راتلل.

## ددوهم څپرکي لمنليکونه

(۱) يورازماهی دئ

( ۲ ) يوډول هندی نل دئ .

( ۳ ) دا رود دترنك په نامه يادېږي او سرچينه يې په مقر کي ده .

( ۴ ) سيمه ييز خلك دې خولی ته « باران کلاه » وايي .

(۵) دغه ځای (کوتل تخت) نومېږي .

# دریم څپرکی

# کابل

مهمانخانه ـ دحمامو (ترکي غسل خانو ) بیان ـ په کوڅواوجادوکي له خلکوسره دلیدني کتني بیان ـ امیرعبدالرحمن ، دقصر و انتظارخانې (Audience Chamber ) اومانه دده دهرکلي بیان ـ دکابل حالت اودشاوخواسیمي بیان ـ کابل ښار . بازارونه . کوڅي اوکثافت ـ داوبوتهیه اودبدرفت سیستمونه ـ روغتیايي ترتیبات ـ ایله سپي اوکارګان ـ د امبارو( ډېرانو ) ښار.

---

زه کابل ته له رسېدووروسته په دابل سهارپه باغ کي ګرزېدم ـ ددربارترجمان راغی ـ راته وېویل : امیرصاحب امرکړی، چي ماته به له غرمي وروسته دلیدني کتني وياړرابخښي.کابل ته دازمادوهم سفرواوامیرزه پېژندلم . نوموړی دااستعدادلري چي یوڅوك یوواروويني بیايې نه هېرېږي .

امیرامرکړی و، چي زماسره بایدپه ډېره درناوي چلندوسي اوزماداستوګني ځای یې نوی مېلمستون (مهمانخانه ) چي امیر پخپله له څو روخوراهیسي پکښي اوسېدی ، ټاکلی و. دایوه پراخه څلورکونجه ودانۍ ده . لويي خوني لري اصلاً داميرددوبي له ماڼيوڅخه یوه ګڼله کیږي اوترنوی ښاردباندي پرته ده . پرکورونوباندي یوپراخ باغ راتاوسوی اودهغه پرشاوخواچګ دېوال دئ . ددېوال په یوه برخه کي یوه سرپټه دروازه ده چي دواړوخواووته یې دساتونکوخوني دي . ددېوال په دننه برخه کي دنوکرانوله پاره پیاده خانې (outhouses) جوړي سوي چي پای ته یې پخلنځی اودهغه څنګ ته حمام (تورکی غسلخانه ) دئ . دکابل غټ کورونه بې له حمامه ګوبابشپړنه دي .ماتېره ورځ په همدغه حمام کي ښه خوندور غسل وکړ ،چي له کندهاره د راوتلو راهیسي مي دالومړی وارلمبېدل و.

په حمام کي دوې خوني وي او ترمنځ یې لارخلاصه وي . چتونه یې ګومټي ، منځونه یې په غټوډبرو (تخته سنګو ) فرش سوي ، چتونه اودېوالونه یې په سمنټوپلسترسوي وي .خوني په هغوتاوخانوتودیږي ،چي دهمدې له پاره دباندي

جوړې سوې دي . تاوخانې داورتودوخه دخونولاندنۍ برخې اودېوالوته رسوي . دتاوخانې اودخونوترمنځ دېوال پربېړ (ډبل ) وي چې په منځ کې يې داوبودوه ځايونه جوړسوي وي، يودتودواوبوله پاره بل دسړو. دتودواوبوځای تاوخانې ته نژدې اودسړواوبودالرځه څنې ليري وي.خونوته اوبه دشيردهن لرونکونلانوله لارې ورځي . دننه خونه يې توده وي اودغسل له پاره کارترې اخيستل کيږي اودباندې خونه سړه اودکاليواغوستلوله پاره وي . په دغه رازحماموکې ډېره موده پاته کېدل ښه نه دي ځکه هوايې زياته ناوړه وي . دفرش دغتوډبروترمنځ درزونه يې هم يومخيزيندنه وي اوخونوته داورگازترې راځي.ډېروخت پکې پاته کېدل دسرشديددردونه پېښوي.بياهم، داحمامونه په ساړه موسم کې چې دانگلستان ترژمي ښوچنده سوړوي ، ډېرښه اومستريح دي . ددې له پاره چې دغه حمامونه ښه تادوه سي ، دوې ورځي بايداورترلاندي بل وي اوکه منظمه استفاده ترې کېدله نواورېې بايدهره ورځ بل پاته وي . يووارچې حمام تودسي ، بيايې نوپه لږاورتودوخه لوړه ساتله کيږي.

له غرمې وروسته زه له ترجمانه سره يوځای دهغې کتنې له پاره وخوځېدم چې داميرله خوايې امرسوی و، خومانۍ ته تررسېدوړاندې په نيمه لارکې يواستازی په مخه راغی، چې زماله پاره ليك ورځخه و. ليك داميرله خواوليکښې ليکل سوي وو څرنگه چې دی ناوخته پاځېدلی دئ، ځکه نوپرهغه ټاکلي وخت له ماسره کتلای نه سي اوماته يې ديوساعت وروسته ورتگ سپارښتنه کړې وه . يوچاته دليدني کتنې ديوساعت ځنډېدوله بابته دليك ورلېږل دفوق العاده درناوی نخښه ده . معمولا چې چاته دکتنې له پاره پريوه ټاکلي وخت امرکيږي اواميرپرهماغه وخت کتنې ته تياری ونه لري ، نوموړی شخص بايدکښېني او انتظار وباسي . مادايوساعت وقفه دښارپه شاوخوا کوڅو او سړکانوکې په چکرتېره کړه . په دغه ځای کې داميراوشاهزاده گانومانۍ اودلوړومامورينواودرباريانوکورونه اوباغچې پرتې دي.دغه برخه چې دزاړه ښارپه شمال لوېديځ کې پرته ده ، ده افغانان نومېږي داپه دې خاطرچې دپښتنويوکوچنی کلی پردغه امتدادپروت دئ. ددغه ځای سړکان هم پراخ دي اوهم اوار، خو په هغه وخت کې فرش سوي نه وو او تـــرباران يا واورې وروسته

داسانو ښې ځوانچه په ځهواوچکړکي ښخېدلې . پلي کسان خومجبورووپه احتياط تګ وکړي . اوس دکابل ښاوخوا اساسي سړکونه په ښتوفرش سوي دي اولکه پخواچي وو ، اوس داس سپارلي اوپلي تګ پکښې په ځهوکي ختل نه دي .

خلك چي په مخه راتلل خيرن پيرن ښكارېدل . ان د لوړو رتبوخلك ، چي پراسانوپه سپاره وواوپنځه شپېږنوكران به يې پربغل ورسره روان وو ، هم داسي به ايسېدل لكه تازه ، چي يې مخ پرېولى اوځټ وغاړه يې په پرېولوكي ځنې هېرسوي وي . داسي تروتازه خلك بيخي نه ليدل كېدل چي په منظمه توګه دي غسل كوي .زه ورروستنه پوه سوم چي ان دلوړي طبقې خلك لاپه اووني كي يووارلمبېږي اونورخوپه ځومياشتوكي يووار. ښايي همدادليل به و ،چي ددوى غاړه اوځټ ناپرېولي ښكارېدل .د خلكو جامې هم يوځه انګرېزي اويوځه افغاني وې . اوپه اووني كي يوواردپاك كميس اغوستلوعادت ددوى پر خيرنو ځېرو يو سرباري دئ . په داسي حال كي چي سرترنوكه ځان كيسه كول(موښل ) به ددوى ښه وايسوي .

اميرپه بوستان سراى كي و(۱) . دايوه كوچنۍ ماڼۍ وه چي تر باغچو دباندي جوړه سوې اوپرښاوخوايې دارګ مستحكمه ماڼۍ راتاوسوې وه . ځنګ ته يې دملكې سلطاني ماڼۍ وه چي ګلستان سراى (۲) نومېدله . بوستان اوګلستان دواړه دباغ معناوركوي اودپخواني "ورم ځاى" او"ورروستنۍ "ګلځاى" ژباړه ده . كابل بايد پخپله په بل عبارت "بوستان" واى اوكه ځوك يوځل دهغه په بازاروكي تېرسي داخبره ورته ځرګندېدلاى سي .

دماڼۍ دروازې ته زمااوزمادترجمان له رسېدوسره سم ، د ساتونكو مشر (كپتان ) موږدننه دربارته رهنمايي كړو . موږ هورې تم سولواواميرته دوظيفه لرونكي افسرپه لاس زموږ د رسېدلو خبر وركړه سو .داميرتراجازې وروسته يې دده حضورته زمالاربښوونه وكړه .انتظارخاني ته په رسېدلوسره ، ماميرپه هغه اوږده ځوكۍ كي ناست وليدچي ده دكټ كارهم ترې اخيست . ده ځرې انګرېزي جامې اغوستي وې اوپرسريې درېښمينه افغاني خولۍ(Fez)(۳) وه ، چي پريوه څنډه يې دالماسوښاهي ستوري ټومبلى و . امير ، چي له اوږدې مودې راهيسي

د نقرس په ناروغی اخته و، دناستي له پاره یې دخپل بستریواړخ غوره کړی و څکه چي په هغه کي ترچوکی زیات مستریح و اودناارامی په وخت کي یې کولای سوای بې له دې چي له چوکی څخه دراولاړېدوتکلیف ووینيٖ په کټ کي ځان وغزوي اودمه وکړي .

امیرپنځه څلوېښت کلن ښکارېدی.که څه هم شپېتوته نزدي واوداځکه چي دسراوږیري وربېښتان یې تورپاته سوي وو اودی یې ترخپل عمرځوان ایساوه. په جسمي لحاض مزی، پلن اوږ څه جگ خوپونډی یې لنډي وې . سترگې تکي توري وې اوترگڼوورووخولاندي یې چاته په تېزاودقیق نظرکتل. که څه هم په ښه ژیربخون وخوتریوه متوسط پرتگالي یې پوست تورنه ښکارېدی.دامیرغاښونه ټول مصنوعي وو اودخبروپه بهیرکي به یې راوایستل اودلاس په دسمال به یې پاك کړل چي په دغه وخت کي به یې په خبروکي توپیرراغی اوتعقیب به یې مشکل سو. ده یوځل خپل غاښونه ماته دکتلوله پاره راکړل اوڅرگنده یې کړه چي دادده خپل سړی جوړکړي دي. هغه دافن له یوه انگرېزي غاښ جوړوونکي څخه زده کړی و. ( ۴ )

پرامیرپاند غلام بچه گان راتاوسوي اودده هرامرته تیاروو. مخي ته یې دخوني پرشاوخواباندي افسران اومامورین اوپه دروازه کي دشاهي گارډ دوه تنه برچه پك سپاهیان اودگارډکپتان دهغوی په مخ کي توره له تېکي راایستلې ولاړو.

دانتظارخونه ښه لوېه اوپه ښوایرانیو غالیوفرش وه خوله یو څو باز و لرونکوچوکیو،چي شین پوښ یې درلود. له څوکوچنیوگردي مېزوپرته، چي دېوال ته ایښوول سوي وه نورفرنیچرپکښې نه وه .پردېوالوباندي روغني رسامی سوي وې اوېوازي یې طبیعي منظرې درلودې، څکه دسړیوتصویرونوته په هغوخونوکي، چي لمونځونه کیږي ، اجازه نسته اوپه دې حکم کي ټولي خوني راځي .دمسلمانانوپه نظرلمونځ په هرځای کي چي برابرسوکېدلای سي اوپه تصویرلرونکې خونه کي لمونځ کول، ددوی په نظردبت پرستی نخښه ده .

زه ددرباروپه خونه کي لوړورتېرسوم اودامیرمخي ته ودرېدم سرمي ورته ټیټ کړ. ده د ستړې مه سې له معمول سره سم پوښتنه وکړه ، چي ښه یې ؟ خپلي



امیرعبدالرحمان په ورځني دربار کي - سردارحبیب الله هم ورسره ناست دئ .

( دمولف رسامي )

دست کشي يې دلاس دروغېږېه نيامت وايستلې( په ښى لاس کې دنقرس ناروغى، دى په ساړه موسم کي دست کشواغوستلوته مجبورکړى و ) اوويېل چي په انگرېزانوکي دستکشي په لاس روغيږ باب نه دئ . وروسته يې په فارسي ژبه تراوږدې سترې مه سې وروسته راته وويل،چي کښېنه‌ئطوبيايې نوخوساعته خبري راسره وکړې . په روسيه کي يې دخپل ژوندااومسلك لنډي کيسې وکړې اوپه مجموع کي يې په لوړه درباري سويه زمادرناوى وکړ. دا درناوى هغه چاته کېږي چي دى ترې خوښ وي .

ترکښېنستلووروسته يې ماته يوکوچنى مېزکښېښودچي چاى مېوه اوسگرېټ پر پراته وو .ماته يې په روسى پيالـه کي چاى راکړې اوهغه يوگيلاس وچي دسروزرولاستى يې درلوداودسروزروپه غاب کي پروت و. دافېشـن اميرله روسانوڅخه اخيستى و.

په دغه رازناستوکي داضرورنه وه چي څوك پخپله وږغېږي ټولي خبري اميرکولې اوڅه چي يې غوښتـل هغه دده خبروته غوږ نيول اولنډځواب ورکول و .البته که به يوې موضوع اوږده څرگندونه غوښتله نوبه بياده په ډېردقت سره غوږنيولى و. دخنداوږخبروپه وخت کي به يې دزړه له کومې خندل اوکله خولاپه کټ کي ورسره رغږېدى. دجديت اوخندا په دواړوحالاتوکي اميرتل ديوپاچاپه شان واوهمدغه علت وچي دده په وړاندې هرچادده د ټوکوويلوپه وخت کي له خنداڅخه ځان ژغوره . کله چي به په خښم سو، مخ به يې سره کش سو، غاښونه به يې ښکاره سول . تردې اندازې چي لبوه وزمه به ښکارېدئ . په دغه وخت کي به نوده دخبروپرځاى دکلماتويورازيوښهارکاوه اوداسي څوك لږپيداکېدى، چي دده په دغه حالت کي دې ونه لړزېږي . په دغه وخت کي يوه کوچنى خطاډېري سختي سزاسبب کېدله . په دغسي حالاتوکي به اميرته دهغوکسانوپخواني جرمونه هم ورپه يادېدل چي ده به دجزاوړکولوړکنلي وو . ده به له وظيفې څخه ديوې کوچنى سرغړوني په خاطرډېره درنه سزاورکوله. تاسي نوپه دغه رازحالاتوکي دحاضروکسانوداحساس تصورکولاى سئ . څکه هيڅوك نه پوهېدل ، چي ددوى دپخوانيوخطاگانوپه حساب داميرپه فکرکي څه دي؟

دامیرپه حضورکي دخبري کولوجرات هیڅوك نه کوي. بې له کومي پوښتني ، که به يې درلوده یاداچي دامیرپه سترگوکي يې دکوم شی دغوښتلونخښه ولیدله یايې دسرهغه اشاره ولیدله چي امیريې دپوښتني په وخت کي کوي. غلام بچه گان دخپلودندودسرته رسولوپه وخت کي پټه خوله په آرامی سره شاوخواگرزي اوکه وغواړي وزي اوننوزي . تل يې په پام کي وي چي یوڅوتنه بایدامیرته نژدې پاته وي.

کله چي زه له امیرسره وم، سردارنصرالله خان چي له لندن څخه زه ورسره ملگری وم ، دربارته راغی. وروسته له هغه چي پلارته يې سلام وکړ، په چوکی کي دناستي اجازه ورکړه سوه .دده مشرانوزامنوته تل دچوکی تعارف کیږي که څه هم دلنډي شیبي له پاره دربارته حاضرسي . بې له هغوحالاتو، چي دوی پخپله له حیاڅخه نه کښېني، یاامیرپه غوسه کي وي. په دغسي حالاتوکي دوی ته په چوکی کي دکښېنستلوست نه کیږي اوولاړوي. کوچني شهزاده گان چي دده لیدلوته راسي، بایددده دچوکی یاکټ ترشاودریږي اودعادي غلام بچه گانوپه شان عمل وکړي . ده ته هرهغه شي چي غواړي ، بایدوريې کړي اوتل ورته منتظرواوسي .

شهزاده چي دتگ خیال ولري ، پلارته یوځل بیاسلام وکړي اورهې سي. که څوك له اجازي پرته ووزي، پوښتنه تري کیږي.

دامیرپه حضورکي دکښېنستلواجازه ورکول دډېري مهربانی اوعزت نخښه ده چي یوڅوتنوته ورکول کیږي. مشرانواولوړرتبه مامورینوته چي دکښېنستلوبلنه ورکړه سي، بایدپرمخکه باندي داسي کښېني چي شا يې دېوال ته وي اوکه زیات شمېرحاضروي نودامیردواړوخواوته ددېوال له اوږدوسره سم پرېوه لیکه باید کښېني . دلوړي رتبي یاعزت څښتنان امیرته ورخرمه ناست وي.

له امیرسره ترڅوساعتوتېرولووروسته مي دتگ اجازه ځني وغوښتله اوکله چي دتگ په نیت ولاړسوم ، راته يې وویل چي سباته به وگوروااوترهغه وروسته به هم زیاتره سره وگورو. ده غوښتل، چي ماډېر ووېني. دزیاتولیدنوکتنوله پاره دده غوښتنه زمادزیاتي درناوی یوه بله نخښه وه اوويې ښودل چي زه دده دډېري مهرباني وړگرځېدلی یم . په دغه هیوادکي د یــــوه جاه طلبه سړي له پاره تردي

لوړه ارزوبله نسته چي اميردي ورته دبيابياليدني كتني اجازه وركړي .داليدني چاته ددې پوره وس وركوي چي خپلي نخشي ترسره كړي. له يوې څوا؛ داديوې زياتي مهرباني اوډاډ نخښه ده خوله بلې خوابياهرڅوك دغه شخص ته ديوه غوړه مال اوپيشوبازسړي په سترگه گوري اوښايي دحاسدانوله نفرت سره دي مخامخ سي . ددې بېره لاهم سته چي دغه سړي بدعواقب په مخ كي ولري.

راتلونكي دوې مياشتي ، لاځه زياته موده ماپه مېلمستون (مهمانخانه) كي تېره كړه اوخان مي دهيواددزېرمودپرمختياله پاره ديوپلان په برابرولوبوخت كړی و. اميرددغه رازپلان دليکلوغوښتنه راځخه كړې وه. ده زمادغه كارپه پوره اندازه وستايه خوپه پلان كي له راغلوړوانديزوڅخه ډېرلږيې واخيستل سول. زه په شاوخواسيمه او دښارپه بازاروكي ښه پوره اندازه وگرزېدم ځكه چي ددمي سمېدو بله وسيله نه وه .

كابل ديوې لويې ناوې په منځ كي پروت دئ چي شاوخوايې دېنځلسو، شلوميلوپه واټن غرونه راتاوسوي دي. دغونډيوړولړيوچي دلته اوهلته له مخكي څخه راوتلي دي، سيمې ته داسي ماته وگوډه بڼه وركړې ده چي له كومي لوړي څخه پرته دتشخيصولوړنه ده . له دغولړيوڅخه يوه يې (شېردروازه ) دښارجنوب ته څرمه پرته ده اوداسمائي غونډۍ (٥) يې لويديځ ته واقع دي. ددوی دوو په منځ كي دكابل سيندبهيږي چي له جنوب لويديځ څخه راځي . دغونډيوپرسرونويوزوړدېوال سته چي زياتره وران دئ. په معموله توگه له ختيځواوډبروڅخه جوړسوی دئ او له سيندڅخه بيرته پورته ختلی اودمقابل لوري څوكي يې پسې اخيستي دي. پخوا، دېوال له سيندڅخه دخښتوپريوه پله باندي تېرسوی و خواوس دهغه پله له تاداووپرته بله نښانه پاته نه ده . دادېوال ډېرکلونه پخوادهغووحشي قبيلوديرغل دمخنيوی له پاره جوړسوی و،چي دكابل په جنوب لويديځه سيمه كي اوسېدلې اوكله ناكله به يې يوزيات شمېرپركابل رااوښتلې ، پرخلكوبه يې توري كښلي وې اودښخووخاروپه گډون به يې چي په افغانستان كي ورته په يوه سترگه كتل كيږي ، دوړلوهرڅه لوټول.

دكابل شاوخواسيمه دكرني له پاره په ښه توگه سمباله سوې ده اوله لږباران څخه د غلودانو د اوبولوله پاره كاراخيستل كېدلای سي. پــه وروستيوكلونوكي

ونی دهغولاروپردواړوخواووایښوول سوي دي، چي ښارته راځي. دلته وهلته خال خال وني په باغوکي چي دېوالونه پرراتاوسوي دي، هم ليدل کيږي . خو شاوخوا غونډۍ دونواوکرني دنشتوالي له امله ببخي لوڅي اوپه مقايسوي توګه ويجاړي ښکاري.

ښارديولك وپنځوس يايولك شپېتوزروپه شاوخواکي اوسېدونکي لري اودهيوادد نوروښاروپه شان کلاپرراتاوسوې ده . په لويديځه برخه کي ښارسره پرسېدلی اوپه دغه برخه کي داميراوشهزاده ګانوماڼی اودرسمي مامورينواوشتمنوخلکوکورونه جوړسوي دي.ده افغانان چي دښارديوې نوي برخي نوم دئ ، هم په دغه برخه کي پروت دئ اوکال په کال پسې پراخيږي ځکه ټول هغه کسان چي دښارله زړې برخي څخه وکوچيږي ياغواړي دښارپه ښکلې برخه کي کورونه جوړکړي ، همدغه ځای ته ځي.

دښارکوڅې تنګي دي اودوړي پکښې باديږي اوزياتره په ګټو و کوچنيو ګرديوکاڼوچي سم ايښوول سوي هم نه دي ، فرش سوي دي .دکاڼوپه درزوکي کله کله دآس سوه بنده سي اوځان ګوډکړي. سړکونه دکوروله دواړو بغلونوڅخه داوبودوتلوپه خاطرمرکزته شيوه کيږي .کثافات له کوروڅخه سړك ته غورځول کيږي اوپرهمدغه ځای ترهغوپراته وي، چي وراسته سي او لرشمال چي ولګيږي ډيري بدي خوړسکي يې ولاړيږي.

کورونه اودوکانونه له اوموخښتواوختوڅخه جوړسوي دي. چتونه يې اواراوله يوه دېواله تربل پوري په چارتراشوپوښل سوي ، پرهغوباندي يې بورياوي اووابنه اچولي اودپاسه يې پنډ اخپړ (کاګل ) پراچولی وي . دخوني تل له همدغومودادوڅخه دئ. کورونه کوچني اويوبل ته ځرمه دي . په پراخو بازارونوکي دکورونودوهم پوړونه له کوڅوسره سم نښتي دي او د لرګيو پرستنوباندي ولاړ دي.په تنګوکوڅوکي خوبې ددوهم پوړله پاره ټوله کوڅه ببخي پوښلې وي اويوتياره اوکوږووږيوښاکه سوپ(راهرو ) ترې جوړسوي وي چي دتبربدلوپه وخت کي که څوك ځراغ ولري ، ښه به وي . دبرپراخ بازارپې نژدې پنځلس فوټه ارت وي اوتنګ يې څلورفوټه . ځرنګه چي په ټول ښارکي له باروړونکو اسانواواوښانوسره هروخت څوك مخامخ کيږي، دآس سپورته ناشونې

ده ،چي له زين ځخه دي د ښوييدلومخنيوى وكړي . په دې برخه كي ترباري اسانو داوښانو واښونه سترمصيبت وي، ځكه اوښ په نوروكي رى نه وهي . دجادې منځ ته يې اخيستى وي اوبارونه يې تردواړوبغلونوراوتلي اودآس سپاره ته لازمه ده، چي له دغوا ښانوځخه دتېرېدلوپه وخت كي ځان پرزين نېغ ټينگ كړي . په تنگوبازاروكي داوبوويالې له پاسه مخ پركښته د اوسپدونكو د استفادې له پاره بهيږي . اوبه چي ښارته داخليږي ، ډېري ښې وي ، خوچي هرڅومره په ښاركي تېريږي اوهررازچټلې په گډيږي هغومره يې مزه ځي. دكوروكثافات ورته لارمومي، خلك پكښې ځانونه مينځي اومړه جسدونه هم په دغوويالوكي پرېوللي كيږي بې له دې چي دهغو ناروغيو په فكركي دي واوسي چي دمړينې سبب كيږي .هغه وخت چي دغه اوبه دښاردبالاحصارځنډې ته رسيږي ، نودهغو كيفيت څوك تصوركولاى سي. خوبياهم دښاراوسپدونكي مجبوردي له همدغو اوبو ځخه دچښنگ اوپخلنگ له پاره كاروا خلي.
كولرااونوري ساري ناروغى دښارپه هغوبرخوكي زياتي وي چي داوبودمسيرپه پاى كي پرتې وي. شك نسته چي داله هغومړيوځخه راپيداسوي ناروغى دي چي په همدې اوبوكي پرېوللي كيږي اونورخلك يې دچښلوله پاره كاروي. همدغه علت دئ چي دغه ساري ناروغى هروخت په كابل كي پيښيږي، ډېره موده دوام كوي اوپه زرگونواوسېدونكي پكښې تلف كيږي.
اميرعبدالرحمن ترمرگ لږوراندې ، په ښاركي دفضله موادوله پاره يوسيستم جوړكړاوهغه داچي پرځرونوباندې يې دښارفضله مواد ايستل اوپركروندگرويې خرڅول(۶) دې كاردښاردصفايي له پاره ډېره مرسته وكړه خوټول شخصي كورونه په دې پروژه كي نه راتلل ځكه يوازې غټوكورونوسپاره مكانونه درلودل چي تردېوال دباندې يې دامباردايستلوامكان و. كورونوته دننه چي ښځي پكښې وي ، پردى سړى دننوتو اجازه نلري.ځكه نوزياته اندازه امبارپه كورونوكي دننه پاته كېدى . اوسنى امير (اميرحبيب الله خان . م . هـ ) دكولرا ناورغى دشيوع په كال(۱۹۰۳ ) دښارټولي كوڅې هره ورځ د جاروكښانو په يوه لښكرجاروكولې. خوختيځوال دښاردچټليودليري كولوله اړتياسره، ډېرژر بيرته خپل دبې پروايو عادتونه پيل كړي .

له دېرشوو زروکورونوڅخه هره ورځ دغورځول سویوفضله موادواندازه که په پام کي ونیول سي، نودکابل ښاربه دېرژرله استوګني ووزي. دسپیواوکارګانوله خوادچټلیودغونډولوکارچي دناروغیویوراز غیرشعوري درمل دئ، دښار دنااستوګن کېدلومخه نیسي . ماته ویل سوي و چي دیوپخواني امیرپه امردښارټول سپي ووژل سول اوداپېښه دخلکوپه یادده چي سمدلاسه ورسره دکولرایوه سخته ناروغي په ښارګډه سوه . اوسني امیرهم د ښارد سپیو د وژلو امرونه ورکړي وواولاښونه يې له ښاره وایستل سول، خویوه میاشت وروسته د۱۹۰۳ کال کولراخپره سوه ، چي دسرایت له مخي د یادوني وړ وه .

# ددریم څپرکي لمنلیکونه

( ۱ ) ( ۲ ) بوستان سرای او ګلستان سرای لکه بل ځای چي مي هم اشاره ورته کړېده . دکابل ښار داوسني زرنګار پارك سيمه وه . دامیرعبدالرحمانخان قبر هم په بوستان سرای کي راغي . خودا ټوله سیمه اوس د زرنګار پارك په نامه يادېږي .

( ۳ ) فزFez يو ډول خولی ده . چي دترکيې خلك يې اوس هم پر سر کوي . معمولاً تور یا سور رنګ لري اويوځه جګه وي . دخولی د ارتفاع په ټول امتداد يو اوږد زومبك ( خونډی ) پر ځړېږي . وايي پخوا دغه راز خولی د کوټي په ښتنو کي بلاونانو پرسر کولي . د بلاون کلمه د انګرېزي ژبي د کميشن ایجنټ لپاره کارېدله . زما ( هوتك ) دګندهار ښارد جارچي پر سر دغه راز خولی په ياد ده .

( ۴ ) دغه ډاکټر دانګلستان تبعه و او ډاکټر لومړا نومېدی په ۱۸۸۶ ع کال دامير عبدالرحمان خان په امر کابل ته ددې لپاره راوغوښتل سو . چي امير ته يوه جوړه غاښونه جوړ کړي . ډاکټر اومېرا په کابل کي د صوفي عبدالحق په نامه يو شاګرد وروزه . چي وايي پخپل فن کي ماهر و . ډاکټراومېرا په ۱۸۸۷ ع کال هند ته ستون سو او هوري يې د امير دشخصيت . استعداد او اداري په باب ليکني وکړې . ( دتفصيل لپاره وګورئ : شين سترګي مستخدمين په افغانستان کي ــ دمحمدمعصوم هوتك ليکنه ــ ناچاپ )

( ۵ ) داغر داسمايي غردئ . چي فرانك مارټين يې په نامه کي تېروتلی او Asman يې بللی دئ .

( ۶ ) پخوا به له کورونو څخه کثافات د يو ښمېر کسانولخوا د خاوري په بدل کي ايستل کېدل او دکرني په مځکو کي به يې د پارو ( سري ) په توګه کار ځني اخيست . دا زماد ياد خبره ده . چي په کندهارکي به ځانيت مهال امبارکېښ دکور په دروازه کي ناره وکړه « امبارلرئ په خاوره » که به چا درلود . د « هو » جواب به يې ورکړ او خاوره به يې ځني تسليم کړه . دغه خاوره د سبا ورځي له کثافاتو سره ګډېدله . ( ژباړونکی )



مهمانخانه ـ کابل



د مولف استوکنځي ته خرمه باغچه ـ د باغچې په کونج کې زيارت

# ځلرم څپرکی

# کابل

## ( په دوام یې )

کوڅې څه رازاداره کېږي ـ ـ دښاراجرايېوي قوه ـ ـ لوټماران اوقاتلين ــ دبازاردوکانونه ــ دمانیواوښوکورونوسبك ـ دکابل هوا.

---

په کابل کي هره کوڅه یابازار ( چادې ، که دوکانونه پکښي وي که نه، بازاربللی کیږي ) یوکلانتریامشرلري، چي دنده یې کوتوال (دښارمشر ) ته دکوڅې دټولوزیږېدنواومړینوخبرورکول، دکوڅه والوپه منځ کي نظم ټینګول، دکوڅودپاکۍ څارل اوپه مجموع کي دکوڅې اداره کول دي . دی دهرډول بې قانونیو، که چیري پیښې سي ، مسئول دئ.

دمرحوم امیرترمړيني وروسته سمدلاسه دښارپه ببلابیلوبرخوکي دېري غلاوي پیل سوې اودغلودنیولوله پاره ټولي هڅي ناکامي سوې . په ځینوپېښوکي به یوسړي، چي دوکان یاکوروتاړه اودی به دشپې دتېرلو پاره له خپل یوه دوست کره ولاړ. په سهارکي ، چي به کورته راتلی ، کتل به یې چي ددوکان ټوله شتمني یې لوټ سوې ده . دېرووته پېښوښودله چي غله د کور د څښتنانو د حالاتو په هره شببه باندي ښه پوره خبردي. په نوروپېښوکي دکوروڅښتنان دغلوپه کړپ وکړوپ راوېښ سوي اودخپلومالونودساتني په هڅه کي دغلوله خوا ټپیان سوي یاوژل سوي وو. په پای کي خلك دومره دېبري اوډارپه حالت کي سول چي په بازاروکي له غلااوو‌ژني پرته نوري خبري نه کېدلې. امیرته عرضونه وسول اوده هرهغه چاته چي دغلوپه باب معلومات ورکړي ، دډېرغټ انعام ورکولوحکم ورکړ، خودې کارهم نتیجه ونه ښندله .

په پای کي ، یودوکاندارچي له خپل یودوست سره ددوکان پربام بیده دئ ، چي داکارمعمولا په ښه هواکي کیږي .دوی دواړوله ډاره توري له ځانوسره اېښي دي . ناڅاپه د دوو غلوپه بړغ ، چي له دباندي څخه بام تــه ورختلي وو،

راوېښېږي .دی راغورځي ، چيغې وهي اودوست يې هم راوېښېږي . دوی په غلوېسي توري راالخلي خوغله ورباندي دتمانچوډزي کوي اوتښتي . دوکاندار چي ټپي هم دئ ، ورپسي خغلي اوديوه غله پرپازودتوري واری کوي اوټينګوي يې . په دې اخ ودب کي، چي دمرستي له پاره چيغې هم ورسره ملګري دي، ځيني ګاونډيان رارسيږي اوغل نيسي .

ددوکاندار دوست، چي پرزړه باندي وېشتل سوی و، ځای پرځای مري. په سهاريې غل کوتوال ته بوت اوهغه ته يې داميرله حکم سره سم دخپلو ملګرو دنومونوښودلو له امله ډول ډول شکنجې ورکړې. په پای کي نژدې دېرش نومونه ترلاسه سول چي په هغوکي دکلانتر (دکوڅې دمشر ) اودکوتوالی د يودوو سپايانو (پوليسو ) نومونه هم وو. دغوسپايانوهره شپه غلوته دشپې دنامه په ورکولوسره، هغوی ته په کوڅوکي له ګزمې څخه دبې پوښتني تېرېدلو، زمينه برابروله. اودې کارغلوته دهرکور، چي زړه به يې غوښت دورتګ اوبيرته دورځي ترروښنامخکي خپلوځايونوته دستنېدلواسانتياوي پېښولې . هغه کورونه هم معلوم سول چي لوټ سوي مالونه پکښې پټ سوي وو اويوه زياته اندازه ګېنې، غالی ، شالونه، مسينه لوښي اونورشيان ترلاسه سول اوهرهغه چاچي کوريې لوټ سوی و، اجازه ومونده، چي دملکيت له ثبوت وروسته خپل مالونه ترلاسه کړي . له غلوڅخه يې پنځه تنه په توپ کي والوزول. دځينويې سترګي وايستلې اونورپاته دعمربنديان سول.

په کابل کي دشپې له اتونهوبجوترمنځ دپوليسوله هري تانې څخه د «وردی» ( ۱ ) تروم ږغيږي اوسهاردلمرختوپروخت بياتکراريږي.

ددغوساعتونوترمنځ هيچاته اجازه نسته چي په کوڅوکي دشپې دنامه له ورکولوپرته وګرځي اودهرچاچي دشپې نوم زده نه وي ، دساتونکوپه خونه کي ساتل کيږي اوکله چي کوتوال ته وروستل سي، هغه يې ياله وړاندي سوي عذرسره سم خوشي کوي ، يايې جريمه کوي.

دبازاردوکانونه ډېرکوچني دي ـ يوزيات شمېريې په لويواله کي دګرځنده پلورونکودغرفې (Huckster's stall) په اندازه وي. ددوکان مخ خلاص وي اودشپې ترلی اوکلپ وي. ـ ـ ـ دروازې ـ کړکی نلري، خکه ښيښې نه موندل

کيږي اوګراني هم دي. داميرمانۍ له دې امره مستثنی ده . ددوکان مخ د بازار خواته وي او دديوال په ببخ کي ددوکاندارد کښېنستلوځای وي . مالونه يې شاوخواپرفرش ورته اوډلي يايې په خونه کي پررواقوبانډي ايښي وي. دخرڅلاوشيان عموما غلې دانې ، ميوه، ترکاري، بوره اونورداړتياوړشيان ، ټوکران اونخي مالونه ، شالونه، موزې اونورداغوستلوشيان ، دڅرمني مالونه مسي اوروهي لوښي اوداوسپني سامانونه اونوروي. دچايودوکانونه (سماوارونه ـ م .هـ ) هم ستـه چي يوه کوچنۍ پياله چای ترنيم پنس(۲) ارزانه ورکوي .که څوك بوره ورسره وغواړي نوبايديوڅه نوري پيسې هم ورکړي.

په بازارکي مکتوب ليکونکي (عريضه نويس ـ م. هـ ) دهغوکسانوپه خدمت کي وي چي ليك لوست يې زده نه وي . پرهرمکتوب باندي نيم پنس ياپوره پنس غواړي . دټکټونولـه پاره البتـه نوري پيسې بايدورکړه سي . اساسي بازارونـه دخرڅلاودشيانوپـه نامـه نومـول سوي دي. لکـه ګـنـدم فـروشي (دغنموبازار ) اونور، دتوپکواوتمانچودکارتوسودوکانونه هم ستـه خوډيرګران دي. دوه درې کارتوسه په يوه شلينګ(۳) وي . البته په سايزاوتقاضااړه لري.

دمعتبروکورونه عموما له اوموخښتواوخټوڅخه جوړوي چي ښه پوره اندازاه د لرګيوکارپکښې سوي وي .کله خولادکوړټول مخکيني برخه له لرګيوڅخه جوړه وي . کورونه دوې برخي لري . دننه کورحرمسرای وي چي ښځي پکښې اوسي . په دغـه برخـه کي خونې دسرای پرغـولي شـاوخـواجـوړي سوي وي .دبانډي يوکوچنوټی سرای ،چي دحرم ددروازې اوکوځې ترمنځ پروت وي. په دې سرای کي يوسړی اوسي ، چي دنارينه ميلمنوخدمت کوي . غټوکورونوته څرمه باغچې هم وي چي جګ ديوالونه پرراتاوسوي وي اوداددې له پاره چي که کله ښځمني پکښې ګرځيدې، ستريه يې خوندي وي . ښځوته اجازه نستـه چي له نزدې خپلوانوپرته بل نارينه ته مخ ښکاره کړي . دټولوکورونو د ښځمنو د سرايونو دروازې هرومرويوقابچي (ددروازې ساتونکی ) لري . هيچاته داحق نستـه ، چي دکوردښتن له اجازې پرتـه کورتـه ننوزي اوهيڅ ښځي تـه داحق نستـه چي لـه کوره ووزي مـګرهغـه وخت چي قـاپچي تـه يې دښتن لـه خوادوتلواجازه ورکړه سوې وي.

دامیراوشهزادګانومانۍ دکابل یوازني کورونه دي چي ښه جوړسوي دي. دامیراصلي مانۍ ارګ دئ . ارګ په ترکي ژبه "کلا" ته اوپه فارسي کي "مانۍ" ته وایي . دایوغټ مستحکم ځای دئ، چي نږدې پنځه سوه مربع ګزه کیږي اویوژوراوپراخ خندق پرراتاوسوی دئ (۴) دباندې دېوالونه یې دتوپونوله پاره تیرکښان لري په داسي حال کي چي دوه دېوالونه یې په خاورینورهروونو؟ سره،چي پرشیشکانو ( طاقونو ) ولاړدي وصل سوي دي اومخ پرشیوه ددننې دېوال تیرکښانوته رسیږي. دډېوال سرېې دتوپك والوله پاره ژورسوی دئ تردغورهروونولاندې دتوپونوله پاره ځایونه جوړسوي دي. په کلاکې دننه وروستني دېوال ته مخامخ دفترونه اودزړموخوني اوځنګ ته یې دګارنېزون دسړیوله پاره کوټې جوړي سوي دي. داخلمك دامیرباډیګارډان دي، چي په خانګړې توګه تاکل کیږي او تنخواورکول کیږي. دارګ په کلاکي دغه رازشخصي اوعامه خزانې اوټول عصري توپك اوکارتوس چي شمېرېې زرګونوته رسیږي، په تحویلخانوکي ساتل سوي دي. دننه په ارك كي دامیرپرمانۍ اودده دښځوپرحرمسرای دواړو باندي جګ دېوالونه را تاو سوي دي، چي داړتیاپه وخت کي یوه داخلي دفاع جوړوي . ددې پرځنګ دامیرداستفادې له پاره دشمال برج په اوړدو او دکلاپه نوروځایوکي په دې راوژوسته وختوکي نوري خوني جوړي سوي دي .ترارك دباندي دبوستان اوګلستان مانۍ(۵) پرتې دي. ددوبي مانۍ ، شهرآرا (دښارسینګار ) نږدې یومیل لیري دشمال لورته اوددوه میله وړاندې باغ بالا (برین ) پروت دئ ،چي دمرحوم امیرددوبي په زړه پوري مانۍ وه . نومړی هورې مړسو. لویدیځ ته ترښاروتلې تقریبا اتلس میله لیري په پغمان کي چي دهندوکش غرونوپه ببخ کي یوه زرغونه سیمه ده، ددوبي مانۍ ستــه . دکابل په جنوب کي له ښارڅخه تقریبا یونیم میل لیري بابردئ . دبابرشاه دقبرځنګ ته ددوبي یو بل استوګنځی جوړسوی دئ . بابرلومړنی مغول امپراتوررو، چي په ۱۵۳۰ کي هلته ښخ سوی دئ .( ۶ ) پرهمدې لوري شپږ میله لري هندکي hindeki پرته ده چي داوسني امیرددوبي مانۍ پکښې ده اوتخت ته تررسېدومخکي به پکښې اوسېدی . ترهندکي لږڅه جنوب لویدیځ خواته دهاشم خان کلا پرته ده ، چي دمرحوم امیرد ملکې سلطانې د دوبي مانۍ

پکښې ده .
دارك ترباغچودباندي دوې لوېې سلام خانې (audience chambers) ستـه ، چې دمرحوم اميرله خوادغتهوعامه درباروله پاره جوړي سوي وې. ددغوسلام خانواودغه رازدمخصوصي سلامخانې سره جوخت کوچنۍ خوني پرتې دي اوامیرمرحوم عادت درلودپه نوې سلامخانه کي چې يوه ښکلې ودانۍ ده ، ډېري ورځي تېري کړي.
دکابل هواډېره ښه اوځوك پکښې تندرسته وي. څرنګه چې دسمندرله سطحې څخه نـزدې اووه زره فوټه لوړپروت دئ ، ځکه يې هوانرمه اوترنوروهغوسيموچې په عين عرض البلدکي پرتې دي، ډېره سړه ده . په لوړې سرکي، چې څوك ورسره بلدنه وي ، دتنفس لړڅه ستونزې په تېره بياپه مخ پرلوړه تګ کي پېښوي اوسړی دخپلوسږوپراغېزمنتوب باندي شکمن کوي. خووروسته بياله منځه ځي. زه يووخت په دوبي کي هندوکش ته دواوروترځايه ورختم، هورې مې هواډېره په زړه پوري اوتازه وموندله .خوزه مجبوروم، چې ځای ځای دنفس شړلوله پاره دمه وکړم اوکومه هواچې به مې تنفس کوله په مجموع کي راته ترکښتنۍ سيمي غيرډاډمنه اوناکافي ښکارېدله .
له دې سره سره په دوبي کي باران معمولا لږوي . په دوواوړيوکي چې ماپه کابل کي تېرکړل دتالندي توپانونه اوتوندبارانونه بېخي لږوو. په څينودغوتوپانوکي برېښناوي بېخي قطع کېدلې نه اودتالندي پرله پسې غړومبي خوځوك کړاوه . مګربرېښناوي ښارته ترځرموغونډيوپوري رسېدلې اوپرکورونوباندي دټکي لوېدلوريکارډخوبېخي محدوددئ .
په ژمي کي عموما درنې واوري اوبارانونه کيږي اوکله چې بادراوالوزي ، کوچنۍ کورونه کله کله بېخي پټ سي . کله چې واوره وسي . هزاره ګان اونورکاريګرله خپلولرګينوراشېبلونوسره دبامونودپاکولوناري وهي که پر واوره لمرپراوځيږي ، ويليږي . دبام ختټه ننوي اوکښته خوني له استوګنۍ وزي . دواوري وزن اکثره دچتونودلوېدوسبب کيږي. واوره له بامونوڅخه کوڅوته غورځول کيږي ، چې غونډۍترې جوړي سي اوترويلې کېدوپوري مياشتي پر تېري سي.کوڅوته نژدې سړکونه تل چکړوي ، خو افغانان په ختواوچکړکي ری

نه وهي او هيڅوک د دغو وا ورود پاکېدلو تکليف ځان ته نه ورکوي او وايي ، يو وخت به پخپله ويلي سي. دا په رشتيا سره د کار ضياع ګڼي.

کله چي دوبي وچ وي، د دړو توپانونه تقريباً هره ورځ پېښېږي او چي څوک د باندي ګرزي ياسپر لوکوي، د پرېدلګيږي. ان، چي په کور کي لا بدلګيږي. ځکه ټولي دروازي او کړکۍ بايد وتړل سي، چي له دې سره بيا خوني د ډېري ګرميږي او هرشی ته چي لاس وروړه سي يو ډول لغوږن احساس سږي ته پېښيږي. د تودوخي په موسم کي د ماپښين تر د ريو بجو پوري معمولاً هوا تپه بنده وي. وروسته له شمال لوري ځخه يو څه باد پيداسي . په لږ وخت کي د دړو ځرخنده ستونونه پورته سي او دومره توندسي چي ليدل پکښې مشکل سي. دغه باد دوه ساعته بنه په زور کي وي . خو تر لمر لوېدو وروسته له زوره ولوېږي او وريسې چوپه چوپتيا سي ، چي د هغې له امله د شپې ږغونه د پر اوچت کېږي.

د ۰۲ ـ ۱۹۰۱ کال ژمي استثنايي و. په ټول ژمي کي واوره ونه سوه . ويل کېدله چي دغه راز ژمي تقريباً دوولس کاله وړاندي هم پېښ سوی وچي د کولر انارو غی وريسې وه . په دغه کال تاريخ تکرار سو ځکه په پسرلي کي رودونه او ويالې وچي سوې حاصلات داوبوله نېستی وران سول او وچکالي راغله . وريسې په دوبي کي خواړه هم لږوو، کولر اپېښنه سوه او ډېري مياشتې يې دوام وکړ. دخلکو بې سبکه بدنونه يې تروبنول او مړينه په استثنايي توګه ډېره زياته وه.

په ژمي کي ورځي زياتره روښانه وي او لمر پر واوره باندي ځليږي او يلي کوي يې، خو په ماز يګر کي بيا يخی سي او سړ کونه د ښيښې په شان ښوی کړي. سړي، اسونه او اوښان پر غوځار پرږي او دخاروو اکثره پښې ورماتي کړي او څوک مجبور سي چي حلال يې کړي . پر واورو باندي د لمر ځلېدل دغه راز ړند بدلو سبب کيږي ، په ژمي د پر خوړونکی وخت هغه وي چي اسمان اوريځ وي، سخت باد راوالوزي او هيڅوک له کوره نسي راوتلای. د لمر لوېدو پروخت د تودوخي درجه تر صفر کښته کيږي او څومره چي شپه پخيږي ، هغومره پسې ټيټيږي . تر دې اندازې چي که په خونه کي ډېر اورهم واچول سي، يوازي يې هغه اړخ تودوي چي اورته ورڅرمه وي نـور اړخونه يې د هغو بادوله امله، چي دخوني تر درزو راځي،

دیخي په شان ساړه وي . هغه کسان چي په دغه شان بادکي دباندي وي، دډېرسخت زیان وررسیږي .اکثره یې پښې، لاسونه اوپزه یخ خني سوځي. دګزمې عسکرکله کله دیخني له امله مري. ځکه هغوی په دغه رازهواکي ددرېدوله پاره په بشپړه توګه خوندي جامې نه لري. په دغه وخت کي شرمښان هم دشپې له خواله غرونوڅخه راکښته کیږي ، لوږي پسې رااخیستي وي اوښارته نږدې دخوړلوشیان لټوي .که دیخنی دستړیاله امله پرېې مرستوکسانوپېښ سي، بریدپرکوي اووژني یې. ماشومان، پسونه اووزې چي په ګیروسي، وړي یې.

دغه رازهوایوه بله ځانګړتیاهم لري اوهغه په هرشی کي دیوې اندازې برېښناشته والی دئ. که څوك په تیاره خونه کي ګرزي اوپښې پرغالی ومږي، له پښوڅخه یې بځري راپورته کیږي، دغه رازکه څوك دپیشو پرشاورولاس تېرکړي عین حادثه پېښیږي ،که دکمیس کښلوپروخت پرسرلاس تېرکړي دبرېښنابځرکي تولیدیږي .که ښځمني ځپلې اوږدې کوڅی ږمونځوي ، وربښتان یې برېښناپیداکوي اودږمونځولوپروخت یوله بله لري دریږي.

شین اسمان بیا ، چي نادرپېښیږي، دفاصلې په معلومولوکي ستړګي تېرباسي. دډېرلیري غرونه چاته بېخي نږدې ښکاري. یووخت زه دصحراپه یوډېرااورږده ورځني سفرکي وم. ماته په سهارکي ویل سوي و چي کمپ بایددیوه مخروطي شکله غره په بېخ کي ووهو چي یوڅه واټن لیري د غرونو د دوو سلسلو ترمنځ لیدل کېدی . مادغه واټن شل یاپنځه ویشت میله اټکل کړی و. په دغه ورځ غرمه مي درسېدلوخیال کاوه، خوچي موږدکمپ ځای ته رسېدلو، ښه تیاره ماښام و اوموږټوله ورځ په غټوګاموسفروکړ.

په شنه اسمان کي، سپوږمی هم دډېره ځلانده وي. په دغه وخت کي دشپې له خوادکورله بام څخه دویده ښارچي دسپوږمی په سپینوړانګوکي غوټه وي ، دکورونواوغرونوپرتمین کږه وږه چي سیوري یې اچولي وي او د ماڼیو او زیارتونو منارې چي ترودانیوجګي راوتلي وي، دډېره ښکلې تماشه جوړوي . ورځ چاته عجیبه تصورپېښوي ځکه صاف اتموسفیراودبخارنشته والی دمځکي دمنظرورنګونه دډېرپیکه کړي .دخورو ورو ونوله تك شنه رنګ څخه خو بېخي سترګي نه خېږي.

# دځلرم څپرکي لمنليکونه

( ۱ ) وردی ته يي په ظفراللغات کي « فوجی لباس » معنا کښلې .خوما د پېرې يا وظيفې په معنا اورېدلې ده . ( ژباړونکی )

( ۲ ) يوانگرېزي پونډ شل شيلنگه او يو شيلينگ دوولس پنسه دئ . ( ژباړونکی )

( ۳ ) شيلنگ پولې واحد او دانگرېزي پونډ شلمه برخه ده . (ژباړونکی )

(۴ ) ارك اوس خندق نه لري اوډك کړی يې دئ. ( ژباړونکی )

( ۵ ) دبوستان او گلستان ماڼی دکابل په اوسني زرنگارپارك کي واقع وې . اصلي نوم يې بوستان سرای او گلستان سرای و. ( ژباړونکی )

( ۶ ) داسنه له مولف څخه لږڅه مغشوشه سوې ده . مغولی بابر ( ظهيرالدين محمد ) په ۱۵۳۰ م کال ( ۶ جمادی الاول ۹۳۷ ق ) دهند په اگره کي مړ او دجمنا پر غاړه په چهارباغ کي ښخ سو. تابوت يې لس کاله وروسته په ۱۵۴۰ م کي ده ده دماندينې بي بي مبارکي يوسفزی په لارښوونه له اگرې څخه کابل ته را انتقال او په بابر باغ کي ښخ سو . ( دافغانستان پېښليك ـ ۱۲۱ ـ ۱۲۳ مخونه )

# پنځم څپرکی

# دودونه اورواجونه

پرماوراى طبيعي شيانوعقيده، دنارينه وجامې، دخلكوګړه وړه اواخلاق، دبهلابېلوقبيلوبيان . ژبې اوښوونځي، دكورنيوپه منځ كې تربګنې، خلك رخصتى څرنګه تېروي، سندري اودسندرو آلات، لوبې اوساتېرى

---

كه عمومي خبرې وسي ، نودافغانانودورځني ژوندزياتره دودونه ، ددوى خرافاتي عقيدې، په دلاكانو (ډمانو ) جتانواوژورو (١) باندي ددوى دناروغانوجراحي تداوي ، پرمادورزميو، شيشكو، شيطانانواوشاپېريانو، پرهغوخلكوچي دشيطان سترګي لري (خلك نظركوي. م هـ ) پرفالبينانوچي ددوى فالونه ګوري اوپه مجموع كي پرماوراى طبيعت باندي ددوى كلكي عقيدې سري ته دروسوو كالوپخواانګرېزي رواجونه چي په كتابواوتاريخونوكي درج دي، وربه يادوي. په ځينونوروځانګړتياووكي هم دوى زړوانګرېزانوته ورته دي خوددوى كركټربياله هغوى سره بشپړ توپيرلري .

دهيواددخلكوجامې البته افغاني دي چي له څوګزونځي ټوكرانوڅخه جوړ سوي اوپرپښوباندي ول ول راتاوسوي پرتوګونه چي په پرتوګانښ باندي تړل كيږي ، پرپرتوګونودپاسه يوساده كميس اوپرهغه برسېره يوبې لستوڼوكوټ (واسكټ ته ورورته ) چي معمولا يې تڼۍ تړلي نه وي اوپرغاړه باندي تاوسوي دشال په شان يوغټ نخي ټوكرچي بل سرې پراوره باندي بې نظمه غوړندوي. پرسرونوباندي بګړۍ تړي ، چي مخروطي خوليوباندي له ټينګي تاوسوي لونګى څخه عبارت ده . بوټونه يې په شكل كي سليپرته ورته دي خوډېردرانه اوپرتليوباندي يې ميخونه وهلي وي .دبوټونوڅوكي (نوك ) يې دپښې دپاسه راتاوسوي وي ( ٢ ). جوراپي يوازي شتمن (ماړه ) خلك اغوندي.

دماموړينو ،دربارته دنږدې كسانواو پوخي افسرانوجامې انګرېزي ډوله وي . درباري كسان اوږد توركي ډوله بالاپوښونه اغوندي. توره جګه خولۍ پـــرسركوي

خودتورکي خوليوپه شان پيتي نه وي. پوځي افسران انګرېزي ډوله يونيفورم له جرمن ډوله پيك داره خوليوسره اغوندي.

دعسکروجامې ډول ډول وي. ځينوېې افغاني پرتوګونه اوځينونوروېې انګرېزي پتلونونه اغوستي وي . ياېې سپين نخي پتلونونه اغوستي وي چي په عين ډول روغ سوي وي . خوټولو يې انګرېزي ډوله کورتی ياکوټونه اغوستي اودځرمني په کمربند يې ملاوي تړلي وي. دځينوبګړی اودځينوپيك داره خولی پرسروي . عسکر دتمرين له ورځوپرته ، چي يونيفورم بايدولري، هررازچي يې زړه غواړي، هغسي جامې اغوستلای سي .داميرساتونکي عسکردهري ورځي له پاره خپل بېل يونيفورم لري اودټولوجامې اووسلې پوشان وي.

زياتره هغه خلك چي پراسانوسپرېږي ، دجګوپوندواوږدې روسی موزې اغوندي چي پښې يې پکښې ځګي ښکاري. دخلکوجامې چي هررازوي ، خوملايې دځرمني په کمربندهرومروتړلې وي اوپه هغه کي چاړه اوتمانچه له ځان سره ګرزوي . هغه ځوك ډېربختوروي چي له تمانچې سره ګرزي. دکابل اوهندوستان ترمنځ تلونکي راتلونکي سوداګردزړوجاموزېرمې رانيسي . دغه جامې په بې وزلوکابليانوکي ښه بازارلري .ځکه هم ارزانه دي اوهم په اغوستلو کي ښې وي . همدغه علت دئ، چي اوږده انګرېزي کوټونه اودغه راز دپوليسو اوداورګاډي دکارکوونکوجامې ډېري په سترګه کيږي اوداډېره عجيبه ښکاري چي ځوك په بازارکي يوسړی ويني چي د"S,E,Ry" توري ياداورګاډي دبلي کمپنی نخښي تر خپل اصلي ځای ډېر ليري دبازارديوه سړي پر کالر کښلي ويني .

کابليان عموما انګرېزي ډوله جامې اغوندي اوځوك چي دخپلوجاموله پاره دښه ټوکردرانيولوروس نه لري ، زياترباسي له افغاني پرتوګ اوبوټونوسره انګرېزی ياانګرېزي ډوله روغه سوې کرتی واغوندي. له افغاني بوټونوسره جرابې نه په پښوکوي. کله چي زه دانګرېزي کوټ ياپتلون خبره کوم، مرادمي هغه جامې نه دي چي په انګلستان کي جوړي سوي وي. دبازارګنډونکي ډېرخيرك(ماهر ) دي اوانګرېزي ډوله جامې ډېري ښې ګنډي . دغه رازګنډونکي ډېرمراجعين لري اوډېرژرمشهورسړي سي.

دخلکوځېږي دېرتوپېرلري، دخېنوپوستکي دېرسپېهن (توروشمه ) .
خونوربیااروپايي دوله وي . سپهن پوستکي والاخلك معمولا کابلیان وي ، چي
ددود له مخي دجنوبي قومونوله ښځوسره په واده کولوکي کوم اعتراض نه لري،
خودغرونوواقعي افغانان دېرښکلي دي .زیاتره يې روښانه وربښتان لري .
دنوروقومونوله ښځوځخه ځان پېچي اوپه ندرت سره له خپلوخلکوپرته له
نوروسره واده کوي. په زیاتروافغانانوکي سره باړخوګان دښایست ستره نخښه
ده.ددوی وربښتان معمولاتورصاف اونري دي. هغه نارینه چي دسراوږیږي
وربښتان يې دزړتابه یانوروعلتونوله امله سپین وي اوپه خانوکي
دنوروماندینوبیچ ویني (دوی هرځومره ودونه چي ساتلای سي، کوي يې ) (۳)
خپلوسرونواوږیروته تك توررنګ ورکوي. څرنګه چي رنګ يې دايمي نه وي که
يې وخت په وخت نوي نه کړي ، پیکه (تت ) کیږي اوسروږیره يې خیرن سره
سي اودېربدرنګه ښکاري. دغه حالت زیاتره په هغونارینه ورکي لیدل کیږي ،
چي تل لیروخایوته په سفریاداسي وظیفه کي وي . چي دخپلو وربښتانو رنګولو
ته‌وخت نلري . دوربښتانو رنګول معمولادکورنۍ دښځوپرغاړه وي . په کابل
کي یوازي دېرزاړه خلك سپین وربښتان اوږیري لري ځکه پرځان نه ګرزېدل
دافغانانوعمومي خانګړتیاده اوداکارددوی پرجامواغوستلواوښکلي
ښکارېدولوباندي ، ددوی اوددوی دکورنیودخواړودشمېرپرکموالی باندي، چي
کله دلوږي ترپولي رسیږي ، بده اغېزه کوي.ما دښوجاموااغوستوونکي معتبره
خلك پېژندل چي په وچه دوډۍ يې ژوند کاوه اوداځکه چي دنویوجامو له پاره
یوڅه پیسي وسپموي.
ویل کیږي چي افغانان دورکوسویواسرايیلي قبیلواولاده ده . اودواقعي
افغانانوځېرې، عادتونه اونومونه ددغي تیوري ملاتړکوي. ددوی جګي پزي،
ژوري تېزبینه سترګي اوعمومي بڼې (ځېرې ) په ځرګنددول یهودوته ورته دي .
دابه هغه څوك تایید کړي، چي له افغانانوسره اړیکي ولري. ددوی کرکټراودغه
رازنومونه (سلیمان، یعقوب، یوسف، داود (سله مان، جېکب، جوزف، دېوېډ )
اونورعام نومونه دي. دهیواددخینوغرونونومونه هم یهودي دي لکه کوه سلیمان
.دانومونه چاته دافکروراچوي، چي که هغوی د اسرايیلوورکي سوي قبیلې هم نه

وي ، له يهودي منشا څخه خوبايدهرومرووي(۴).

کابليان دورگه (Hybrid) اوله ډېرونژادوڅخه ګډسوي خلك دي . په عمومي توګه يې دهرنژاد بدترين خاصيت اخيستی دئ (۵). په څېروکي يې دغه توپيرله ورايه ښکاري خوپه مجموع کي ترهندوستانيوښکلي دي . څيني يې خړي اوشنې سترګي اوروښانه وربښتان لري. په دوی کي څيني بدرنګه جولې لري اونوريې په رنګ وقواره دواړه ښکلي دي. ددوی قدونه که په عمومي توګه له افغانانو (مراد يې پښتانه دي. م.هـ) سره چي په ونه دنګ اوښکلي دي، پرتله سي . ټيټ دي. خودغرونودخلکوپه منځ کي دژوندشرايط داسي دي چي ددوی کمزوری مرګي حاله څوان لا له نورونژادوسره په سيالی کي ميدان وړي .داله ژوندي پاته کېدوسره دچمتووالي يوه مساله ده چي پرنژادباندي يې فزيکي اغېزه ښندلې ده .

کندهاريان هم خوش قواره افغانان اوزياتره پياوړي اوښکلي خلك دي . په دوی کي دکابليوپه شان خړي اوشنې سترګي عامي دي .خوداڅرګنده نه ده، چي دسترګودغه رنګونه به دختيې موضوع وي اوکه دزياتوکلونوله پاره په دوو پړاوونوکي دانګرېزانوله خوادهيواددااشغال نتيجه .

دترکستان خلك اوازبکان زاياتره مغولي قواري لري.هزاره چي امير عبدالرحمن تابع کړل، په رنګوکي ډېرزيات مغولي دي . دوی زياتره لنډي ، يرغلګراوغښتلي خلك دي.

بل نژادچي مرحوم اميرتابع کړل، کافران دي.(۶) دوی په بشپړه توګه دسيمي دنورونژادوڅرګندويي کوي. عموماډېرښکلي اوروڼي سترګي لري. قدونه يې جګ نه ، خونري اومتناسب دي . قواري يې په زياتروبرخوکي يونانيانو ته ورته دي. داخبره ډېره عامه ده چي دوی دسترسکندردهغه لښکرواولاده ده چي هندوستان ته دده دتاريخي مارش په ترڅ کي دلته پاته سوي دي. دوی بت پرسته وو، اميرلاندي کړل اوپه جګړه وتوره يې راواړول. دوی له خپلونويوبادارانوسره ډېره لږمينه لري. چالاکه ، څيرك اوښه کاريګر خلك دي.

دهيوادژبه پښتوده چي په عمومي توګه له پېښوره ترکندهاره خلك په ګړيږي .

ترکستانیان تورکي ژبه وايي اوکافران خپله ژبه لري چي وروسته به د هغو کسانو دڅېړني له پاره په زړه پوري موضوع وي چي سروکارېې له زړې یونانې ژبې سره وي . ټول خلك په هره درجه کي چي وي، په فارسي خبري کوي چي ددربارژبه اوپخپله دکابل ژبه ده . ډېرلږکابلیان سته ،چي په پښتوخبري کولای سي. دفارسي په زده کړه سره څوك دهیوادپه هرځای کي خپل کارچلولای سي. خوپه سرحدي قبایلواونورخایوکي لږعمومیت لري.

فارسي په ښوونځیوکي دتدریس ژبه ده . په دغوښوونځیوکي ماشومان دسهارله شنې خړي څخه ترنزدې لسوبجوپوري اووروسته بیا په ماپښین کي دیودووساعتوله پاره درس لولي(۷). په دغوښوونځیوکي ښوونکي ، چي معمولاملاوي ،دخوني په منځ کي پرغالیچه ناست اوشاوخواماشومان پر راګرځېدلي اوپلتی(چارزانو ) يې وهلي وي. کتابونه يې پرزنګنونوپراته وي اوپه داسي حال کي چي بدنونه مخ وشاته ښوروي ، په لوړآوازيې دسندروپه لحن لولي. دلوستلوپه وخت کي دبدن دغه رازښورول داسي یوعادت ګرځېدلی دئ، چي په وروسته ژوندکي ډېرلږکسان بې له دغه عمل څخه کوم څه لوستلای سي. اودلوستلوپه وخت کي يې اوازونه هرومرود ښوونځی غزل وشمه آهنګونه لري. ښوونکی ماشومانوته دشوخي اوحماقت پهخاطردجزاورکولوله پاره له ځان سره لښته لري. دماشومانوپه وهلوکي لښته نه دربغول کيږي .هروخت چي ښوونکی وغواړي یوه ماشوم ته جزاورکړي ، دوړوکي مجرم پښې پورته کيږي اوپرشاڅملول کيږي اودپښوپرتلوباندي زیات شمېرواري خوري . کله چي جزاپای ته ورسيږي ، ماشوم چغاري وهي اودزړه سوي وړ وي. کله چي به زه د یوه ښوونځي څنګ ته تېرېدلم وبه درېدم اوپه یقین سره به مي فکرکاوه چي هلته یوماشوم وژل کيږي ، خووروسته به دماشوم دچیغاروپه سبب پوه سوم. زما درېدل اوتماشا به عموما دماشوم دچیغودبندیدوسبب وګرزېده څکه "پرنګی" یوله هغونومونوڅخه دئ چي ماشومان په بېرول کيږي. دښوونځي دخوني یوسردیوال نه لري اومخ يې کوڅې ته خلاص وي، له دې امله دښوونځي دماشومانودکارپه تماشاکولوکي هیڅ خنډ نسته .

په ښوونځي کي ماشومانوته دپخوانی عربي ژبي تدریس هم کيږي او داددې له

پاره چي قرآن په ولوستلای سي. خولکه څرنګه چي خلك عربي لوستلای سي، د برلربیې په معناپوهیږي اوهغه کسان خوښخي دګوتوپه شماردي چي په عربي دي خبري وکولای سي. د برکسان دتوتي په شان دقرآن تلاوت کوي اوهغوی چي حافظان بلل کیږي ، بیادقرآن تلاوت له پیل څخه ترپایه پوري په یادکولای سي .

خلك دکرکتېرله مخي تنبل، عیاش اوله شهوته ډك دي .داخاصیتونه هغه وخت هېشني سي چي یوڅوك قدرت اوپیسې دواړه ومومي (قدرت.اوپیسې په افغانستان کي مترادف مفاهیم دي ) دوی فکراوښتونکي(Capricious) اوناشکره دي ، په اساني سره خپل خوښ وناخوښ ته اوښتلای سي او د هغو کسانو په وړاندي دربدلوته تیاردي چي دمنني پوروړي یې وي. معمولاچي دوی یوڅه غواړي، نوسمدلاسه یې غواړي اوکه یې په غوښتنه کي څنډ راسي ، بیایې نه غواړي . دوی دروغجن ، ټګماراوغچ اخیستونکي دي اوڅوك چي له یوچاسره دښمني یالانجه ولري، څرګندوي یې نه، بلکي خپل احساسات پټوي اوخان دوست ورته ښیي. په داسي حال کي چي دغچ اخیستلوموقع ته انتظارباسي. په غچ اخیستنه کي بې رحمی ته تیاردي اوچاته غوړنه ږدي . دوی چمتودي ،چي داړپرواکمن سي. خوترېووخته د کوچنیو خواشینیو د زغملو استعداد لري اوکله چي داده سول چي دبې رحمی سلوك ورسره سوی دئ بیایې نواحساسات دومره هیجاني سي چي دځان کنټرول له لاسه ورکړي اوپه خشونت سره غچ اخلي . زیاتره خوخپل حریف ترمړیني وروسته لاهم وهي اودبوي یې . ددوی دنوروپه خوربدلواودردکي خشن دي اوکه یې له خپلوانوڅخه نه وي زیاتره پرخاندي . خودخپلوی په صورت کي یې بیا د درد په تسکینبدلو کي عقل له سره وزي .دوی خپل ماشومان دبرنازوي اوپه کوچنیوالي یې له ښې وباسي . څه چي غواړي ترممکني اندازې نتېه نه ورته کوي ، جلبل کالي په اغوندي په داسي حال کي چي پخپله په ګوډړیوکي راوزي. دبدوکارونوپه اصلاح کولوکي یې هیڅ رازهڅه نکوي .دلویانوپه څېرورسره خاندي اوپه کابلیانوکي داعام کاردئ، چي یوماشوم په رواني سره ښکنځل وکړي اوښکنځل یې زیاتره خپلووالدینوته متوجه وي . د ماشومانوپه روزنه کي دغه رازبې پروایي په خاصه

توګه دخلکوپه کرکترکي دډېراعتراض وړکارګڼل کيږي . دماشوم اصلاح کول بايدداسي نه وي چي تراووه، اته کلنۍ وروسته يې څوك پيل کړي. ځکه په دغه سن کي دده دکرکټر ښه ډېره برخه تقريبا جوړه سوې وي.

افغانان تل يود بل په وړاندي دسيسې کوي، کورنۍ دکورنۍ په مقابل کي ، ماموردماموريه مقابل کي ، بزګردبزګرپه مقابل کي ، کارګردکارګرپه مقابل کي، ماندينه دماندينې په مقابل کي ، چي داوروستۍ يې يودهغوناوړه کارو څخه دئ، چي دماندينودتعدد له رواجه رازيږېدلی دئ. ددغوټولودسيسونتيجې اکثره دخولې جنګ وي، چې وروسته په جګړه پای ته ورسيږي اويوه يابله خواپکښې ښايي ووژل سي. ددغه مقصدله پاره دوی تل چړې ياګولۍ نه استعمالوي . دوی له دښمن څخه دځان بچولوله پاره نوري لاري هم لري .

په ښاروکي چي څوك قتل وکړي ، دمقاماتوله خوامحاکمه اوسزاوررکول کيږي، خوپه اطرافوکي اکثره ددووکورنيوترمنځ په داسي دښمنۍ بدليږي چي نسلونوته پاته سي . قاتل دهغه چاخپلوانوته ځارو وي چي ده وژلي وي اووريسې وژل سوی وي. کله کله قاتل پخپله دمقابل لوري دغړوله خواووژل سي اودښمني دډېروکلونوله پاره پسې اوږده سي .

دخلکودغچ اخيستونکي کرکټردتشريح له پاره به زه د:يو چا کيسه وکړم چي بل څوك يې وژلی اوخپل کورياکلاته ، چي دوی يې په همدې نامه يادوي، تښتېدلی و. اصلا هرکوريوکلك مورچل وي. نوموړی په دغه ځای کي دېرش کاله پټ له دې ، چي پښه دي يې ترکوردباندي ايستلې وي ، واوسېدی ، په پای کي يوه ورځ په دې فکر، چي اوس به يې نوددښمن ځارنه نوره ختمه سوې وي ، له کوره ووت .خوکورته يې بيرته مړی راوړ. دهغه سړي دخپلوانوچي ده وژلی و ،دغچ اخيستنې ورحيه اوځارنه ويده سوې نه وه . ويل کيږي، چي کسات خوږدئ، خودې خلکوته يې شيريني ډېره زياته ده .

دخلکوپه منځ کي يوقانون سته چي که يوڅوك دمقاماتوله خوادقتل له امله نيول سوی وي، دمقتول له خپلوانوڅخه يې که دوی وغواړي ، د بخښنې غوښتنه کېدلای سي. خپلوان يې ښايي دخون بها يوڅه پيسې دتاوان په توګه ومني ياڼبايي په يوډول چي ددوی خوښه وي ، ويې وژني . کله کله دخپلوانو په

منځ کي دهغوپيسو پرسرچنې وهل، چي قاتل يادهغه دوستان يې بايدورکړي ان د دار ترڅنګه پوري دوام کوي . خيني دپيسواخستلوپلوي وي اوخيني نور د وژلو پرخواوي. محکوم په داسي حال کي چي رسۍ يې په غاړه کي وي اوښايي له يوساعت مناقشې وروسته فيصله پردې وسيږ چي بايدمړسي ، په دغه وخت کي رسۍ ټينګيږي اوسړی کشيږي. ددغسي حالاتودشخړي په دوران کي بايددمحکوم سړي احساس دزړه سوي وړ وي .

بله کيسه چي دخلکودکسات اخيستني روحيه نوره هم روښانه کوي داوه ، چي سړي يوهلك وژلی اودمقتول خپلوانوته يې دبخښلوله پاره ورتسليم کړی و. دهلك موردهغوکسانومخه ونيوله چي دخونبهاپيسوپلويان وو اوټينګاريې وکړچي دسړي غاړه دي ددې دزوی په شان پرې سي . دې داکاروکړ اودخپل انتقام په هيجان کي يې هغه وينې په ريشيتاوچښلې چي دسړي له غاړي بهيدلې .

دخلکوساتېري ګاني ډېري بسيطي دي اوکه څوك دوی ونه پېژني، د خورا ساده ګانوخيال به پروکړي. دمثال په توګه وختي ماښام چي کاربشپړ سي، خلك په دوبي کي په عمومي باغوکي راغونډيږي . دلته دګلانوګلداني ايښوول سوي وي ، هره ګلداني يوازي يوورازګلان لري. خلك له ښانوسره په قفسوکي دربېزمرغان راوړي اودګلدانيوپرشاوخوادتيارې خپرېدلوتروختـه کښېني دګلانووږمونه اودساړه ماښام له سوږوالي څخه خونداخلي . دوی هلته ارام ناست وي اوزياتره پټه خوله وي ان تردې چي په باغ کي دتلونکوراتلونکودپښوکړپالاهم نه اوريدل کيږي . دباغ په يوه يادوو کونجوکي چای پلورونکي ( سماوارچيان ـ م . ه ) وي چي څوتنه شاوخوا اورته پردوو ګوتو ناست وي . په بې لاستوپيالوکي چای چښي اويوآن بل آن چلم څکوي.

دجمعې ( دمسلمانانويکشنبې ) اودرخصتيوپه ورځوکي خلك پرخرو يا اسانو باندي شاوخوا باغونه په چکروزي چي زياتره دوه تنه اوکله لادرې تنه پريوه څاروي سپاره وي . خواړه اودېګونه ورسره اخلي اوهلته ترغرمې پوري خوښ خوشاله دباغودګلانوپه منځ کي چکرونه وهي . بيانوخواړه پخوي اوترخوړك وروسته څڼګونه اچوي اوګپ شپ کوي ، يا تـــرماپښينه يوه سترګه

خوب کوي . مازيگرخپلي توري (کالي مالي) راغوندوي اومخ . پرکورونورروانيږي اوددوی په ويناوايی چي ډېره ښه ورځ موتېره کړه . په دې ډول دوی په لږڅه راضي کيږي . دوی ته چي تازه هوا ، پيتاوی، گلان ، وانبه يادرختي ورسيږي اودکاروظيفې اندښښنه ورسره نه وي ، يوڅه خوراك وڅښاك هم برابر وي، دانودمزې اوتماشا هغه ورځ وي چي کيسې يې يواوبل ته کيږي اودبلي دغه رازموقع هيله په زړه کي لري.

چي دساتيري نوري وسيلې ونه مومي، دکوردبام پرسرياپه يوه بل گوښه اوارام ځای کي زياتره دوني ترسيوري لاندي سره راغونډيږي اويوېکې رباب (۸) وهي اودميني ومحبت فارسي سندري وايی. رباب دمندولين (Madoline) په شان دسازيوه آله ده . په پنځوشپږووتنوکي معمولايوتن سندري ويلای سي .ددوی دسندرورږغ له يوڅه ليري ځخه ښه لگيږي خو پرنږدې ناستوخلکودپږزي لحن په زړه پوري اغېزه نه کوي . دلږزوونکواوجگواوازونودراايستولو په وخت کي دخولې اومخ سره کږول او سره پېچل ډېرجالب ښکاري اوددوی دتماشااووقفې ته دانتظارپه خاطرسندره ښېخي هېره سي .البته داحالت ژرتېرېدونکی وي . دوی دسازنورتاري آلات هم لري، چي په شکل بنجو (Banjo) ته ورته دي خوټولوته "رباب" وايی. ددوی موزيك زموږله هغې سره لږڅه توپير لري البته توپيريې دبېلابيلوطرزوپه کمپوزکي نه دئ بلکی دځلورو، پنځوياشپږو تالونوپه شته والي کي دئ، چي بيابياتکراريږي . داږغونه ډېريکنواخته ښکاري اويوڅه وخت غوږي چي ځوك ورسره عادي سي . وروسته بيادوبي په مازيگرکي درباب ږغ ډېرخوندوراوزړه راکښوونکی وي . په تېره بياکه ځوك دمابنام ترډوډۍ وروسته په يوه آرامه چوکۍ کي استراحت وي اوسگريټ هم دودوي . خوکه ځوك بياپه ليکنه، حساب وکتاب اوياله دغه قسم ځخه په نورومصروفيتونو بوخت وي، نودغه يکنواخت ږغ ډېر ستومانوونکي لگيږي اوسړي ته يې په هره بيه دبندولواراده ورپيداکيږي آن تردې، چي وايي دتوپك ډزمي پرکړی وای.

خلك دنورروختيغ والوپه شان سپورټ اوتمرين ته دساتيري په سترگه نه گوري اوهمدغه علت دئ ، چي د خوښی او تفريح د يوې وسيلې په تـــــوگه درقص

اونڅاعادت نلري اوددغه کارله پاره خانګړي روزل سوي نڅاګري نجوني لري. دنڅاګرونجونوخدمات يوازي په جشنونو، ودونواودشتمنوخلکوله خواد دشهزاده ګانواونورولوړرتبه کسانوپه مېلمستياووکي مطرح وي.

له نڅاګرونجونوسره سازيان ملګري اويوه ارکسترايي جوړه کړي وي . دسازپه سامانوکي يوراڼډول هرومرووي چي په لاس اوګوتوو وهل کيږي، نه دډول په لرګيو(۹). دنڅاګرونجونوژوندله کړاوه ډك وي خکه نڅا ستومانه تمرين دئ. نڅاګره ښه پوره اندازه خولي تويوي اودنجلی جامې ډېري نازکي خوشېږ ان په دوبي کي لاسړې وي . دروازې اوکړکی ټولي خلاصي وي، په نتيجه کي نڅاګره زکام سي ، تبه يې ونيسي اوناروغي پسې اوږده سي .خوهروخت چي نڅاته وروغوښتل سي، بايدخپله مسلکي دنده سرته ورسوي . نودادحيرانتياخبره نه ده ، چي دغه نجوني زياتره په نري رنځ (Consumption) مري. دکابل نڅاګري نجوني هندوستانی اودپېښوراوډهلي دسيمودي. خيني يې بيادپخوانيونڅاګرواودسيمه ييزونارينه وو زوزات دي. که څه هم دشرقي نڅاګرونجونودشاعرانه حرکاتوپه باب ډېرڅه ويل سوي دي اومادهندوستان په بېلابېلو سيموکي ډېري زياتي ليدلي هم دي، دنڅاپه وخت کي ددوی حرکتونه اونزاکت دډېري خبرني اوپاملرني وړدئ اوان ترټولوښه لاهم. ترکومه خايه، چي ماليدلي دي، زموږدخپلوباليټ نڅاګرو (ballet-dancers) سره دحرکاتوپه نزاکت کي پرتله کېدلای نه سي .

دغرنيوافغاني قبيلو(۱۰) په منځ کي، لکه خدراڼ اونور.دتورو نڅا دود ده . نژدې پنځوس تنه پريوه دايره سره راغونډيږي چي څلورپنځه تنه يې په مرکزکي ډولونه، تمبورونه اونورتاري وسايل ږغوي . دنڅاپه پيل کي خلك دداېري دمرکزپرلورمخ ته ټوپ راوهي اوبيرته شاته خي . خپلي توري اوچړې پرسرونوباندي خلوي اوله موزيك سره سم په ټيټ آوازسندري وايي خوورو- ورومو‌زيك، سندري اونڅالوړيږي اوچټکيږي، بګړی اوکمربندونه ددي له پاره غورخول کيږي چي په حرکاتوکي زياته آزادي ولري.توري په ډېرچټکی سره خلوي ان تردې چي په پای کي خلك ببخي هيجاني ښکاري اونڅاپه يولړوحشي ټوپونوبدله سي. توري هـــــــواته غورخوي اوبيرته يې نيسي اوسندري دوحشي

چیغوپه یوه کورس بدلي سي. کله چي نڅا خپلي هیجاني ټکي ته ورسیږي ، ناڅاپه بندیږي اووروسته نودنڅاګرودلاسودیږکولوپه لوړآوازسره پای ته رسیږي.

دوی یوه بله وحشي نڅاهم لري چي دیوه طلسم پرشاوخوابانديي دعبادت کوونکومذهبي دودته ورته ده . دوه یادرې تنه له ډولونو سره یوځای کښېني او نڅاګر په یوه پراخه دایره کي پرراغونډیږي. دخلکومخونه یوبل ته مخامخ وي . کله چي ډول شروع سي دوی وړاندي راټوپ وهي اودلږوخت دپاره دریږي او وروسته بیاپردابله پښه مخي ته ټوپ وهي اوپه دې ډول دوام کوي، خودهرټوپ په جریان کي دپښې له هرواروړاندي کولوسره مخ ښی خوایاکیڼ لوړته په شدت سره اړوي اوخپلوبدنونوته په دغه ناڅاپي څرخ سره خپلي بګړی اوخولی په هماغه لومړیو قدموکي هواته غورځوي . لږڅه وروسته چي نڅاتوده سي، دوی دهرټوپ سره یوبشپړ څرخ خوري اوځومره چي نڅادوام کوي ، هغومره نڅاګرزیات انرژي اخلي، تردې اندازې چي له اوروسره برابراوړده غچي سوي وربښتان یې دمپ(Map)(۱۱) په شان شخ دریږي . خلك په عین وخت کي دلاس موټي هم ارتوي اوکله چي دوی په ډېري چټکی اوشدت سره تاویږي،ډول ورسره سم چټکیږي او بې اندازې ښه تماشه جوړوي.

په ځینوخلکوپه تېره بیاعسکروکي دلرګیوپه تورووباندي شمشېربازی رواج لري. دلرګیوتوري انګرېزي توروته ورته دي اوژورشاني موټي لري .شمشېربازان دځرمني کوچني ګردي سپرونه هم لري چي په کیڼ لاس نیول کیږي اولکه په لویو سپرونوکي چي معمول دئ ،دبازویوه برخه نه پټوي . ځیني کسان په دغه تمرین کي ډېرمهارت لري خوپه تورووباندي لږ مدافعه کوي اوزیاتره واري په سپرراګرزوي اوله دې امله ډېرچټك تاودبدلوته اړتیاسته. دوی دغه رازپرپښوباندي واري په شاته غورځېدو سره مدافعه کوي اوپرسرباندي له واروڅخه بیا خان په ټیټولوسره ژغوري.

هرکال دپسرلي په پای کي «جوبه» جوړیږي . په«جوبه» کي رازرازلوبي کیږي اوځای یې داسمایي غونډیوپه لمنوکي په یوه هوارمیدان کي وي.(۱۲) دغه میدان دښارپه جنوب لویدیځ کي پروت دئ . دلته دوی دآس مسابقې لري خودامسابقې ددوو تنوترمنځ وي اونه غواړي، چي ځوډېرښه اسونه دیوې بشپړي

دوري له پاره پکې برخه واخلي. دغونډیوبه لمنوکي دخوړواوناوکیو (نانځکو) غرفې درول سوي وي. دغي درې ورځنۍ مېلې ته ټول کابل (کابلیان) اوماشومان راوزي . په دغوورځوکي خلک ډېرې ښې جامې اغوندي اوبه تېره بیاماشومان په خپلورنګه واسکټونواوخولیوډېرخوشاله وي. د ماشومانو ناوکي (نانځکي) ډېري عجیبې ښکاري. له زړوټوکرانوڅخه یې جوړي کړي اوافغاني جامې یې په اغوستي وي. دنراوښځي دواړوڅرګندونه کوي خودماشومانودا، نه کوي . اوځیني یې دشیطان څېره څرګندوي . دمېلې په یوه څنډه کې ووړوکي څرخونه (چخېلک) دلرګیوشپېلۍ اونورډول ډول شیان موندل کیږي، چې دماشومانودخوښۍ ووړنګونه یې ورکړي وي.

دغه رازپررسۍ باندې دتګ ترکستانۍ لوبې هم کیږي . لوبغاړي یې په زړه پوري رنګه جامې اغوستي وي . ددې لوبې له پاره یې دوې اوږدې پایې درولي وي اوبوسروبل سریې په رسۍ سره وصل سوی وي. رسۍ اوپایې دواړي ډېري کلکې اومظبو ي وي چې لوبغاړي وریاندې دپاسه تګ وکولای سي.

په جوبه کې دغه رازدښاردغټوپهلوانانوترمنځ غېږ (کشتي) هم ایستل کیږي.دغېږ ایستلولوبه معمولا دامیراوشاهزاده ګانوبه وړاندې کیږي . دهغوی له پاره یې دغونډیوبه لمن کې خېمې درولي وي .امیردلوبې ګټونکوته دپیسوجایزې ورکوي . له غېږایستلوسره ټول خلک دزړه له کومې مینه لري اودمسابقې بایلونکي ته خپله ماته کله کله دومره درنه تمامه سي چې په ټول عمرله غېږایستلوڅخه لاس واخلي (توبه وکاږي) . ځیني خوبې لادومره زړه ماتي سي چې په انتحار (ځان وژلو) لاس پوري کړي.

داسونوبه مسابقه کې د برخه والوسپرلیوله پاره لارخالي نه وي اوسپرلي مجبوردي چې دخلکواونورواسونواوخروبه منځ کې څومره چې کولای سي خپله ځان یوې خوااوبلې خواته کړي اولارپکښې وکړي. زیاتره خوسېري اواس ته دزړه دوک وړواچوي په تېره بیاکله چې غواړي دخروبه منځ کې لارومومي خکه خره چې پوري نه وهې ترهغوله لارې نه ګوښه کیږي . یووخت دووتنودمیدان له دوو مخالفوڅنډوڅخه دآس دسپرلي مسابقه درلوده اودمیدان په منځ کې چې سره مخامخ سول یوبل ته یې نه غوښتل لارورکړي ، آخرسره ټکرسول اوبه نتیجه کې

يوسېږي اوآس يې ځاي پرځاي مړه سول اوبل يې په داسبامړسو.

نکلچيان دخلکو دپرخوښيږي او ښه نکلچي ډاډه وي ، چي د اورېدونکو او نندارچيانو پاملرنه خان ته اړولای سي .د بازارنکلچيانو دعام سړك په کنه کونه کي خان ته ځاي جوړکړی اوکيسې وايي. په لړوخت کي زيات شمېرخلك پرراټول سي دی دکيسې په منځ کي په مزه مزه چاي چښي، په داسي حال کي چي پلي اوسواره ،چي غواړي له لاري څخه تېرسي ، په تکليف سره لارمومي اوخلك بايدتېله کړي. خولارويان نکلچي ته هيڅ هم نه وايي او نه غواړي دپښوانيو وختونو د پېريانيانو، شاپېريانواوشيطانانوپه منځ کي دشهزاده ياشهزادګۍ دماجراوو دبيان خنډوګرزي.نکلچيان داميراودهغه دشهزادګانواونورو معتبرينو په ډله کي هم وي. په حقيقت کي خوداميرټول ملګري اوسرکاري کسان په يوډول نه بل ډول نکلچيان دي، خودغه نکلچيان چي پورته مي اشاره ورته وکړه ، مخصوص خلك دي اودهغوی وظيفه داوي چي خپلوآمرينواوبادارانوته کله چي هغوی په شپه کي بيديږي ، نکلونه ووايي. هغوی په بسترکي پراته وي اونکلچي ترهغه وخته نکلونه ورته وايي ، چي په خوب کښېوزي .

په کابل کي چي څوك دشپې ډوډۍ ته دعوت سي، معنايې داده چي شپه به هم دکوربه په کورکي تېروي . په دغه رازمېلمستياووکي، کله چي ډوډۍ وخوړله سي، مېلمانه پرکوربه راغونډ سي ، پرغاليواونيااليوباندي يې په داسي حال څنګونه اچولي ياغزېدلي وي چي چلمونه څکوي اوهريوپه خپل وارسره يوه کيسه وايي. دکېسوله اورېدوسره دومره زياته مينه سته چي هغوی زياتره ترنيمي شپې پوري ويښ ناست وي اوکيسوته يې غوږنيولی وي اوپه دا سبا کار ته آماده نه وي.

هلکان اوماشومان دانګرېزي ماشومانوپه شان ساتېری کوي. په هلکانوکي عامه لوبه" توپ بازي" ده چي په لرګي اوتوپ سره تر سره کيږي داولوبه ترډېري اندازې (Rouders) ته ورته ده . دوی غېږي هم باسي اودلرګيوغشي هم ولي چي زياتره پکښې ماهروي . خيني غټ هلکان دختړوپه ګوليوباندي چي د يوه اوږده نل له منځه وارکيږي(۱۳) چوغکي اوکوچني مرغان ولي. ددې له پاره چي مرغان خانونوته رانژدې کړي، تردرختولاندي درېږي اودچوغکو يورازږغونه

ترخولې راباسي . په دې ډول چوغكي ورته رانږدې كيږي اوله لاندي څخه واري پركيږي.

وړكي ماشومان په پنډوسكي (گيند ) ، بجلو، مردكواوجوز (غوزانو ) لوبي كوي. په جوزباندي د مردكوپه شان لوبي كوي اويوه ټاكلې اندازه جوزپه منځ كي ږدې . هرچاچي لوبه وگټله، جوز دهغه مال سي

ډېري وړوكي نجوني په كوڅوكي ليدل كيږي خوچي اته كلني سوې، نور نو دوی په "پرده" كي سي اوله خپلوانوپرته يې بايدبل نارينه ونه ويني . دوی دكورپه بنځمنوكي شامليږي اوله "برقع" يانځي چادري پرته بهروتلای نه سي په چادري باندي له سرڅخه ترنوكه پوري پټه وي اودسترگوله پاره يې يوسوري سوري ټوټه ورکړې وي، چي لارپه وليدلای سي. وړوكي نجوني كله كله دكورپربامونوليدل كيږي چي Ring of roses ته ورته لوبي كوي ياپه ناوكيو (نانځكو ) سات تېروي ، ياپې خانته دلوبوكور يا دوكان يا بل هغه شي جوړكړي وي ، چي ددوې له جنس سره مناسب وي . ددوی ډېره لويه ارزوداده چي انگرېزي ناوكی(نانځكه ) چي انگرېزي جامې يې په تن وي، ولري . ځكه ددوی ناوكيـاني له زړوگوډانوڅخه جوړي سوي وي اوددوی په شان يې زړې گوډې په اغوستي وي.

## د پنځم څپرکي لمنليکونه

(۱) دلته مولف د Leech Wives اصطلاح راوړي ده . مطلب يې هغه ښځې دي ، چې "ژوري" ورسره وي . ژوره ( Leech ) چې په پارسي يې « زالو » بولي . يو راز چنجی دئ .دناروغ تمپ ته يې دنواوزوب دزيبښلوله پاره وراچوي . (م.ی)

( ۲ ) مولف دلته « مرجني » د بوټونو په نامه بللي دي . مرجنه يا پڼه ، چې په پارسي يې « پيزار » بولي ، له څرمني څخه جوړيږي . په جوړولو کي يې مبخ نه کاروي ، بلکي په غښتلي سپنسي يې کنډي . « چاراشه » او « دوبيلی » يې دانواعو نومونه دي . په کندهار کي دمرجنډوزی صنعت پخوانی سابقه لري . دملتان مرجني ډېري ظريفي او قيمتي دي (م.ی)

(۳) افغانان په ودونوکي شرعي حد (څلورښځي) مراعاتوي. ښاري نارينه زياتره په يوه واده اکتفاء کوي - خوخانان اوسرداران له دې امره مستثنی دي اوترڅلوروزياتي ښځي هم کوي اوشرعي حيله ورته پرابروي (م.ی)

(۴) داتیوري اوس دعلمي خیرنوپرېنیادیوه مردوده تیوري ده . افغانان په مجموع کي اریایان دي.(م.ع)
(۵) دادفرانك مارتین خپل برداشت دئ. واقیعت داسي نه دئ (م.ع)
(۶) له کافرانو څخه دمولف مراد نورستانیان دي . نورستان چي پخواني نوم یې کافرستان و . په ۱۸۹۵ م کال (۱۳۱۳ ق) دامیر عبدالرحمان خان په فرمان دسپه سالار غلام حیدر خان لخوا فتحه او اوسېدونکي یې داسلام په مقدس دین مشرف سول (م.ع)
(۷) دلته له بنرونخیوڅخه مرادجوماتونه اومدرسي دي .
(۸) په متن کي(Rubarb)راغلی دئ چي دمولف ناسمه اوربدنه څرګندوني .
(۹) له دغوآلاتوڅخه دمولف مرادطبله یازېربغلي ده.
(۱۰) مولف په دغسي مواردوکي د(Wild Afghan Tribes)ترکیب راوړي چي ماد"غرنیوافغاني قبیلو"ژباړه ورته مناسبه وبلله .
(۱۱) یورازجاروته ورته آله ده چي له سپنسیوڅخه جوړه سوي اودخونوغولی په پاکیږي.
(۱۲) ما (هوتك) اوربدلي دي . چي جویه دسیاسنګ په شاوخوا کي هم جوړېده .
(۱۳) دغي آلي ته دکندهار پښتانه پوك یا پوپکه وايي (م.ع)

# شپږم څپرکی

## دودونه او رواجونه

## (ادامه)

خرافات. شاپیری اوپیریانیان . یوه نادره افسانه. فالبینان . داقلیم بدلولو له پاره دکورپریامونو باندي دماشومانو سندریزه دوعا. بېلابېل خواړه اودتمباکواستعمال . دامیرلوی طبیب. نصوار. په ژمي کي دتودولوطریقه. وخت څه رازتېرېږي؟ . دبېلابېلوطبقو ودونه . جنازي .

---

داخلك ډېرخرافاتي دي اوپرروپو، اروااو، شاپېريواو پېريانيانو باندي كلكه عقيده لري. زياتره نكلونه يې ( ددوی خبره ) دهمدغو بنو اوبدو اروااو په باب دي . پردغوكيسوباندي زيات باورلري ان تردې چي نارينه لادشپې لخوا يوازي كوم ځاى ته ځي، احتياط كوي. كه يوسړى دشپې له خوا په يكړسر (يوازى ) روان وي، عموما به يې لوړى ږغ واوري بيا به يې وينې . ځكه دتگ په وخت بنه په لوړاواز سندري وايي ياپه خوله شپېلكى كوي.

زه چي كله په مهمانخانه كي اوسېدلم، يوه شپه ناوخته ځاى ته راغلم ځكه له اميرسره مي ځوساعته تېركړي وو . كله چي له دروازې څخه كورته راتلم ومي ليدل چي يومهتر (دآسونو روزونكى ) له سراى څخه زماخواته راروان دئ اوغيرعادي ږغونه اوشپېلكى له خولې باسي . زه چي يې وليدلم، شپېلكى يې بندكړ. زه په تعجب كي وم، چي ولي يې دعادت پرخلاف شپېلكى كاوه خوچي خوني (كوټې ) ته راغلم په علت يې پوه سوم، چي داكارېې ديوه عصبي شاك(ببري ) له امله كاوه اوراته ځرگنده سوه، چي زمايوه هندوستاني نوكرپه ټوكو كي مخ توركړى يايې خپل‌طبيعي رنگ يې زيات توركړى و ، شونډوته يې سپين رنگ وركړى ، پرسترگو يې هم دسپين رنگ كړى كښلي وې . دوې پوستينچې (١) يې پرڅپه مخ اړولي وې داسي چي دپوستكي ببره خوايې برسېره سوي وې، لاسونه يې ديوې اوبښې يې دبلې پوستينچې په لستونو منډلي وو او د پوستينچې تنې يې كلكى پرملاباندي غوټه كړي وې. د پسه د



د مولف په کورکي دافغاني ساتونکو او نوکرانوډله ـ پخلنځی یې شاته دئ

پوست ببره خولی یې پرسرکړې وه . ده وروسته ماته هماغه شان جامه واغوسته چې په زړه پورې نه ښکاریدله . زمادکوټو ددهلېز په دروازه کې داووتنو محافظ گارډخای پرخای و ، هندوستانې نوکرپه داسې حال کې چې پرلاسو اوزنگنو یې تگ کاوه ، ددغه گارډ خواته دپرنزدې ورغلی و اوپه دپرلوړاواز یې ورباندې رمباړې وهلې وې . سرې په دې فکر ،چې واقعې پېری ورته راغلی دئ ، خپل توپك وغورځاوه اوپوستینچه وال دگارډ دخونو اوبهرنی دروازې پرلورپه منډه ولاړ . له ساتونکو څخه یوتن په دغه حال کې چې نورپه تېښته کې وو ، بیده و اوکله چې دنورو په غالمغال راویښ سو ، راپاڅېد ، سترگې یې بلا (پېریان ) ته موښلې اوچې سدیې په ورسېد ، دی هم په منډه سو . پېری وروسته دبرنډې په څنگ کې یوې بلې کوچنی کوټې ته ولاړ . داکوټه دچایدارانو وه (هغه کسان چې چای برابروي ) . چایداریوازې پخپلو چورتونو کې ډوب پریوه وړوکې ټغرناست او کړکی ته یې څنگ لگولی و (ډډه یې وهلې وه ) . کله چې دغه بلا ددروازې له لارې ورته راننوته ، بې له دې چې په خوریدویا ټېپې کېدوکې دې رهی ووهې ، خان یې له کړکی څخه لاندې وغورځاوه اوله خونې څخه سملاسې و·ت . نورخلك چې له دغې بلا سره مخامخ سول ، دامیرنوکران وو ، چې دخدمت له پاره ټاکل سوي وو اوټل به زما دناستې په کوټه کې تیارحاضروو . کله چې یې دغه بلا په یوه دروازه کې په سترگه سوه ، دوی په منډه تربلې دروازې په تېښته سوه اوپه تېښته کې یې مېزونه اوچوکی ټولې سره گډوډې کړې وې . بلاپه بله کوټه کې له نورونوکرانو سره مخامخ سوې اوبیا نوترې تم سوې وه . وروسته ټول نوکران سره راغونډ سول اوخپل تاثرات اولیدلی حال یې سره بیا ناوه . په دغه حال کې زه هم وروررسېدم اوټوله کیسه یې راته بیان کړه . داربدلي کسان دپرخجالت اوشرمېدلي و اوهریوه غوښتل ثابته کړي ، چې دی په تېښته کې لومړی تن نه و . دی څکه وتښتېدچې نورپه تېښته کې سول . په هرصورت دپېرې اوډار اغېزه ان پخپله پربلا (هندوستانې نوکر ) لاهم دومره وه ، چې څوشپې پرله پسې په تنهایی سره بهرته نه ووت اوان په یکړ سردباغ په هابل سرکې خپلې کوټې ته نه تلی .

په عمومې توگه داسې تصورموجودو ، چې شاپېری په شاوخــــــواغرونوکې

اوسي. سره له دې چې ددوی په عقيده شاپېرۍ په مجموع کي بې ازاره وي، خو خلکو دشاپېريوله استوګنځايو څخه ځان ليري ساته . شاپېرۍ داسي ښوول کېدې چې له دوولس څخه تراتلسو انچوپوري يې قدونه دي، ډېري ښکلې جامې اغوندي اوشانه ورانه پخپلي مشري پسې وي . دتګ په وخت کي نڅاوي کوي . خلکو باوردرلود، چې شاپېرۍ له انسانانو څخه ډارېږي اوځانونه ځني پټوي . يوازي يې هغه کسان ليدلای سي، چې له لاري څخه په ګوښه ځايونو کي بېده يا پټ وي . ويل کېده چې شاپېرۍ په ماشومانو کارنه لري خودا عاقلانه نه ده چې ماشوم دي دشاپېريو استوګنځايوته پرېښوول سي څکه هغوی به يې ترخپل افسون(جادو ) لاندي راولي اوښايي دغلاسوي ماشوم مخ اوبڼه دخپلو ماشومانو په شکل ور واړوي ، چې داکاربيا دماشوم موروپلار ته دبدي طالع (نحسيت ) سبب کيږي.

په ماوراالطبيعه موجوداتو کي چې خلك ډېرځني ببرېږي اودېولونه توضيح کېدونکو پېښنو پړه پرهغه باندي اچوي ، يوهم شيطان دئ. شيطانان هغه ارواوي دي، چې دهغوکسانو دډاروونکو يامبالغه آمېزه بيانونو له مخي چې فکرکوي شيطان يې ليدلی دئ . په بېلابېلو څېروڅرګندېږي . ددوی په فکرشيطانان ترلمرلوېدووروسته دهربوټي ياګاري ترشاپټ وي . دوی په دې باورهم دي، چې شيطانان په شپه کي دانسانانو دډارولو اودخپلو بدشکله څېرو دښوولو له امله دهغوی دخوب خونو ته هم ورځي . همدغه علت دئ چې خلك دخوب پروخت سراوټول بدن په تلتك يا روجايي کي پيچي . دوی په خونه کي يوازي نه بيديږي . هرومروبه څوتنه يوځای وي اوکله چې به مي ورته وويل زموږ په هيوادکي هرڅوك دخوب جلاکوټه لري اوکه ممکنه سي، ماشومان لاهم دشپې په جلاکوټه کي يوازي بيدوي ،زياتره به هك پك راته پاته سول . دوی وايي چې په جلا کوټه کي يوازي دشيطان له ډېري څخه نه څملي ، څکه ٥٠١٠ څوك ساتي ، بلکی وايي چې په موږکي دتنهابيدېدلو رواج نسته اودا عاقلانه هم نه ده ، څکه که په شپه کي څوك يوازي بيده وي ښايي روې دي ورته راسي . زمايوه نوکر يوسهارپه ډېريقين سره راته وويل چې برايي شپه يې چارپايي (کټ ) له مخکي پورته اوله ده سره يوځای په هواخرخېدله . تـردې اندازې، چې

په پای کي ورسره سربدااله سو اوپه همدې وخت کي يې ډېرعجيب وغريب رغونه اوربدل . کله چي ماورڅخه نوري پوښتني وکړې ، راته يې وويل، چي ده سترګي پټې نيولي وې اونورڅه يې ونه ليدل . شك نه وچي ده خپل سرپه تلتك کي پېچلی و. په هرصورت ، ده دبلي کوټې غوښتنه وکړه اوپه هماغه کوټه کي يې له بياالستوګني څخه نټه وکړه . داراته څرګنده نسوه چي ده ته نورو نوکرانو د ساتېرې په مقصد داچل جوړکړی و اوکه دهاضمې دخرابوالي حمله پرراغلې وه اودغه تکليف يې ورته پېښ کړی و . له هغه کوټې څخه چي دی پکښې بيده و، ورروسته دنورو نوکرانو له خوادګدام کاراخيستل کېدی . هغه نوم چي دې کوټې ګټلی و، ددې سبب سوچي نورنوکران پکښې له بېدېدلو څخه ډډه وکړي .

بل وخت دشپې له خوازما ددفترد کوټې دچت ټوکرراشيوه سوی و. دايوه عادي پېښه وه خکه هغه خاوره چي دختو له بام څخه دچت پرمسطح ټوکر راتوييږي ، څه موده ورروسته دومره وزن پيداکړي، چي دټوکره يوسرياپل سر، ژرياپه خنډ راخطاسي اوټوکرمخکي ته راولويږي. اوکله چي زه دخرابی دکتلو له پاره ورغلم ، خلکو راته وويل چي دابېله شکه دشيطان کاردئ خکه په ترلو کړکيو اوقلف دروازه کي داکاربېله شيطانه بل څوك کولای سي؟ ددغه رازمنطق په مقابل کي دلايل ويل بې فايدې وه.

دشيطان په باب يوافغان يوه بله کيسه هم راته وکړه اوهغه داسي چي يومابنام له ملګرو سره تربانډاورروسته کورته راروان و. کورته دتګ لارېې په هديره کي تېره سوې وه(دلته هديرې دانګلستان په شان دېوالونه نه لري ) دشپې ناوخته و چي دی قبرونو ته ورسېد. په هديره کي ديوازي تګ تصوريې غېږې وتښتول خوبيايې هم تګ ته دوام ورکړ. کله چي قبرونو ته ورنږدې سو، ويې ليدل، چي مخي ته يې له مخکي څخه کوچنی لمبې راپورته سي اوبيرته ورکي سي . دې پېښي سخت وبېراوه اوګامونه يې چټك کړل چي ژرترقبرونو ووزي . خوچي ګوري ،مخي ته يې لو اشا(۲) ودرېده. دبل انسان په ليدوسره دده ژبه بنده سوه اوکله چي ورنږدې سو، ګوري چي دسړي سرپه شال کي پېچلی دي( ديخني په موسم کي دشپې له خواعموما شال پرسراچول کيږي ) اوستر ګي يې دستورويه شان خليږي. هرڅومره چي و اشاته ورنږدې کېږي په هماغه اندازه

هغه جګېږي ترڅوچي دده ترسراوړي اوتري تم کېږي . دی مخ ځني رااړوي اوشاته په منډه څغلي خوهغه کورچي دی ځني راوتلی و دپيښي له ځای څخه دده ترکورډېرليري و، ځکه نوده له خانه سره وپتېيله چي بيرته پرهديره ورغبرګ سي. کله چي هديرې ته رسيږي بيا هماغه اشا پرپيښيږي خوداځل ډېره عصباني وه . ده وغوښتل ځني راوګرزي چي په دغه وخت کي بيهوښه کيږي اوترسهاره پوري بياپرهوښ نه راځي . سهارګوري چي هديرې ته بيځي ورځرمه پرلارپروت دئ . په دې ډول دی وژغورل سو.

يوبل افغان راته وويل چي يوه شپه دی په ګندمک(۳) کي په يوه سرای کي بيده و اوبېله دې چي دوېښېدلوپه علت دي پوه سي، له خوبه راويښ سو اوپرځای کښېنوست . په دغه وخت کي دهغې کوټې يودېوال چي دی پکښې و، له مخه ليري سواودديوال ترشاده وليدل چي دګوره والاوو (انګرېزي عسکرو) يوه ټولی راروانه ده . دعسکروهيڅ ږغ ورږغ وکړپ وکړوپ نه و اومخونه يې دسپوږمۍ په شان تک سپين او هيبتناکه ښکارېدل. داسړی هم دده په قول ترسهاره پوره بېهوښه و.

خلک دسفنج په باب عجيبه وغريبه افسانه لري . دوی وايي چی انګرېزانو لويي خاوريني مرتباني واخيستلې اودغرو په لوړو څوکو کي يې کښېښولې . شاوخوا يې ډېري پرراوګرزولي اومرتباني يې داسي پټي کړې، چي يوازي خولې يې ښکارېدلې . ورروسته نودوی(انګرېزانو ) دغټوګاروترشاخانونه پټ کړل اوتر هغو ورته پټ ناست وو، چي اوريځي دغروسرونو ته راوړسېدلې او ورو ورو مرتبانوته ورشيوه سوې . کله چي داوريځي يوه کوچنۍ ټوټه مرتباني ته دننه سوه له خلکو څخه يوټن ورو ورو وخوځېد اوژر يې دمرتباني سر په سرپوښ پټ کړ. مرتباني يې د درو ورځو له پاره هماغسي سرپټي پرېښوولې اوپه دغه ... کي اوريځ مړه سوه . کله چي يې مرتباني ماتي کړې ، وريځي يې ټوټې ټوټې ځني راواخيستلې اوبازارته يې داسفنج په توګه خرڅلاوته وړاندي کړې. «سفنج» او «اوريځي» فارسي نوم يوراز دئ اوشايد هماغه دافسانې دمنځ ته راتګ عامل وي(۴)

دخلکوپه منځ کي د فال کتونکو (Astrologers ) بازارښه تود دئ . ديوه

سفرياکوم بل نوی کاردپیلامې له پاره دبختوري ورخې دښوولو په باب ددوی پرېښګوېی باندي کلکه عقیده ستـه .امیراودشاهي کورنۍ غړي هریوځانته فال کتونکي لري چې دهري مهمي چاري دپیل کولو له پاره دبختوري ورځي په باب مشوره ورکوي اوپرځنګ یې دراتلونکو پېښو اټکل هم ورته کوي. خوددوی پېشګوېی ترکومه ځایه چې مااورېدلي دي، مبهمي اوناڅرګندي غوندي دي . البته دوی دامیردراتلونکو پټوحالاتو دلوستلو لازم مهارت لري . فال کتونکي دخوبونو تعبیر هم کوي څکه خوبونو ته دخبرداری ورکولو دعلایمو اودخلکو دلارښونو په سترګه کتل کیږي . داچې امیرترڅلوروښځوزیاتي چې قرآن اجازه ورکړې ده، نوري ټولي ښځي طلاقي کړې، دهمدغه شان یوه خوب نتیجه وه . حتمي نه ده چې دراتلونکو حالاتودپیشګویې کولو له امله دي هرڅوك هرومروعزت اوثروت ته ورسیږي . ماده‌یوادیوې لیري سیمي درې تنه ولیدل، چې پریوه ټاکلي نېټه باندي یې په هیواد کې دیوې ستري فاجعې پېشګویي کوله اودهمدې له پاره ځومیاشتي وړاندي دامیرحضورته راوستل سوي وو . دامیرحالت چې تل پریوه قرار نه وي . ددغو خلکو دوړاندي کېدو پروخت دبدشګون لورته مایل نه و اوحکم یې وکړ چې پېشګویي کوونکي دي ترهغه وخته په زندان کي وساتل سي چې دوی دفاجعې دپېښېدو له پاره ټاکلی دئ . که یې اټکل سم وخوت ، مکافات دي ورکړه سي اوکه نه ، مړه دي سي . پېشګویي سمه ونه ختله اودامیرحکم پرځای سو.

فال کتونکي دخلکو تالې ګوري اوپه ورقوباندي دراتلونکي په باب خبري کوي . دوی دغه راز دراتلونکوپېښو دپېشګویی له پاره دجادو (Black art ) له نورو وسایلو څخه هم کاراخلي . دوی په ډېري تېزی سره نومونه اوبختونه بیانوي اوکه یووخت ددوی له پېشګوییو څخه یوه رښتیاوختله ، نوبیا ددوی هري وینانه په هروخت کي دحقیقت په سترګه کتل کیږي اوکه یې پېشګویی دراتلونکو واقعي پېښو پرخلاف ثابتي سوې ، بیاهم خلك پېشګویی کوونکو نه ملامتوي . اوپرځای یې پړه پرخپلو ځانواچوي څکه پېشګویي ګاني تل لږیاډېري مبهمي اوناڅرګندي غوندي وي او خلك فکرکوي چې دوی دفال کتونکو الفاظ سم تعبیرکړي نه دي اوداکار دحادثي دسم پوهېدلو خنډګرځېدلی

دئ . دخوش باورئ دغه راز سفسطه یوازي دافغانانو په منځ کي نسته نورهم په اخته دي.

خرافات اومذهبي عقایددنورو هیوادو په شان سره ګډ سوي دي اوکه دیوه ماشوم ذهن اوجسم په هر نسبت وستایل سي ، سمدلاسه باید (نام خدا ) وویل سي اوله شیطانه وژغورل سي اونظرنه سي . شیطان نظر (بدنظر ) ددوی په فکر په ځینوکسانو کي هم سته اوددې له پاره چي له ناوړه اغېزې څخه نجات وموميي ، دخدای نوم باید وویل سي . دحیرانتیاوړ داده چي دغه دشیطاني نظرڅښتنان بیاملامتیږي هم نه، خوبدبخته(نحس ) ګڼل کیږي خو دهغوکسانو په باب چي دناروغانو اوشل وشوړو دعلاج مهارت لري ، ویل کیږي چي لاس یې بختوردئ.

دوی یودود (رواج ) لري چي ترنوروزیات بایدوستایل سي ، اوهغه داچي ماشومان دکولرا، زلزلو اونورفاجعودمخنیوی له پاره دببلابېلو کوروپرېاموباندي سره راغونډوي او په ګډه دوعاوي په کوي داځکه چي ماشومان ترلویانوبې ګناه دي اوددوی دوعاوي سملاسي قبلېږي . دکوروبامونه سره نښتي دي اوداچي ماشومان پرببلابېلو باموپريوه لیکه ولاړ وي اوپخپلو نازکو اوتنکیو اوازونو سره دوعاوي کوي، پرهرچاباندي اغېزه کوي . په تېره بیاچي فاجعه دي کولرا وي هرڅوك ددوی ددوعاوو قبلېدوته ډېرهیله من وي . په کابل کي چي دکولرا ناروغي راسي. څومیاشتي دوام کوي اوداوخت تربل هروخت زیات داند ېښني وړدئ .

دکابل داکثریت خلکوخواړه ډېربسیط اوساده دي . اوهغه له وچي ډوډۍ څخه عبارت دي . وچه ډوډۍ بیضوي ډوله اوتقریبا دوولس انچه اوږده اونیم انچ پنډه وي . هغوی چي وس یې رسیږي له وچي ډوډۍ سره مستې اوپنیرهم خوري اوکله کله غوښې ، ترکاري هم پخوي .چینایي شین چای هرکله له خوړو سره یوځای چښل کیږي . دابه ډېرغریب اوبې وزله سړی وي چي دیوې چاینکې چای له پاره دي درې پیسې (نیم پنس ) تادیه نه کړای سي اوکه پنیر خښي وباسي خونوبیخي یې باید وس ولري . په دوبي کي مېوه پریوانه اوارزانه وي. ترکاري هم دغه راز. کاهو په پراخه پیمانه کرل کیږي . دوې پیسې یوه سړي ته



دغریبانو د واده مراسم ـ زوم او ناوې ـ ترشایې نجلی دناوي جامې پسې وړي

(دمولف رسامي)

دپوره اندازې میوې اوترکارۍ درانیولو له پاره سم کفایت کوي اودمېوې په موسم کې اکثره خلک په کوچوکې لیدل کیږي چې مېوې، کاهو او رواش خوري . رواش په غرو کې خودرویه شنه کیږي.

ډېرغریب خلک زیاتره په توتو پایي(ژوندکوي ) اودژمي دمصرف له پاره یې وچوي . هزارګان چې ډېرسپماکوونکي خلک دي، دذوبي په میاشتو کې له ونو څخه له رالوېدلو توتوپرته بل څه نه لري، چې ژوند په وکړي . توت تولول عام دي . دتوت خورك چاته تبه پېښوي په تېره بیاهغو کسانو ته چې ورسره عادت نه وي ، تبه یې ډېره سخته وي چې زیاتره څني مري .

کوچیان چې له جېسي(چټ ) توکم څخه دي (۵) کورونه نه لري په هیوادکې له خپلورمو اواوښانو سره تل سفرکوي . په تجارت بوخت وي ، له یوه ځایه بل ځای ته مالونه اوسامانونه لېږدوي . دوی ډېرسرسخته توکم دی . دجوارویه ډوډی(سوړسك ) دمېږواوبزو په شیدو ، پنیراووښو چې اومه یې خوري ،ژوند کوي. دوی دهیواد دنورو خلکوپه نسبت سابه چې خودرویه شنه کیږي، په زیاته اندازه خوري.

دکلیوالو افغانانو خواړه اصلا ښوروا و ډوډی ، مستې ، شلومبې ، دپېروي شیدې اومېوه ده . دپېروي شیدې ددوی دخوښې خواړه دي اویوافغان کولای سي په یوه ناسته کي ښه کافي اندازه وچښي .

که یواوښ ، غوایانورځاروي ناروغ سي اومړینه یې حتمي وي، غاړه یې وربرې کوي (حلالوي یې ) اومروجه دوعا وربانديي واي چې حلال( خوړلوته قانوني ) سي. غوښه یې یاپلورل کیږي یادخښتنانو له خواخوړل کیږي . مایووخت یومرګي حاله اوښ ولید چې ببخي هډوپوست و، د رود پرغاړه یې دښارخواته راپه مخه کړی و اوغوښتل یې مارکېټ ته نزدې یې ووژني چې غوښه یې ښه ترابسمباله سي . داسي ښکارېده چې غریب حیوان بایدپه هره لحظه کي چې یې خښتن وغواړي ، راچپه اومړسي.

دلوړي طبقې خلك اومعتبره کسان ډېرخوندورخواړه خوري چې سرېې پلواوکباب دئ . داورروستی یې غوښه په مرچ اومالګه کي ښه اخته کوي اوپه سیخانوکي یې پراوربانديي کړوي . (د پسه ورون چې پراور وکړول سي،هم یوراز

کباب دئ ) پلمو ډول ډول قسمونه لري اوله وریجو ، مسالواوغوړنو ښخه جوړیږي . وریجې اوغوړني جلا جلا ایشول کیږي اووروسته بیاپه غاپ کې سره ګډیږي . ترشي باب ، اچار، شیریني باب ، میوه اوډوډۍ هم خوړل کیږي . دغه رازترغذاوروسته چای هروخت تیاري اوله چایوسره چلم هم په دوره کې وي . ټول باید دغه تمباکو وڅکوي . کابلیان هره ورځ زیاته اندازه چای مصرفوي اوهروخت چې ورورسیږي ، څښي یې .

ښځې دنارینه وو په شان چلم څکوي . چلم(Hookah ) ته ورته دئ خونل یې دغبرګیدوړنه بلکې سیده وي. تمباکو ددوی دخپلې مځکې وي اوډېرتوندبوی لري ترزیاتې اندازې دسوځیدونکې ګوډېبوی ته ورته وي.

افغانان هرغټ، چاغ سړي ښکلي اوقوي سړی بولي . اوچاغښت دروغتیا اوښکمرغی دواړونخښه دي. ټول خلک چې وس یې ورسیږي، ترېزې پوري خورک کوي اوپه نتیجه کې یې زیاتره نارینه اوښځې تراندازې زیات چاغ(پنډ ) دي. داروانباد امیرلوی‌طبیب(۶) دومره ځیټورو، چې پرلاري تللای نسوای اوپراوړو به یې وړی . یوبل سړی دومره پنډ و چې دخپل ځان کارېې لاهم نسوکولای . مینځیانو به دکوچني ماشوم په شان لمباوه . ددغه سړي به باب ماته وویل سوه چې یووخت یې دخپل بدن ډېرکرغیړن بوی احساس کړاوهرڅه چې یې وکړل ، بوی ورك نسو . په پای کې بوی دومره ناوړه سو، چې مینځیانو ته یې حمام ته دبېولو اوغسل کولوسپارښت وکړ. کله چې یې له حکم سره سم لمباوه . مینځیانوته څرګنده چې دتعفن(بدبویي ) سبب هغه مړه چونګښه وه چې دده دځیټې په یوه درزکي بنده سوې وه . هیڅ شك نه و چې دادي دسړي وروستی غسل وای اومرګ ته دي یې رسولی وای.

نصوارکول په شتمنو خلکو کې عام دي. غریب خلك محلي تمباکو کاروي، په ناسمه توګه یې میدوې اوپه خولو کې یې اچوي . نورکسان بیاداسي هم سته چې له هندوستانه دراوړل سوو نصوارو دکولو وس لري . دوی دېرې نصوار غوره کښي .

یوازې په لویو کوروکې بخاری سته هغه هم دهغو محدودوشتمنوکسانو په کوروکې، چې دژمي په میاشت کې دخونو دتودولوله پاره دزیاتې اندازې لرګیو

د رانیولو وس ولري . دټولوکوروډروازې اوکړکی سمې اینبوول سوي نه وي اودبادچلېدل هغه خوني لاپه نه زغمېدونکي توگه سړوي چي غټ اوړېکښې بل وي . یوازې هغه کسان مستریح وي چي په پوستینونو کي ناست وي .

دسونگ موادو دلگښت لږولواوشپې وورخي له خوادخانونو تودولو له پاره خلك مجبوردي«صندلی» ولري . دایوډول مربع شکله لرگین مېزدئ چي دخوني په منځ کي اینبوول کیږي . ترمېز لاندي یوکوچنی سوری لرونکی اوسپنیز بکس (منقل) پروت یا پرېښوولاړوي اوسکاره پکښې سوځي پرمېزدپاسه یوغټ تلتك غوړېدلی وي چي میزاوداورمنقل دواړه یې پټ کړي وي اوټولو اړخونو ته دومره غزېدلي وي چي دخوني دفرش زیاته برخه یې نیولې وي. په اوسپنیز منقل کي سکاره تازه کیږي اوکله چي بنې سکروټې سي ترمېزلاندي یې ږدي. داورتودوخه دتلتك ټولوبرخوته خپرېږي اوډېرزیات یې گرموي . تردغه رازپوښښ لاندي ، سکاره ورو ورو بلیږي اواورڅوساعته دوام کوي . دتلتك پرشاوخوانری نیالی اوبالښتونه اینبوول سوي وي . دخوب پروخت یا د ورځي له خوادناستي په وخت کي کارترې اخیستل کیږي . تردغه تلتك لاندي ټوله کورنی ، پلار، مور ،زامن اوماندینې گاني یې، لوښي ، ماشومان . عمه گاني وخاله گاني او نورخپلوان دشپې له خوا بیدېږي اودڅوپیسو سکروټه بیه ډېري سړې شپې تودوي . دصندلی یوتاوان دادئ چي داورپه لوګړي سرکي دسکرو دودزیات وي اوډNausea ، سردرد اوکله کله دځپه کیدلو سبب کیږي. کوم کسان چي دورځي له خواهم له صندلی څخه کاراخلي اودباندي سړې هواته وزي اوراوزي، زیاتره دروماتېزم په ناروغی اخته کیږي . صندلي بل اخلاقي تاوان هم لري اوهغه داچي ټوله کورنی ، نراوښځي په یوه کوچني چاپېریال کي تریوه تلتك لاندي بیدېږي . همدغه علت دئ چي څیني کسان صندلي«دشیطان بازی ډگر» بولي . عسکرهم په خپلوکوټوکي له صندلی څخه کاراخلي . دوی په تلتك کي داسي ناست وي چي پښې یې قات، سراونوربدن یې په بېروکوټونوباندي پټ کړی وي . په دي ډول ډېرسخت ساړه بادپه مقابل کي دخان مدافعه کوي . کله کله هغه ساتونکي عسکر، چي پیره کوي ، دیخنی له لاسه ترمرگه ورسیږي .

په کابل اونورولویوښارونوکي وخت د «لمریزگړی» Sundial (٧) په واسطه

ټاکل کیږي خوبیاهم دوخت دورځني توپیردمعلومولو له پاره په فارس کي چاپ سوي جدولونه موندل کیږي . ددغوګړیو په واسطه دوخت معلومول په تخمیني ډول دي ځکه ګړۍ دنوروعرض البلدو له پاره جوړي سوي اوهغه دواقعي وخت پرځای دمقناطیسي شمال پرلورعیارسوي وي . یوه ورځ مادواقعي وخت ترمعلومولو وروسته امیرته وویل چي دغرمي توپ(۸) ترخپل وخت شل دقیقي وړاندي وویشتل سو، خوامیروویل چي دابنه کاروسو ځکه پرخلکو به دماپښین لمونځ نه قضاکیږي . هره ورځ خلکو ته دغرمي وخت دتوپ ویشتلوپه واسطه اعلامیږي اوهغوی چي ساعتونه اوګړۍ لري ، ورباندي عیاروي یې . په نسبتي توګه ډیرلږخلك دساعت وخت ویلای سي . زیاتره یې دیوساعت یانیم ساعت وخت په توپیرچندانې پروانه کوي. دغه بې پروایي دعدودنو په برخه کي هم ستړه .خلك په عمومي ډول ترشلو پوري حساب کولای سي اوترهغه لوړعدد په«تومن» سره ښوول کیږي . له تومن سره نوراضافي شمېرعددونه هم بیانیږي . ځیني خلك حتی داوونی ورځي نه پېژني اوبایدورته وویل سي چي پلانی ورځ ترنن دومره ورځي وروسته ده .

په افغانستان کي مینه اواده کول داروپایي هیوادو له جالبو پېښوسره دزیاتوالي‌خونو له مخي توپیرلري . یوغټ توپیریې ذادئ چي نارینه دواده تروزځي وړاندي خپله نجلۍ لیدلای نه سي په داسي حال کي چي هغه به یې ماندینه وي.په افغانستان کي نارینه دخپلو مېرمنواودکورنیو دښځوپه باب خبري نه کوي اوله سړي ځخه دهغه دماندینې په باب پوښتنه یورازسپکاوي ته ورته عمل دئ اوله هغې سره دیورازاشنایي ځرګندونه ده . په دغه رازشرایطوکي په دي باب دیوه نارینه احساس دمستقیم پوښتنلو له لاري ځرګندېدلای نه سي چي دی له ځه رازنجلۍ سره غواړي واده وکړي . په دې برخه کي چي راتلونکې مېرمن به یې ځه ډول ښځه وي ، دنارینه دتشویش ، هیجان اواندېښني تصورځوك کولای سي . ځکه ښځي دنارینه وو په ځبردرنګ اوبڼې له مخي توپیرلري . یوه ډېره بدعمله ښځه به دحوري په شان ښکلې وي خویوه ډېره بدرنګه به بیاپه افکاروکي ډېره ناولې نه وي .

دمعتبرو خلکو په منځ کي دهلك ونجلۍ دکوزدوپېښي مستثنی دي ځکه

هغه دکورنیو دمشرانو له خواتنظیمیږي . کله کله خوانان هم له هغې برخي سره داړیکو ټینګولو چاري پخپله تنظیموي چي بایدواده ورسره وکړي. معمولاً نارینه دبلې برخي دغوښتلو ارزوله خپلوملګرو سره مطرح کوي چي دغه اراده یې دډېرژردخلکو په منځ کي تیته سي . بیانوده ته دخلکوله خوادنجونو پېشنیهادونه کیږي اودیوې یابلې په باب مباحثه څه اسانه کارنه دئ څکه راتلونکی خسردخپلي لوردبنکلا اوباکفایتی په بې ساري اندازه لوړوي اودهغې په بدل کي دپیسو یانوري مبادلي غوښتنه کوي . دنارینه په باب مهمه نه ده چي ازادخیاله وي که تندخویه .

په هرصورت ، کله چي جریان دې حدته ورسېد ،چي نارینه دنجلی دکورنی ددریغ اودهغې دراتلونکوغوښتنو په باب ډاډه سو اوزړه ته یې ولوېدل چي دنجلی پلارخپلي غوښتني وروستی اندازې ته راکمې کړي دي ، بیانوښځینه خپلواني ورلېږي چي نوري ستونزي وڅېړي . ددوی پرېکړه دنورومسایلود ډاډمن حل سبب کیږي اومعامله سرته رسیږي . کله چي تړون بشپړسو ، بیانو دکوزدې محفل اوژرياوروسته دواده مراسم جوړیږي .

د واده مراسم او په هغه کي دلګښت اومېلمستیا موضوع د تړون کوونکوکورنیو په بډایي اودریغ اړه لري . دشاهي کورنی دغړو اونورولوړرتبه خلکوپه نظرواده د درو ورخوتماشه ده چي یوزیات شمېر خپلوانواودوستانو ته بایدپکښې مېلمستیاورکړه سي . دغه راز په نڅاګرونجونو ، موزیك اونوروشیانوباندي زیاتي پیسې ولګېږي . که څه هم لګښتونه داشخاصودثروت اوبډایي له لحاظه توپیر سره لري خوپه ټولوحالاتو کي هدف داوی، چي داړوندوخواوو ډېرزیات عزت اودرناوي وسي .حتی که په پوروي که په دار، باید ډېره ښه تماشه جوړه سي . په دې برخه کي دوی دلندن دشاوخواخلکو سره دومره زیات توپیرنه لري .
کله چي دواده مراسم پای ته ورسیږي ، ناوې په یوراډولی( جوپان ) کي دزوم کورته بېول کیږي . پخپله زوم له خپلوزیاتو خپلوانو اودوستانو سره چي پراسونو سپاره وي ، له ناوي سره بدرګه روان وي اودلاري په اوږدوکي دتوپکو ډزي کوي. ددوی په مخ کي دډول اوسورناډله رهي وي اودهغوی په مخ کي نڅاګرنڅاوي کوي . دتوپك ډزي دپخوانیوختویادګاردئ. پخوا چي به یوسړي



د بدایانو د واده مراسم ـ ناوې په ډولۍ کې ( د مؤلف رسامي )

دخپلوملګرو په مرسته غوښتل خپله ناوې دوسلې په زوريا په کوم بل چل ترلاسه کړي نوبه يې دآس پرخين خپل مخ ته کښېنوله اووبه يې تښتوله . خپلوان به يې په تعقيب ورپسې روان وو.

دغريبوخلکو ودونه دغه رازننداري نه لري اوناوې وزوم دواده مراسمو ته په پښوځي اوراځي ، څکه دوی دملاراوستلو وس نه لري اودوی پخپل نکاح ځای ته ورځي(۹) . دوی په کوڅه کي کله کله ليدل کيږي ، زوم دمخه اوناوې په پسې وي(ښځه ترنارينه وړاندي اوحتی څنګ پرڅنګ تلای نسي ) اوپه هغې پسې يې يوې نجلۍ ملګري ياله دوستانو څخه يوې نجلۍ کالي چي په يوه بوخچه کي تړلي اوپرسريې ايښي وي ، ورسره اخيستي وي . دوی په مخ کي يوسړی له ډولك (محلي ډول ) سره اويوبل له نری تولکي سره روان وي . دواړه خپلي هڅي کوي چي له خپلووسايلو څخه په ممکنه اندازه اوازونه وباسي اوپه دي ډول دواده جريان ژوندی اومست وساتي . په دې ډول هغوی دزوم دغريبانه کورپرلورلاروهي .

ماته په کابل کي وويل سول چي په خينوافغاني قبيلوکي دواده يوپخوانی رواج سته چي ددوی له رواجونوسره توپيرلري. په هغوی کي که کوم نارينه وغواړي له يوې نجلۍ سره واده وکړي ، ده ته اجازه ورکول کيږي چي دنجلۍ له پلارکره دخه مودې له پاره ژوند وکړي اوله نجلۍ څخه دماندينې کارواخلي. که په نجلۍ کي دمورکېدلونښانې ځرګندي سوې ، نوبيا ودوی اوکه ځرګندي نه سوې ، سړی آزاد دئ چي واده ورسره کوي اوکه نړې جلاکيږي اوبل ځای دکومي بلي داسي ماندينې تلاښ کوي چي دکورنی جوړولو وړتياولري (۱۰) په افغانانو کي دزوی پيداکېدوهيله ډېره قوي ده . په داسي حال کي چي دزوی زېږېدل له ستري خوشالۍ سره يوځای وي ، خودنجلۍ داپه خاموشۍ سره تېرېږي، دنجلۍ پلارډېره ناخوښي ځرګندوي اوپه دغه وخت کي نه غواړي خپله ښځه ووينې اوکله چي يې دوخت په تېرېدو سره قهرسوړسو، بياورسره ګوري.

دمړي ترښخولووړاندې مراسم داروپايانو مراسموته ورته دي ، يوازې دومره توپيرلري چي مړي بايد په هماغه ورځ چي مړسوی دئ. ښخ سي اوکه يوڅوك په شپه کي مړسو. بايد په سبا سهارخاورو تــه وسپارل سي .کله چي څوك مړسي،

ملایان ورته راوستل کیږي. هغوی مړي ته غسل ورکوي (داکارمعمولادورځرمه وبالې پرغاړه سرته رسیږي) ، دښخښدلو په ټوکرکي یې پیچي اوښخښدلو ته یې تیاروي . دغه ټوکرته «کفن» وایي چې زموږ «Coffin» (۱۱) ته ورته لغت دئ . له تابوت څخه کارنه اخیستل کیږي . کله چې مړی ښخښدلوته تیارسي، ملایان مړي ته دوعاوي کوي چې په هغه کې دمړي ټول خپلوان اونورحاضرکسان ورسره یوځای برخه اخلي.خپلوان یې مړی ددې له پاره گوري چې شخص رشتیاهم مړدئ کنه ؟ وروسته دمړي جسد پرچارپایي ږدي اودهدیرې پرلارنژدې مسجدته یې وړي . هورې مړي ته لمونځ ورکوي اونوریې نودښخښدلوځای ( هدیرې ) ته وړي . په هدیره کې یې قبرمځکي له مخکې تیارکړی وي . مځکه یې ددریو فوټوپه اندازه کینلې ،په منځ کې یې دمړي دجسدله پاره لحدجوړکړی وي . ددې له پاره چې دقبرډکولو په وخت کې خاوره پرمړي ونه ولوېږي ، پرلحد باندې دډبروغټې ټوټې ږدي . مړی په لحدکې پرېوه بغل پرېباسي ، داسې چې مخ یې دمکې پرلوروي چې په دې ډول دقیامت ورځ په اسانی سره وویښي . وروسته قبرډکوي . دمسلمانانوپه عقیده دقیامت ورځ له مکې څخه پیل کیږي . د قبر پر سرباندې ددرو فوټو په اندازه هواره ډبره جگه دروي . دغه ډبره زیاتره زیږه اوناتوږلې وي مقصد هره ډبره چې شکل یې ددغه ځای له پاره مناسب وي ، ورباندې دروي . دمهمو کسانو پرقبرونوباندې منظمې توږل سوې ډبرې چې دمړي نوم پکښې کینل سوی وي، دروي . داکارددې له پاره کیږي چې دخلکوقبرونه په نخښه سي. خینې دغه ډبرې دامیرمرحوم له خواخپل تعمیرته نقل سوې څکه یوخوبې کیفیت ډېرښه اوبل یې رنگ ښکلی سپین و . په دې ډول دادود په عمل کې له منځه ولاړ(۱۲)

ترښخښدو وروسته دمړي خپلوان اودوستان دمتوفي شخص په کورکې سره راغونډیږي اوهورې یې دکورنی له خواعزت کیږي. ټولو هغوکسانو ته چې دتسلیت له پاره راغلي اوفاتحه (مړي ته دوعا کول) یې ورکړې وي ، چای اوخواړه تهیه کوي. فاتحه کورته دراتگ په وخت کې دودده . دمړي دمراسمو اودغه رازد واده دمراسمولگښتونه خورازیات وي اوډېرکسان یې نبستمن کړي دي .که یې په وس پوره وي که نه ، هڅه کوي چې تر نــــورو کسانو یـــا خپلو

ګاونډیو زیات او ښه لګښتونه وکړي ، ځکه نواوسني امیردتولو دغه رازلګښتونو دبندیدو قانون راوبوست اوحکم یې وکړ،چې ددغوعمومي مراسموپرځای دي،خصوصي مراسم جوړسي اوبوازي دي دمړي خپلوان پکښې مېلمانه سي.

کله کله داسې هم پېښیږي چې مړی شخص دومره غریب وي چې دکفن رانیولو له پاره یې کافي اندازه پیسې چې صرف یوشلینګ یازیات وکم کیږي . موجود نه وي . خپلوان یې مجبورسي بازارته ولاړسي اودرانیولو پیسې یې له بل چاځخه وغواړي . داحالت اوس زیات پېښیږي ځکه خلک کال په کال نېستمن کیږي .

# دشپېرم څپرکي لمنليکونه

( ۱ ) پوستينچه يوراز ژمنی واسکټ دئ ، چي داستر پرخای يې د پسه يا اوزګړي پوست ګنډلی وي . دغزني پوستينچې مشهوري دي . ( پښتو ژباړونکی )

( ۲ ) د « اشا » کلمه په کندهار کې د ( بلا ، ګړ حيوان ) لپاره کارېږي . جمع يې « اشاوي » دي . شاعر وايي :

پورته که هرڅونه پرسبدلي ماجراوي يو

پټ ترلباسو لاندي موږدغسي اشاوي يو

( ۳ ) ګندمك كابل ته نږدې ديو کلي نوم دئ . امير محمديعقوب خان په همدغه ځای کې له انګرېزانو سره ملي ضد تړون وکړ ( ۱۸۷۹ ع ــ ۴ جمادی الثانيه ۱۲۹۶ ق ) . دغه تړون د ګندمکتړون په نامه يادېږي . ( پښتوژباړونکی )

( ۴ ) دغه خبره ماته معلومه نه سوه ـ اوريخي ته څوپه پارسي«ابر» وايي؟ (تحقيق غواړي )

( ۵ ) افغاني کوچيان له چېسي توکم سره نژادي اړيکي نلري . ( م . هوتك )

( ۶ ) دغه طبيب حكيم عبدالرشيد نومېدئ (م.هوتك)وګورئ : (At the court of the Amir دوهم چاپ ۲۶۴ لندن ۱۹۰۱م كال ) (م.ه)

( ۷ ) دغه انګرېزي لغت ته يې په انګليسي ــ پښتو قاموس کې کښلي دي « لمريزه ګړی ( چي دسيوري له مخه د درجو په اساس وخت ښيي ) ، دلمر ساعت . »

( ۸ ) دغرمي توپ دافغانستان په زياتره ولايتو کې ويشتل کېدی . په كابل کې دتوپ ويشتلو ځای اوسني باغ وحش ته مخامخ دګذرګاه سړك وځنګ ته د غره پر سر جوړ سوی و . ( ژباړونکی )

( ۹ ) دا رواج مادچاله خولي نه دئ اورېدلی . (م.هوتك)

( ۱۰ ) دادودهم مادېل چاله خولي نه دئ اورېدلئ . ښايي مقصديې«ګردني» وي اوګردني ترواده دمخه له ناوي سره يوځای کېدلو ته وايي . البته دګردنو په وخت کې دهلك ونجلی نکاح تړل سوي اوپه اصطلاح مېره وماندينه سوي وي(م.هوتك)

( ۱۱ ) Coffin دمړي تابوت ته وايي ( ژباړونکی )

( ۱۲ ) دا دود له منخه نه دئ تللئ اواوس هم دقبرو دسرشنختې خورا ښکلي جوړوي او په خوشخطه ډك باندي دمړي لنډه پېژندګلوي پکښي کينل سوي وي (ژباړونکی)

# اووم څپرکی

## امیرعبدالرحمان

دحکومت جوړول ـ له قدرت څخه ناوړه استفاده ـ دامیرخواړه ـ دچنبلو اوبه اوTaster ـ دجګړې له پاره تیارعسکراواسونه ـ دامیرعادتونه ـ دامیرمشغولا ـ ملګري اونور ـ دانګریزانوپه نسبت د امیر احساسات ـ داپرېدوپاخون اودBoer دجګړې په باب دامیر نظریات ـ دامیرجګړه ییزه چلبازی

---

په افغانستان کي دحکومت سیستم مطلقه شاهي دئ . له بنه مرغه دنړۍ یوازي په یوڅوبرخوکي دغه رازحکومتونه سته ، ځکه دغه رازحکومت ډېربنه شیان ډېرو خلکوته نه ورکوي .

په افغانستان کي لڅامیرپرته بل څوك داعدام حکم نسي ورکولای . له ده پرته بل څوك دهیواد دکورنیو چارو اوله نوروهیوادو سره دسیاسي اړیکو په ارتباط هیڅ رازمهمه مسله نه حل کولای اونه پکښې ګوتې وهلای سي . له بېلابېلووزارتو اودفترو څخه ټولي مهمي راولاړي سوي مسالې دوروستي قضاوت له پاره باید ده ته وروړل سي . دهیواد په بېلابېلو سیموکي ددولتي خدمت له پاره ټول افسران اوسرکاري مامورین دده له خواټاکل کیږي اومقرریږي . ټول بندیان په هرتورچي تورن سوي وي باید دده له خوامحاکمه اوبندورته وټاکل سي . ددغووظایفو پرځنګ یوزیات شمېرنوري مسالې هم سته، چي دی بایدپاملرنه ورته وکړي . په هغوکي یوازي دجاسوسانو درپوټونولوستل څوساعته وخت نیسي . له دې څخه څرګندیږي یوڅوك چي دغه ټول وظایف مخ ته وړي ، هري مسالې ته پاملرنه کوي اودهیواد دګټو په ارتباط هیڅ یوه مهمه موضوع له نظره نه اچوي ، باید دهري مسالې داساسي ټکو په درکولو کي دزیات سرعت اودبېسارو کاروله پاره دپوره مهارت څښتن وي.

امیرعبدالرحمان یواستثنایي لایق سړی اوداسي شخص و، چي خپل ټول

وخت اوپاملرنه یې هغه کارته چې سرته یې باید رسولی وای ، په خوبنی سره وقف کړې وه ، هغه کارچې له بسترڅخه دراپاڅېدو بیاتربېرته څملاستلوتروخته پوري یې دوام کاوه . له دې سره سره یې بیاهم ټولوکاروته پخپله رسېدګي نسوای کولای . دبامسولیته مامورینو نسته والی دامیرډېروخت ضایع کاوه . هغه وخت چې دهیواد په خیراوښېګڼه پوري تړلومسالو ته بایدوقف سوی وای. هغوی دموضوعاتو دتحقیق اوفیصلې په باب نه صلاحیت درلود اونه کفایت .په هرصورت دادحیرانتیا خبره نه ده چې امیرخپلومامورینو ته دډېرصلاحیت ورکولو په برخه کې محتاط و. څکه هغوکسانو چې دکوچنیو مسالو په باب دقضاوت واك درلود ، له خپل واك څخه یې په سپین سترګی سره ناوړه استفاده کوله اوزیانمن سړیوخلکو دمامورینو له ببري څخه امیرته عرض نسوای کولای . په عمومي توګه دوی حق په جانب هم وو. یوه موضوع چې غواړم اشاره ورته وکړم داوه چې داوښ یوڅښتن دښارقاضي ته دسرکاري محصول دنه ورکولوپه ارتباط وړاندي سوی و. پرسړي حکم وسوچې محصول بایدورکړي خوپه څنګ کې یې داوښ دڅښتن دوه نوراوښان هم ضبط سول څکه قاضي پخپله داوښانو تجارت کاوه .طبیعي وه چې داوښ څښتن دغه ټول جریان اوبې عدالتی لمسولی و اویوه مامورته یې رشوت ورکړ،چې امیرته ددهٔ عرض لیکلی ورسوي . په داسي پېښوکي چې یوسرکاري مامورمنځګړیتوب کوي درشوت ورکولو هڅه باید هرومرو په منځ کي وي . قاضي ته داټول جریان پرخپل وخت ټکي په ټکي رسېدلی و. دی سمدلاسه دربارته ولاړ اوموضوع یې د امیرمخي ته کښېښول اوورته څرګنده یې کړه چې دایوبخوانی مجرم دئ اوددې له پاره چې داعلیحضرت ترفیصلې اوجزا دمخه ونه تښتي ، څکه یې دوه اوښان دضمانت په توګه څني واخیستل سول . امیرته دعارض لیك تردې لېږوروسته ورسېد خودامیرذهن اړول سوی اوامیرپه قهرسوی و. ده ته دسړي په رېوټ کي داسي وبرېښېدل، چې غواړي دمحصول تحویلولو په انتقام کي دقاضي حثیت اوشخصیت زیانمن کړي څکه یوافغان تل دموضوع په باب مبالغه کوي . سړی بندیخانې ته واستول سو اوټوله شتمني یې ضبط سول . ددوو اوښانو دبیرته ترلاسه کولوپرځای یې خپل هرڅه بایلول .

امیرته که هرچا لومړی بیان اوشکایت وکړهغه یې ګټي . دافغان مغزاوذهن لومړی وارانطباع اخیستلو اوبې ځایه پلویتوب ته بیخي چمتو دئ ، په دې کي بیا ری نه وهي چي ددغه سړي په وینا کي څومره حقیقت پروت دئ . په دغه رازمواردوکي چي دلوړ قدرت دخاوندانو پرخلاف عرض وسي، وعرض کوونکي ته زیاتره ستري فاجعې پېښیږي . دغه سبب دئ، چي خلك دمامورینو پرخلاف عمل کولو کي زیات احتیاط کوي . که په رشوت ورکولو اوکه په کومه دسیسه اوچل وي هرراز فیصله چي ترلاسه کولای سي ، ترلاسه کوي یې اونور خان غلی نیسي .په داسي حال کي چي مامورین سره پرسیږي اوبدایان کیږي اوپه پرله پسې دسیسه بازیو سره دومره په خان غره سي، چي په لوبه ګي تراندازې زیات ټوپ ووهي .آخرله مځکي وویشتل سي اوهرڅه له لاسه ورکړي اودژوند وروستی شپې په زندان یادجلاد په پنجو کي تېري کړي.

امیرمرحوم یوه ورځ ماته وویل چي دی پرهیڅاباورنه لري اودومره بدګومانه دئ چي خپل ښی لاس دکیڼ لاس په کړو نه خبروي . دادحیرانتیا خبره هم نه ده څکه داسي کسان چي پرچاشاوخوا راغونډوي، هرومرو بایدهمداسي احساس ولري .

بل شی چي هیواد ته ډېرزیان رسوونکی دئ ، دادئ، چي دخلکو دښېګڼي په ټولو چاروکي له همدغومامورینو سره سلا مشوره کیږي . امیرپخپله دخلکودنظریاتو اوغوښتنو دمعلومولوبله هیڅ راز وسیله په لاس کي نلري اومجبوردئ هغه څه ومني، چي مامورین یې ورته وایي . داکار مامورینوته ددې موقع برابروي، چي هرڅه دخپلو ګټو اودلچسپیو له مخي وکړي اودهمدغه خاني ګټو اوشخصي منافعود په پام کي نیولو اغېزه ده، چي زیات شمېرخلك دمامورینو ددغه شان سلوك له امله کال په کال دخپلي مځکي له کرني اوزراعت څخه خواتوري کیږي اوکوم بل خای دکومي بلي دندې په تلاښ ګرزي.

خلك وایي چي دافغانستان امیراوخلك سره ښېل دي . هلته عامه اوشخصي خزانې سته چي دواړه دامیرپه واك کي دي خوپخپله یې خصوصي لګښتونه اوهغه لګښتونه چي حکومت یې باید تادیه کړي ، سره ښېل کړي دي . مګردغه سره ښېلوالی بس پرهمدې خای پای ته رسیږي اوسخته ده چي څـــــوك دې یې

توپیرولیدلای سي. ماته ویل سوي وو، چي امیردحکومت سر دئ . خوزه چي اوس گورم نوویلای سم چي دی هم سرهم بدن واوهم نورهرڅه و. یوازي دولایتونو مامورینو اووالیانو دهغومسایلو دتعقیب تکلیف نه ورکاوه چي دهغوی خپلي شخصي گټي پکښې وې . دحکومت په گوداموکي په عمده توگه وسلې اومهمات دي، چي پخپله په هیوادکي جوړسوي یاله کوم بل ځای څخه پېرودل سوي دي . پردې سربېره دورځنی اړتیاوړمالونه هم پکښې خوندي دي. دغه راز هغه ارزښتناك سوغاتونه پکښې زېرمه دي، چي دهیواد دبېلا بېلو برخومشرانو له امیرسره دکتنې په وخت کي راوړي یادنوروحکومتو له خواورسېدلي دي . له دې ټولو څخه ستره زېرمه جوړه سوې ده . په شخصي گوداموکي ټول هغه نادر سامانونه غونډ دي، چي له هندوستانه رالېږل سوي اویوڅه یې داسي سامانونه دي چي هورې هم نه پیداکیږي . داړتیاووړځنیو سامانوپرته نورډېرلږمواد گوداموته ځي اوبیرته ترې راوزي . زیاتره شیان چي ایښوول سوي دي، وریښې هېرسوي دي . دگودامونو موادنه امیرته معلوم دي اونه یې گودامدارانو ته. ځکه دموادو لیکلی ثبت په منځ کي نسته . یوازي هغه مواد کاغذ ته رسیږي چي واقعا ارزښتناك وي.

امیرمرحوم له ماڼیو سره خاصه مینه درلوده . دده داستوگنې ماڼی چي دخان له پاره یې جوړي کړي وې ، دهیواد لومړۍ درجه ودانۍ دي چي په ډېرلوکس اروپایي ډول سمبال سوي وې . ډېرښه مېزونه وچوکۍ اونورټول فرش ولوازم یې په هند کي ورته موندلي اوپایې پخپل هیوادکي ورته جوړکړي دي. ده ډېرښېنگارکاوه، چي ټول شیان پاك وستره ومنظم وساتل سي . «وا» دهغه بدبخته غلام بچه په خان، چي په دې برخه کي به یې لټي کړې وه .

دده خواړه په حکومتي پخلنځیو کي پخېدل. دغه پخلنځي دومره زیات څارل کېدل ،چي بې له مسوله کسانو څخه نورهیڅوك ورننوتلای نه سوای . کله چي به یې ډوډۍ غابونه له پخلنځي څخه قصرته وړل اومشراشپز اوځوتنه نوروعسکریه بدرگه ورسره مل وو (ټول غابونه په یوه پلا وړل کېدل ، نه په څوپلا ) اوکله چي به غابونه دامیرمخي ته کښېښوول سول . داداشپز وظیفه وه چي له هرغاب څخه څکه وکړي او وښيي چي خواړه له زهرو څخه خالي دي . له



امیرعبدالرحمان او مامورین یې د ماښامنۍ ډوډۍ پرمهال (دمولف رسامي )

امیرسره تل څولو رتبه ماموریـن په ډوډۍ خوړلوکي ملګري اوډیوکوچني مېزشاته چي سپین ټوکرپرهواروي ، ناست وي . ددغه مېزمخ ته پرمخکه باندي یواوږد ټوکرغوړېدلی اوډپاسه وربانديي بل سپین ټوکر هواروي . دټوکره (دسترخوان) پردواړو خواوو باندي ماموریـن چارزانو یاپردوو ګونو ناست وي (پلټۍ یې وهلي وي) دامیرپه ګډون ټول کسان په ښی لاس ډوډۍ خوري، لاسونه تر ډوډۍ دمخه اوروسته پرېولل کیږي . دپلوونو اوکبابونو په شان ډېرښه اوګټورخواړه پاخه وي، چي پرټولو باندي یې مساله باب دوړولي وي . وچه ډوډۍ معمولاً افغاني (نان) وي (هوارکېک) . امیرسپینه ډوډۍ خوښوي . داډوډۍ دکوچنی ټیکلي په اندازه پخه سوې اوانګرېزي هغې ته ورته وي .

که یوانګرېز له امیرسره مېزخوري ، بېل مېز ورته ږدي اویوهندوستاني اشپزاومرستیاالان یې په انګرېزی طریقه خدمت ته تیاروي . دچښلو له پاره نوموړی اختیارلري شراب انتخابوي اوکه نورمشروبات، چي امیریې دهمدغه وخت له پاره په ګدامونوکي زېرمه ساتي . که څه هم دی پخپله هروخت له خپلي مذهبي عقیدې سره سم اوبه چښي .

دامیردچښنګ اوبه دده دنورو خوړو په شان په ډېره جدي توګه مراقبت کیږي . یوتن خاص ددغه کارله پاره ګومارل سوی وي اودهغې خوني کلي یې په واک کي وي چي دغه شیان پکښې خوندي وي . دچایومراقبت هم دغه رازوي اویوبل تن مسول لري . یوبل حکیم (ډاکتر) دټولو درملو دګډولواوامیرته پخپله دراوړلو مسولیت پرغاړه لري . ددغه خلکو مقامونه دپیسو موندلو اومعتبری مقامونه نه دي ، بلکي ډېرکړاونه ورسره مل دي. که امیرپه بدن کي کوم نوی درد احساس کړي، بیانودغه کسان ډېراندېښمن وي اوترڅو چي دامیردرد ارامېږي اوداخبره ثابتیږي چي دایو طبیعي درد دئ اوپه خوراک وچښاک کي دغفلت کولو نتیجه نه ده ، ترهغوپوري ددغوکسانو رنګونه الوتي وي اونه پوهیږي، چي امیربه ددوی دله منځه وړولوله پاره کوم کوم چورتونه وهي .

اوسنی امیرهماغه جریان تعقیبوي چي پلاریې تعقیباوه خوبه یوه یادوو بېرخوکي دهغه پرخلاف دئ اوهغه هم له نیکه مرغه پرنه څه شمار دي . دمحافظت ټول تدابیر په زیات شدت سره ترسره کیږي اودامیر دخوراک اوچښاک

مسول کسان ډېره سخته څارنه کوي .

امیرمرحوم له احتیاطي تدبیرونو څخه یوداو چي دخپلي پاچهی دقلمرو په هره څنډه کي یاکه لازمه وي ترهغه بهردجګړي یاسفرله پاره په هره شپه کي تیارو . ددغه مقصد له پاره څواسونه ( چي په هروخوساعتوکي بدلېدل ) شپه وورځ دقصر دروازي ته په څرمه طبیله کي زین کړي ولاړ وو اودسپرېدلو له پاره یې یوازي دتانګ تړلو ته اړتیاوه . په نوروطبیلو کي یوشمېر چټکي غاتري (کچري ) دسفریه وخت کي دخزانې دچلولو له پاره تیاري ساتل کېدلې. دامیردبستر (کټ ) سرته یوه الماری، چي دښیښې دروازي یې وې، ولاړه وه . په هغې کي دده ډېرښه ټوپك دکارتوسوله قطیو سره خوړندوو اوتربالښت لاندي یې دوې دري ډكي تمانچې پرتې وې . په دې ډول امیرهروخت داضطراري حالاتو له پاره امادګي درلوده . پردې برسېره دسواره وو څوکیداره ټولی چي د «حاضرباش» ګارډنومېده، دتل له پاره شپه وورځ ترقصردباندي له امیرسره دملګرتیاپه مقصد تیاره حاضره وه . دغه ګارډامیر دڅوورخو له پاره موقتي ساته ، دوی باید دسفرله پاره هره لحظه آماده وای څکه یې نوبه وظیفه کي ولاړو کسانوته په روڼ سرهٔ هوسایي زمینه ورکوله . دامیرژوند له ماجراوو څخه ډك ژوند تېرسوی و . دې ژوند ورته ښوولي وه اوپرخلکو باندي دده دواکمنی تجربې هم تایید کړې وه، چي په هروخت کي دهرراز پېښې له پاره تیاراوسېدل دهوښیاری کاردئ.

دادامیرعادت و چي دشپې زیاتره برخه یې په کارتېروله اودسهار ترڅلوروبجوورواندي یې استراحت نه کاوه . وروسته به نودورخي ددولسو اودووبجو ترمنځ وبینېدئ .. ترکالیو اغوستلو اومړی خوړولو وروسته یې دربارکاوه . دشپې له خوازیاته بیداري یې ښایي دپاڅون یادکوم خیانت له بېري عادت سوی وي. څکه په دغه راز حرکتونو باندي تروورخي ، چي ټول خلك ویښ وي،په شپه کي زیات لاس پوري کیږي . کله کله یې عام دربار په سلام خانه کي کاوه چي ترارګ دباندي په باغچه کي دحاضرینو له پاره دیولوی مخصوص دالان په شکل جوړه سوې ده . په دغه وخت کي هرچاچي غوښتلای ، دوراندي کېدو اجازه لرله اوهرڅه چي یې ویلای ، اورېدل کېدله . کـــــوم کسان، چي

غوښتل يې اميرته شخصا عريضه وړاندي کړي . دشاغاسي(۱) په واسطه چې وظيفه يې اميرته دخلکو حاضرول و، رهنمايي کېدله .خودمخه تردې چې اجازه ورکړه سي لومړی بايد دوی په دروازه کي دګارډ دکپتان اودغه راز دنورو اړوندو کسانو موافقه ترلاسه کړي وای . امير ډېرپرکاره سړی و. ټول ليکونه به ، چې وررسېدل ، کتل به يې اوترڅوچي بېدېدئ خواب به يې ورکاوه . په دې کي به يې.ری نه واهه، چې نورڅه کارونه يې ترلاس لاندي دي . هره ورځ چې به يې جامې اغوستې ، خلك به ورته راسرسول . يابه يې خپل شکايتونه ورته اوږول ، ياپه دمحاکمې له پاره ورته راوستل کېدل . دغه راز به يې دهيواد له ېېلابېلو برخو څخه دقومونو اوقبايلو استازي منل اوخبرو ته بې غوږ نيوه . ترڅوچي به يې يوکارسرته ونه رساوه ، بل يې نه پيل کاوه . کوښښ يې کاوه دهري ورځي کارپه هماغه ورځ پای ته ورسوي .

اميرپه حرامسرای کي له خپلو ښځوسره ډېرلږوخت تېراوه اودايي عادت ګرځېدلی و . کله کله به يې يومابنام هغوی ته

ورويوست . په مجموع کي يې دښځو په باب نظرډېراوچت نه و.کله کله خوبه په څرګنده توګه دښځي دژبې ، درواغوويلوته دهغې دمېلان ، په هر ارزښتمن کارکي دهغې دنه قابليت اوددروغجني ميني په باب رغېده .( دلته دوې کرښې له ترجمې پاته دي . م . هـ )

دامير مشغوليتونه اوساتېری محدود اوساده وو .دی به په پسرلي اوددوبي په سرکي څواوونی په خپلودوبنيو (تابستاني ) ماڼيو کي اوسېدئ اود ازادي هوا اودګلانو له ورمه به يې چي دی يې زيات لېوال و،خوند اخيست . باغ بالا ته به چي دپغمان پرلورله ښارڅخه څلورمېله واټن لري ، زياتره تلی . داماڼی په دوبي کي دده دزړه دخوښي ماڼی وه اودژمي ترراتګ پوري به پکښې اوسېدی کله چي به ژمی سو، بيرته به دښارګرمو ماڼيو ته کډه سو . اميرپه هره خونه کي چي و، زيات ګلان به يې درلودل . په ژمي اوپسرلي کي چي په کابل کي ګلان نه وي، ده ته به يې لــــه جـــلال آباد اونــــورو هـــــغو سيمو څخه ګلان راوړل ، چي

ترکابل به ښېښې پرتې وې اوتوده آب وهوابه یې وه . یوه ورځ زه له امیرسره ناست وم اودی دخپلو ګلانو په باب رغېدی . یوګل یې دبوېېدو له پاره وشکاوه خوهغه ښه بوی نه درلود . سملاسي یې باغوان راوغوښت . هغه په داسي حال کي راغی چي رنګ یې الوتی اوزنګنونه یې رپېدل خکه دخپلوورغوښتلو په سبب نه پوهېدی . بې له شکه چي هغه ډېرېېرېدی اوغالبا به یې دنوروپه شان زیات احتیاط کاوه، چي امیریې په بېړه بانديپوه نسي . کله چي امیرسرراپورته کړ اوباغوان یې ولید . دګلانو دنه بوی کولو پوښتنه یې تېرې وکړه .باغوان خواب نه درلود یوازي یې پروچوشونډو ژبه تېره کړه اوبخښنه یې وغوښته . وروسته امیرډېاکلو لاروچارو په باب چي باید کارترې واخلي ، ورته ورغېدی اوخبرداری یې ورکړ ،چي که راتلونکي کال ګلان ښه ورم ونلري بیانو «زه پوه سه اوته» . وروسته یې رخصت ورکړ، چي خپل کارته ولاړسي .

کله کله امیرهغه چمن ته پرآس تلی یابېول کېدی، چي دهیلیو ښکارخای دئ . خودده دپاچهی په وروستیو څوکلونو کي به یې دغه تفریح ډېره لږکونه خکه په دوامداره توګه دنقرس په ناروغی اونوروم‌ریضیو اخته و. دده کورنی تفریح شطرنج و اوپه هغه کي یې دومره مهارت درلود چي په دربارکي ډېرولږوکسانو ورسره سیالي کولای سولای . بل ساتېری یې دکیسو اورېدل اوکول و. دغه راز یې په خینو فارغووختوکي دشپې تردوږي وروسته ، دمخه تردې چي بیرته دي ددولت دمشروظایف پیل کړي، له یوه یابل سرکاري مامورسره ټوکي ټکالي کولې . په دغه وخت کي به دوی پرامیر راتاوسوي اوده به پخپله په ټوکو اوحاضرو جوابی کي برخه اخیستله .

ددربارټوکمارد امیر په نوکرانو کي یو په رسمیت پېژندل سوی غړی و اودنورو په شان به ملبس ګرزېد . کله چي به دامیرطبیعت خته و دده وظیفه امیرته ټوکي کول اودهغه خوشاله کول و . دهغوکسانو له پاره چي‌طبعه یې سمه نه وي، ټوکي اوکیسې اودنکل دبیان په ترڅ کي دلاس حرکتونه ډېراغېزمن وي. دابه ښایي دهغوهخونتیجه وه چي په ژوند کي دښخوداغېزمنتوب دراټیټولو په مقصد کېدلې . خکه ښخي هیڅکله په دغه راز ناستوکي حاضري نه وي . نارینه له نارینه وو سره یو خای ناست وي اوله خپل کورپرته بل خای ښخي نه

وینني . ټوکماران دشهزاده ګانو په ټولی کي هم وي دغوکسانو ته دامیرله خاطره چاځه نه ورلمه ، کنه دهغوی ټوکي دعسکرو په یوه بارك کي لاهم مناسبي نه وې . دامیرملګري مجلسیان یاغلام بچه ګان زیاتره دخانانومشرانو زامن دي. دغه هلکان امیرته بخښل سوي اووده دخدمت له پاره روزل کیږي . کله چي لوی سي ، بیانو ملکي ونظامي منصبونه ورکول کیږي . دغه کسان امیرته تل حاضروي ، نوري بېلابېلي دندې هم لري . ځیني دڅراغونو ومشالونو دځای پرځای کولو مسول وي. ځیني دغالي، ځیني بیادکتابوروکاغذونو اوځیني نوربیا دوسلو اونورو شیانو چاري پرمخ بیایي. هریو یې په خپله ځانګړې برخه کي دموادو دساتني اوصفایي مسول وي . په وظیفه کي غفلت اونورجرمونه سملاسي مجازات کیږي اواکثره ډېرسخت . په یوه پېښه کي له یوشمېرهلکانو څخه جامې وایستل سوې ، دونو پرتنو وتړل سول اودژمي دشپې زیاته برخه یې هورې تېره کړه . په بله پېښه کي دیوګدامدار پزه دځینو شیانو دغلا په تورپرې سوه . ټولو هلکانو باید پاکي جامې اغوستي وي اودامیرپه حضورکي باید پټه خوله وي یابې له پوغ وروغه تېرسي. دهغوی جامې ځل وېل اوزیاتره یې رنګه بخمل وي، چي دسروزرو ښایسته پټې اودپردوپه شان اشې درلودې . خولی اوبګړی یې ډېري قیمت بهاوې . اوسنی امیرچي ساده جامې اوپیکه رنګونه یې خوښیږي، پخپلو نوکرانو توري جامې اغوندي، چي دپادریانو چوخې ته ورته دي . دغه چوخې یې دترکي افسرانو دچوخې په ډول اوترهغولږځه اوږدې ګنډلي وي . رسمي مامورین زیاتره دغه رازجامې اغوندي البته پرته له هغوکسانو چي دیونیفورم اغوستلو مقام ولري . هغوی پرجامو باندي په طلایي پټو ډېرخوشاله کیږي . دامیرعبدالرحمن په دربارکي ډېرو زیاتو سرکاري مامورینو اودغه رازغلام بچه ګانو بخملي جامې اغوستلې، چي دردبارپه ورځ به یې دوی ته مردانه ښه ورکړې وه.

له ۹۷ وروسته( مطلب ۱۸۹۷ دی . م.هوتك ) انګلستان اوانګرېزانو ته دامیراحساسات بدل سول اوچاچي په دربارکي دغه حالت کوت، ځانونه یې له دغي وضعي سره سمبالول . په دغه وخت کي سردارمحمدعمرخپل میرېزی وروروسردارامین الله ته وویل، چي دپلار حضور ته دي له انګرېزي پاپېچو سره نه

خې اواحتياط دي کوي، چې په دغه راز مواقعوکې هيڅ رازانګرېزي جامې وانه غوندي . اميرانګلستان ته دسردارنصرالله خان دهيت د۹۵ کال دسفرله ناکامی څخه ډېرزيات مايوسه و . دغه سفراصلا په لندن کې ديوافغاني استازي دټاکلو په نيامت سوی و. څرنګه چې داکار دهند دحکومت دمشرپرسردمعامله کولو معنادرلوده ، څکه نودانګرېزي مقاماتوله خوا رد سو. اميردغه رازدهند دحکومت هغوليکونو هم ډردولی و، چې په سرحدکې داپرېديو د۹۷ کال داګست په بغاوت کې دده دلاس لرلو په ارتباط ورته لېږل سوی وو . ده له دغوليکونو څخه يوليك په عام درباركې چې له همدې امله دټولو مخورو کسانو په ګډون جوړسوی و،ولووست . په هغه کې په څرګنده اشاره سوې وه، چې ددغې رازپېښوبيا تکرار به دده دتاج وتخت دبايللو په بيه تمام سي . ددغه ليك ترلوستلو وروسته يې خپل خلك په دې وغندل ، چې دی يې وخپل متحدته شرمولی دئ . په دغه وخت کې يې زه ورغوښتم اوداپرېديو بغاوت اودغه رازدهغوستونزو په باب څو ساعته راته ورغږېد ،چې سرحدي قبايلوده ته پېښ کړي دي. په خاص ډول دهډې ملا، مولوي نجم الدين اخندزاده (۲) ته ډېرپه قهروځکه چې دبغاوت اصلي لمسونکی و. ده وويل تخت ته دده له رسېدلو راهيسي بغاوتونه لرسوي دي اوهرپاڅون دموټ په زورکښېنول سوی دئ ( هغه کسان چې اميرپېژني، په دې ښه پوهيږي چې د «موټ زور» څه معنا؟ ) اوددې معنا دانه وه، چې نورنو دبغاوتونو مخه ونيول سوه .داخلك نه يوازي داچې ډېرسرکښ دي، بلکي ټول ډېرمتعصيب هم دي . اميرپه دې باب چې نومووړي دپاڅونونو په لمسولو کې برخه لري، زياته کړه ، کله چې خلك يووار وپاڅېدل اولرڅه برياليتوب ته هم ورسېدل، بيانو دهرچاترکنترول وزي . دافغانانواوسرحدي قبايلو ترمنځ پخوانی شخړي اوبدی هم سته چې بايد حل سي . نوپه دي ډول هرپاڅون ده ته پخپله يوه خطره ده . پردې سربېره ، دهيواد په يوه برخه کې چې يوپاڅون منځ ته راسي ، هغه به بې له شکه په نورو برخوکې ورته پاڅونونه اوبغاوتونه زېږوي . داوده دټينګښګي اداري اودهغو خلکو په وړاندي، چې دخلکو دلمسون په تلاښ کې دي ، دسختو روشونه نتيجه ده، چې هيواد يې ارام ساتلی دئ .

اميرووېل دهغې ملاهيڅوك نه پېژني، چي دکوم هيواد دئ څکه دده اړيکي ناڅرګندي دي . دشېرعلي په پاچهي کي ملا ته اجازه ورکول سوې وه چي له خلکو سره دخپل زړه دخوښي کارونه وکړي اوپخپله خوښه بغاوتونه اوپاڅونونه ولمسوي . په هرصورت ده (امير ) پخپله څېړني وکړې دملا دفعاليتو لاري چاري يې کشف کړې اودهغه دنيولو ترتيبات يې برابرکړل .خوملاته پرخپل وخت ټول طلاعات ورسېدل اوسرحد ته وتښتېدی . هورې يې سمدلاسه شينواري اوتورقبايل دده پرضد وپاڅول اوڅومياشتي يې ښه تکليف ورکړ. هغه و، چي دڅلورو زروتنوپه وژني سره قبايل آرام سول . ددغو ټولو عملياتو مسول همدغه شخص و.

اميرووېل دهغې ملا په قبايلوکي سترنفوذ لري .ده دجلال آباد اولغمان سيموته خپل استازي لېږلي، هورې يې ددريو زروتنو په شاوخوا کي خلك لمسولي اوله خان سره يوځای کړی وو .خودجلال آباد والي په ځبرسو اودخلکو مخه يې ونيوله . کله چي له خلکو څخه پوښتنه وسوه : تاسي دچاپه اجازه دغه جهاد (مذهبي جګړې ) ته روان ياست؟ هغوی په ځواب کي ووېل دوی ته دملااستازو ويلي وو چي اميردغه اجازه ورکړې ده . اميرووېل چي دهغوی په مشرانو کي څلورتنه شيخان اودوه تنه ملايان، چي دجهادزرغون بيرغ يې له ځان سره ګرزاوه . دکابل په زندان کي دي اودی پوهيږي چي څه بايد وسره وسي؟ نورمشران يې تښتېدلي دي.

په همدغه وخت کي و،چي اميرته له هندوستانه دوه تنه مهاجرراوستل سول اودوی داميردعفوی دهغه فرمان له امله بيرته هيواد ته راستانه سوي وه ، چي څوکاله مخکي دټولو هغوکسانو له پاره صادرسوی و چي له هيواده وتلي وو. خواميرووېل هغو دووتنو درواغ ويل او ده ته په ډاګه سوې وه، چي هغوی دايوب خان مخبران وو اوغوښتل يې دده ددرباړټول ريوټ هغه ته ورسوي. ده ووېل ايوب خان اويعقوب خان دواړه هرکال خورا ډېري پيسي دده دکارو په باب داطلاعاتو دټرلاسه کولو په لارکي لګوي . خواميرووېل «که دوی دغه پيسي ماته راکړي زه به هره اووني اوهره مياشت خپل ريوټ چي رشتيا به هم وي ، ورلېږم .خکه له ماپرته بل هيڅوك خبرنه دي، چي زه څه کوم . ان زماډېرباوري

مامورین لاپه مهمو اسرارو خبرنه دي »

دامیرغته هیله چي زیاتره یې په دربارکي زماپه مخ کي څرګندوله ، داوه چي خپل هیواد دټولومنابعو دپرمختیا له لاري شتمن کړي اودنورو هیوداو سطحي ته یې ورسوي . ببله شکه که دده روغتیایي حالت سم وای ، په دې لارکي به یې ډېرڅه کړي وای. دی زیاتره پخپله خونه کي ایشارو اومجبورو دخپلو مامورینو پراطلاعاتو تکیه وکړي خوهغوی ثابته کړې وه، چي دتکیې وړخلك نه دي .

ده ماته وویل دهند له حکومت څخه په یوه رارسېدلي لیك کي ورته لیکل سوي دي، چي زه دشلموکالو راهیسي ورته وفاداریم خوپه هماغه لیك کي بیازیاته سوې چي زه زیاتي وسلې اوجنګي مهمات رانیسم (پېرم ) اودانګلستان پارلمان به بنایي پردې کاربدګومانه سي . ده وویل زه دغه دوې خبري تعبیرولای نه سم اوترمنځ یې فیصله نسم کولای . زه دې هیواد ته دپاچا په توګه بې له وسلو راغلم اودانګلستان له خوادامیرپه حیث ومنل سوم اودیوه واکمن په توګه مي لومړی کارداو، چي جنرال رابرټس( General Roberts ) سره له کابله وکندهارته دده په مارش کي مرسته وکړم ، وسلې ورته برابري کړم ، دلاري په اوږدو کي ټولوملکانو اونورمخورو ته امرونه ورکړم، چي انګرېزي لښکرته دکمپ لګولو اجازه ورکړي اوپه هیڅ ډول ددوی مزاحم نسي . که دانه وای ، انګرېزان بې له کومي ستونزي په دومره چټکۍ سره کندهارته رسېدلای نه سوای.له انګرېزانو سره دده دتړون پراساس ، داضروري وه ، چي هغوی ده ته عصري وسلې برابري کړي وای اودیوه متحد په توګه یې دهغوی اوروسیې ترمنځ ددرېدلو توان موندلی وای . خودهغوی له خوادوسلو ورکولو پرځای ده پخپله جنګي مهمات پېرودلي دي اواوس ورته وېل کیږي، چي داکاربايد ونکړي . کله چي روسانو کشك ته خپله داورګاډي پټلۍ راوغزوله اوله ده څخه یې وغوښتل چي له دې لاري څخه تجارتي ګټه ترلاسه کړي . ده دهماغه لیك کاپي دهندحکومت ته ولېږله اوپوښتنه یې ترې وکړه چي څه رازجواب ورکړي . هغوی ورته وویل «هیڅ جواب دي نه ورکوي» خودی په جواب ورکولو کي مجبوروو ، کنه ده ته ستونزي یاجګړه پېښېدله . څکه یې نورروسانو ته جواب

ورکړ چي دوی داورګاډي پټلي دده له مشورې پرته غزولې ده که دوی دامشوره پرخپل وخت کړې وای ، ده به هم له خپلوسوداګرو اوخلکو څخه دهغوی نظریې اوغوښتني پوښتلي وای.اوس چي دوی اورګاډې پخپل سراودخپلي هوساینې له پاره غزولې ده .دده هیواد یې نه غواړي څکه ددوی اوښان اویابوګان ددوی د خپلو اړتیاوو له پاره کافي دي . ده وویل ددغه جواب کاپي یې د هندحکومت ته ولېږله چي په جواب کي ورته ولیکل سول، چي ښه کاردي کړی دئ . ده وویل دی انګرېزي مقامات ددغولیکنو له امله نه ملامتوي څکه دوی دپارلمان تراثرلاندي دي اودده په نظرپارلمان لکه دکابل عمومي حمام داسي ځای دی چي پکښي دېرخلك په یوارګډي خبري کوي اوبه یوه غټه خونه کي د اوازونو انعکاسات دیوه سړي خبره دبل سړي له هغې سره ګډوي اود اوازونو په تخریشېدو سره دوېناوو مطلب له منځه ورکیږي .

د (Boer ) (۳) لویه جګړه په دغه وخت کي پیل سوې وه . امیروویل ده څوشېې په دغه باب فکرونه وهل اواندېښنمن دئ چي روسان ښایي له دغي جګړې څخه ګټه واخلي اوډهندپرلور راوړاندي سي .خوکله چي به ده خپل ځان دهغوی پرځای تصورکړ ، (څکه ده په روسیه کي دتبعیدډېرکلونه تېرکړي وراوددوې په چلند اوپالیسي پوهیده )، له افغانستانه به ډېره واهمه ورته پیداسوه . څکه له دوی(افغانانو ) سره جګړې دعالم اسلام دعمومي پاڅون معنا درلوده، چي هرومرو به اسیایي روسیې ته ورغځیږي . دوی ددې کارله پاره کافي لښکرنه درلود . هغه مسلمان هیوادونه چي دوی نیولي وو، په بې امنی کي وو ، خلکو یې له فتح کوونکو څخه کرکه درلوده اولکه افغانان داسي وو، چي ځان مرګ ته ورکوي خودبل غلامي نه مني ، نه غواړي چي ددوی ښځي اوماشومان دي ځني واخیستل سي .دابه ډېرسخته وي، چي په یوه وخت کي دي هم دغه شان پاڅونونه مات سي هم دي له افغانستان وهند سره وجنګیږي.

Boers جګړې پـه بـاب ده وویـل کـله چي یـې دلښـکرودتـلـفـاتـو شمېرواورېد ،ډېرغمجن سو. ده په جګړه کي ډېرې تجربې درلودې اودهغو ببلابېلو تصویرو او نخښوله مخي، چي ده لیدلي وې،فکرکاوه ، چي دجګـړې

ترتيبات ښه نه وو،څکه باېران په شيوه کي وو اوپښ وو خوانګرېزان پرهواره مخکه وربانډي ورتلل . څرنګه چي دانسانانو بدنونه له پولادوڅخه جوړسوي نه دي ، نودا ممکنه نه ده چي دعصري وسلودګوليو دباران په وړاندي دي چي په هره دقيقه کي وربانډي اوري، ودريږي. ده وويل دی دانګرېزانو مرستي ته پنځوس زره لښکري استولای سي خودده خلك له بېړيو سره نابلد دي، که يې په هغوکي وليږي مورال يې کميږي (وارخطاکيږي ) .انګلستان بايد تل په دې پوه سي چي دی(امير ) تياردئ ، چي له دوی ياهندسره اوږه پراوږه وجنګيږي . ده يووخت ماته کيسه وکړه چي دی په روسيه کي و اودروس وترکانو جګړه دتودېدو په حال کي وه . له ده څخه وغوښتل سوه چي له خپلو پلويانو سره يوځای دروس په لښکرکي جګړي ته داخل سي . راته يې وويل چي اورېدلي مودي ته يولوی جنرال وې اومور غواړو چي ستاقوتونه وازمويو.خودی دروسانو له پاره جنګېدو ته مايل نه و په تېره بياچي دده دهم دينه اوهم مذهبه سره جګړه وي. نو يې جواب ورکړچي ستاسي پرخوا دجنګېدوپه وخت کي به زما دزړه ورتوب اواستعداد معلومولو موقع برابره نه سي څکه ټول روسان زړه ور اوښه جنګيالي دي اودی به دډېرو زړه وړو په منځ کي يو وي . دابه ښه وي چي تاسي ماته ددښمن په خواکي دجنګېدو اجازه راکړئ اوهغه وخت به ماپخپل وړاندي دجنګېدلوپه حالت کي ووينئ ، زماليافت به درته څرګندسي اوښه تراقضاوت به وکړئ. ده وويل چي هغوی بياهيڅکله ترې دغه شان غوښتنه ونه کړه .

اميردتېرو حالاتو په باب دخبروپه ترڅ کي وويل چي يوڅاته ددغه راز تشويشونو زغمل سخته ده . ددې له پاره چي دی له روسانو سره هم دخپل هيوادپه ګټه اوهم له انګلسيانو سره دتړون په اساس جنګيږي ، بايدکافي اندازه پياوړي وي .خوله دې سره سره ورته ويل کيږي چي تازيات مهمات پېرودلي دي. ده هغه کړې ده له خپل متحدسره ډېرښه چلندوکړي خوورته ويل کيږي چي تاقبايل دهغوی پرضد وجګړي ته لمسولي دي. بياهم ده دخپل هيواد په ګټه په زړه کي ډېراصلاحات اوريفورمونه درلودل خومامورين يې صادق خلك نه وو اوده نه سوای کولای دخلکو واقعي غوښتني اونظريې خان ته څرګندي کړي . ددې له پاره بايد ده قوانين بدل کړي وای ، پرهـــــــغوی يې فشار راوړي وای

اومرسته یې ورسره کړي وای چي خانونه اصلاح کړي او پرڅنګ یې باید بیاهم زیارایستلی وای چي خلك یې په سوله ، امن اونېکمرغی کي ژوند وکړي .

سره له دې، امیرعبدالرحمن یواستثنایي لایق سړی و. ده ډېرلږ حتی هیڅ تعلیم نه وکړی یوازي دخپلو سرګردانیو په سخته مدرسه اودخپلو ماجراوو په تاریخ کي روزل سوی و. چي بیاوروسته امیرسوی اوهیجان آوره داستان یې جوړکړی و. دی بې له شکه دافغانستان ډېرپیاوړی واکمن و . خکه کله چي دی پرتخت کښېنوست په هیوادکي تربل هروخت زیاتي خپل سری او بې قانونی وې . دچاسرپه امان کي نه و . هیچاخان خوندي کولای نه سوای .خوچي دی مړسو، یوه مسافرپه یکېسرکولای سودهیواد له یوه سره تربل پوري په امن کي سفروکړي . دغه راز دی په شخصي لحاظ هم ډېرزړه وراوباجراته سړی و اوهغه څوك چي دده پرخلاف جنګېدلي وو، پوهېدل چي که له ده سره چابدکړي وای په ډېري بې رحمی سره یې غچ اخیست .

ماته یې کیسه کوله چي یووخت دی دخپلي کورنی له نورو غړو سره په جګړه کي و اوپرته له څوملګرو نورڅه ورپاته نه وو . په یوه کلي کي یې یوې کلاته پناه وړې وه اودده یوه ملګري په نامردی سره خیانت وکړ اودده دپناه خای خبریې دښمن ته ورکړ . دښمن دشپې له یوزیات شمېرلښکرسره راغی اوکلایې محاصره کړه. په دروازه کي یې دده دتسلمېدو له پاره چیغي پورته کړې . ده دخپل سړیو اواسانو له پاره زړېرمه نه درلوده اودسړیو شمېرهم بیخي زیات وو، خکه نوجګړه کول بې فایدې وه . ده پتیبلې وه چي له دغي ستونزي څخه په هره وسیله چي وي، باید ووزي خکه دده نیولو دمرګ معنا درلوده . نوبې یولوی پوستین واغوست چي سرترنوکه پکښې پټ و . دغه رازپوستینونه معمولا دشپې لخوااغوستل کیږي اوسروبدن ټول په پټوي . دی دکلاپه بغل کي تریوې کوچنی دروازې ورووت ، تمانچه یې په لاس کي ترپوستین لاندي نیولې وه اودباندي په لښکرو ورګډ سو هغوی فکرکاوه ، چي داد دوی له خپلو خلکو څخه یو تن دئ .په پای کي ده هغه خای ته خان ورساوه چي دښمن یې ولاړو اودده دنیولو انتظاریې کیښ . څوك نژدې ورسره نه وو. دی دشا لخواورغی اوټینګ یې کړ .تمانچه یې پرڅټ ورونیوله اوامریې ورته وکړ، چي ښوروونه خوري،که نه خای

پرخای یې وژني . یرغمل سوی دښمن یې دهماغي کوچنی دروازې له لاري کلاته بوت، چي دی ترراوتلی و. دلته یې دده دژوندي پرېښودولو شرط داکښېښود، چي دکلاله دېواله خپل لښکرته امروکړي چي له کلاڅخه کافي اندازه لیري سي . په دې ډول ده ته دتېښتي زمینه برابره سوه روغ رمټ له خپلو ملګرو سره راووت (۴) امیردکرکټرپېژندني مهارت هم درلود اوداسي چاله فوټو (تصویر ) څخه دهغه کرکټربیانولای سوای ، چي ده به هیڅکله لیدلی نه و. اوکوم قضاوتونه چي یې زماپه مغ کي دخلکو دتصویرونو له مخي کړي دي ، زیاتره یې صحیح هم وو.ده دGladstones (۵) ، Bismark (۶) اومك موهن (۷)Mc Mahon ډېره ستاینه کوله اوویل یې چي دوی دخپل وخت سترخلك وو . یوځوتنه جنرال دده دستاینې وړ وو ، نوریې زیاتره غندل . خودجنرال وایټ General White له خوایې دلیډي سمیت Lady Smith دفاع د بویرجګړي یوه ډېره ځلانده کارنامه ګڼله

## داووم څپرکي لمنليکونه

( ۱ ) په متن کي يې Shagrasi ليکلي دئ چې سم نه دی . شاغاسي يا ايشك اقاسي يو دولتي لقب و ، چې د دربار دوزير معادل يې بللای سو . شاغاسيان دبارکزو له قومه ټاکل سوي وو .

( ۲ ) مشهور مجاهد . عالم او مرشد ملانجم الدين اخوند دجلال آباد د هډې اوسېدونکی و خکه نو ( دهډې ملا ) باله کېده . علامه حبيبي مرحوم يې « کاکړ » بولي ( پښتنليك ـ ۲۱۹ مخ ) په کابل کي د هغه وخت دبرتانوي استازي دخولي خبره ده ، چې ملانجم الدين اخوند له ډېرو سترو متنفذو انګرېزي ضد روحانيونو څخه و اوتريولك زيات پيروان يې درلودل . په ۱۸۸۷ ع کال چې د مشهور مجاهد ملامشك عالم د زوی ملاعبدالکريم اندړ په مشري دغلجيو پاخون دتکوين په حال کي و ، نوموړي ملانجم الدين ته هم بلنه ورکړه سوه ، چې له دغه پاخون سره يوځای سي . په ۱۸۹۷ ع کال کي د انګرېزانو پر ضد د خپلواکی غوښتني يو لو ی پاخون د ډيورنډ دکرښې په شاوخوا کي د ميشتو قبايلو لخوا پيل سو . ددغه پاخون مشري د داخوندملانجم الدين(دهډې ملا ) ، د سوات داخوند او د ملا پونده ( دده نوم محی الدين و ) په لاس کي وه . ملانجم الدين اخوند شينوارو د « پاچا » په توګه اعلان کړ خو ده نه وکړه . اميرعبدالرحمان خان دده له نفوذه بېرېدی . ده ته يې دهډې او نورو ګاونډيو کليو دبخښلو پېشنهادوکړ خو ده د « رد » جواب ورکړ . ملانجم الدين اخونددژوندپه وروستيو کلونوکي سوات ته کډه سو خو دوفات پروخت په هډه کي و او هورې ښخ سو ( ۱۳۱۸ ق دروژې يوويشتمه ) .(۴۰۶م)

( ۳ ) بوير (Boer ) دهغوهالينډي بزګرانونوم و ، چې په اوولسمه پېړۍ کي يې دجنوبي افريقادGood hope راس ونيوه . هغوی افريقايي مريبان پخپلوکروندوکي وګومارل . انګليسانودغه ځای دناپليوني جګړو په دوران کي اشغال اوتربشپړکنټرول لاندي يې راووست . په ۱۸۳۳م کي دانګليسانوپه امپراتوري کي مريېتوب منعه سو اوزياتروبويرانو (Boers) دبرتانوي وأکمنی څخه سرغړاوه. دوی شمال ته ولېږدېدل اوهورې يې دوه خپلواك دولتونه جوړ کړل . بويرانو په ۱۸۹۹م کي دانګرېزانوپردووه مستعمرو (Natal ) او(Cope ) باندي بريدوکړ. انګرېزي لښکرو ته له کاناډا،استراليا اونيوزلينډ څخه ملاتړي قواوي ورسېدې . دوی دبويرملکي تاسيسات اوفارمونه وسوځل اوډېره مرګ ژوبله يې وکړه . داجګړه د۱۹۰۲ کال په مې کي پای ته ورسېده . (پښتوژباړونکی)

(۴ ) داپېښه په تاج التواريخ کي راغلې ده . (ژباړونکی )

(۵ ) ګلېډ سټون ( ۱۸۰۹ ـ ۱۸۹۸ ) دانګلستان مشهورسياستمدارو ، چې څلورواره دهغه هيواد دمشر په توګه ټاکل سوی و . (م. هوتك )

(۶ ) بسمارك ( ۱۸۹۸،۱۹۱۵م ) دجرمن امپراتوری لومړی صدراعظم و (م. هوتك )

(۷ ) دادجنوبي افريقا په Natal کي يوښارګوټی و ، چې دسرهانري سميت دمېرمني په نامه نومول سوی و . انګرېزانو ته دبوير په جګړه کي ددغه ښاردفاع د درو زرو تنو په قرباني تمامه سوه .جنرال وايټ ددغه محاذ مشري پرغاړه درلوده . ( م. هوتك )

# اتم څپرکی

## اميرعبدالرحمن (ادامه)

داميرزامن اوله هغوسره دده سلوك ـ شهزاده ګان . وظايف يې اودربارونه يې ـ دشاهي كورنۍ غړونه دحكومت لخوا دډوډۍ تهيه كول ـ مامورينوته تنخواوي څه ډول وركول كېدې؟ ـ دملكي اونظامي القاب ـ ددربارژوند اومامورين ، دقانون محكمې ـ داميردوامداره ناروغي ـ مړينه اوښخول يې ـ دپاځونونو اوازې ـ دګړو واهمې ـ دكورنيو خزانو ښخول ؟ داميرحبيب الله تاجپوښني ـ دنوي اميرلخوا دريفورمونو ژمنې ـ ساتېرى

---

داميرپنځه زامن ژوندي دي، حبيب الله (اوسنی امير )، نصرالله(لندن ته چي استول سوی و ) دوی دواړه ديوې موردي ، امين الله ، دچترالی ښځي زوی ، محمدعلي دتركستاني ماندينې زوی چي زياتره په تركستان كي اوسي اودده په باب لږڅه اورېدل كيږي اومحمد عمردملكې سلطانې زوی . اميركه څه هم له زامنو سره دمهربانۍ سلوك كاوه خوله هغوی سره هيڅكله نږدې نه و .له هغو سره يې چلند دپاچاپه شان و ، نه دپلار وزوی . كه به دوی كومه ګناه ياپه وظايفوكي غفلت وكړ ، په سزا كي به امرورته وسو،چي دربارته دي نه راځي اوله دوی څخه به دلږياډېروخت له پاره خپه و. وروسته به يې څوك پسې ولېږه اودبيرته راتګ امربه يې ورته وكړ . بيابه نودغه مجرم راغی ، دپلار په پښوكي به ورولوېد اودبخښني له امله به هغه ته دده دلاس مچولو اجازه وركړه سوه.

اميرخپلوزامنو ته لوړدولتي منصبونه له مناسبو تنخواوو سره وركړي ووخوپه هيڅصورت ورته اجازه نه وه، چي دنفوذ خاوند يادنامحدودو اختياراتوښتن سي . ډېرو سركاري مامورينو داميرترزامنو زيات قدرت درلود اوله شهزاګانو سره يې سلوك ډېرمودبانه نه و، په تېره بيا داميردپاچهی په وروستيو شپوكي . سردارحبيب الله تش په نامه دلښكرمشراودټولووركشاپونو عمومي امرو، سردارنصرالله دټولو دفترواو ميرزايانو مشرو اونوروهم كوچني مقامونه اشغال كړي وو.

شهزاده ګانو خپل خانته دربارونه جوړول ،چي زياترو مامورينو اوافسرانو به يادخپلو وظايفو په ارتباط ياشهزاده ګانو ته د «سلام» له امله برخه پکښې اخيسته .دوی ټولوجلا جلا کورونه درلودل چي دښارپه نوې برخه کي يې موقعيت درلود . دوومشرانو شهزادګانو يې ترښاردباندي هم کورونه درلودل چي ددوبي يوه برخه به يې پکښې تېروله . سردارنصرالله چي له لندن څخه تر راستنېدلووروسته يې تنخواه ډېره سوه ، دځان له پاره دهغه کورپه شان نوی کورجوړکړ، چي په لندن کي دده داستوګنې په وخت کي پکښې اوسېدی( په پارك لين کي ډورچسټرهاوس ) (۱) داکور دنظم وترتيب اوسامان ولوازمو له مخي دکابل ترټولو ښه کورو . کله چي بشپړسو ، اميرڅوورځي دشهزاده دمېلمه په توګه پکښې تېري کړې اوډېرپه خوشاله وخکه اميرښه معماري خوراډېره خوښوي اودده خپلي ماڼۍ هم دختو اوخښتو په ودانيو کي چي په هيواد کي مروجي دي، يوازنۍ ابتکاري ماڼۍ وې

دشاهي کورنۍ ټولو غړوته چي په مجموع کي دمحمدزوکورنۍ ده، دحکومت له خوامعاش مقرر و . څلورسوه روپۍ (تقريبا ۱۲ پونډه ولس شلنګ ) دهرهلك پرسراودرې سوه هري نجلۍ ته دکاله ورکول کېدې . زيات شمېرته يې له شاهي پخلنځي څخه خواړه هم رسېدل خودغه کارداوسني اميرپه رژيم کي بندسوی اوپرځای يې پيسې ورته منظوري سوي دي . ددغه کاراساسي علت دخوراکي موادو قلت اوپه نتيجه کي دهغوګراني وه .

دحکومت مامورين اوله اميرسره نورمربوط کسان دکاله له دوو سوو څخه ترشپږو زرو روپيوپوري تنخواوي لري . که څه هم زياتروته يې له خپلوشخصو مځکو څخه عايدهم رسيږي . دوی ټول ترخپل څرګندعايد دزياتو پيسو ژوند کوي اوبالابود يې له هغولارو څخه برابروي، چي دوی پخپله ښه په پوهيږي . معمولا هرڅومره چي څوك پست (Rascal ) کيږي هغومره يې عايد ډېريږي . پخوا دمامورينو معاشونه په هيوادکي له بېلابېلو مځکو څخه ، ماليو دبراتونو په واسطه ورکول کېدل اومقامات مجبورو چي دغه ماليې پخپله راغونډې کړي . په دې ډول به حکومت ته دماليې دافسرانو لګښتونه سپمېدل . مګرپه نتيجه کي به ترټولو لوی مقام دغه ټول براتونه رانيول په خورا لــــــويه فيصدي به يې

تخفیف پکښې راووست ، چې ټول به دده پخپله ګټه اودهیواد دمنفعت پرخلاف وو .دده اجتهانو به کروندګروته دژوند له پاره هیڅ هم نه پرېښوول . داکاربه ددې سبب سوچې هغوی خپله یوه ټوټه مځکه خوشې کړي اودبلې دندې په تلاښ کې سي . مالیې دراغونډونکو له خوادعمده پلورنې دغه لوټ اوتالان دخزانې داوسنې ټیټ حالت یوسترعامل دئ .

مامورینو نه دهغوی له کارپاڅانګې سره سم لقبونه ورکول سوي دي خوبرسېره پردې زیاتره یې بې له دې چې له یوې پوخې قطعې سره دي ارتباط ولري دکلونل یابریګېډیرلقب هم لري . دغه کسان ملکي افسران نومېږي . دلښکرټولوافسرانواورسمي مامورینو ته په کال کې یوواردجشن پروخت یاامیرته د «سراج الملت والدین» دلقب ورکولودکالیزي پرموقع یوه مېلمستیا ورکوله کېږي . پردغه موقع ټول نارینه دربارته حاضرېږي اوورروسته دمانښام ډوډۍ ورکوله کېږي . څرنګه چې په ماڼۍ کې هغوی ټول نسې ځایېدلای، یوه ډله یې په څرمه باغچوکې کښېني اوهورې دماښام ډوډۍ ورته اېښوولې کېږي .

په کابل کې له اوسېدونکو انګلسیانو سره دمامورینو چلند دامیرطبیعت اودانګرېزي حکومت په نسبت دهغه برخورد منعکسوي . که داسې پېښه سي چې امیردهند دحکومت په مقابل کې متعصب ښکاره سئ ، معنا یې داده چې دهغوی لخوا دده دتوقع پرخلاف زیات ټینګاروسره کېږي . په کابل کې که له اوسېدونکو انګرېزانو سره هم دده خوابدي محسوسه سي ، اوورسره ټول مامورین بیادخپل مشرپه تعقیب دګستاخۍ ترحده بې نزاکته سي .بل وخت چې بیادانګرېزانو قدرت زیات سي ، مامورین هم دخدمت په وړاندې کولوکې له افراطه کاراخلي . ددوی په خپلو منځوکې هم، که یوتن دامیرپه نزد په لوړمقام وعزت کې و، دوی ټول یې پخپل نوبت په درناوي کې برخه اخلي ځکه هیڅ یوله دوی څخه دریاتې مودې له پاره دعزت څښتن نه وي . هریو یې دعزت له څښتن سره غوړه مالي کوي خوپه زړه کې بیاکرکه ورسره لري . دعین غوړه مالي په وخت کې دهغه دنسکورېدو له پاره دسیسې کوي .

دهیوادقانون محکمې،که دانوم ورته مناسب وي ، پردوو ډلوویشل سوي دي . ددوی د مذهب په ارتباط دعوې او سرغړونې په لوړې سرکې دخان ملا (۲) په

محکمه کي فیصله کیږي ، که دهغه تړواك تېره وه بیاومشرسردارته محول کیږي اوترهغه وروسته امیرته وړاندي کیږي . له قانون څخه سرغړوني دکوتوال په محکمه کي فیصله کیږي اودده ترقدرت تېرموضوعات بیاهم مشرسردار ته حواله کیږي اوکه دده ترصلاحیت هم لوړه وه ، بیادده په واسطه امیرته وړاندي کیږي . داشخاصو ټولنیزي دعوې ددوی دسیالانو په واسطه حل وفصل کیږي . دعوامو داپه عوامو اودخانانو اومشرانو داپه خانانو . اوسني امیردغه رازمحاکمو ته مخصوص حکم هیات (جوري ) ټاکلی دئ. دغه هیات پرهغو دعوو غورکوي، چي پخوا به ده ته (امیرته ) وړاندي کېدلې.هیات ته ځانګړی صلاحیت ورکړه سوی دی اوخپل برداشتونه اونظریات بایددتایید له پاره امیرته وړاندي کړي . اوسني امیردغه رازیوه شورا ( پارلمان ) هم جوړه کړې ده، چي تقریباددېرشوډېپارتمنټونو مشران پکښې غړيتوب لري . هغوی دریفورم اړوندقوانین څېړي،له څېړني اوخبرواترو وروسته، چي داکثریت په رایه هرېدلون پکښې راغی ، هغه لیکل کیږي اوامیرته دمنظوری له پاره وړاندي کیږي . امیربیاهغه تصدیقوي . شورا پرهغو دعوو هم غورکوي چي داثبات له پاره يې دېرغورﺍوپلټنه په کاروي . دشورا اجرآآت دنورو دعوو په شان امیرته دمنظوری په مقصد وړاندي کیږي . یوبل حکم هیات(جوري ) دهغوبندیانو ددعوو له پاره ټاکل سوی دئ، چي بې له محاکمې بندیان سوي وي . په کابل کي دغه راز بندیان زښته ډېردي اودهرراز بندیانو مجموعي شمېردشلو دېرشو زرو په شاوخوا کي دئ . هیات ته امرسوی، چي دهرکېس بشپړریوټ امیرته ورکړي .

دامیردنقرس ناروغي دده دژوند په وروستیو لسوکلونوکي ورو ورو زیاتېدله اوډېرلږېتګ يې کولای سوای . هرځای چي به تللی بایدد وړل سوی وای . په وروستیو دوودروکلونو کي خوبېخي پرپښودرېدلای نه سوای او ان په خونه کي لا په شاوړل کېدی . ورو ورو ورسره کمزوری کېدی هم، اودناروغی حملې به ډېرژر ورباندي راتلې . ناروغي يې ورو ورو مغزهم ونیو اوداسي حالت ته ورسېدچي کله کله به يې مغزسم کارکاوه . په دغسي شرایطوکي دی مجبوروچي پرخپلو مامورينو نورهم زیاته تکیه وکړي ، چي په نتیجه کي دحکومت اختیار په تېره بیا دهغو دووتنو په لاس کي ولوېد ،چي دامیردناروغی

په وخت کې یې دده زیات باورترلاسه کړی و . دوی کولای سوای دامیرذهن هرهغه لورته واړوي، چې ددوی خوښه وي . دې خلکو دومره قدرت وموند ، یایې غصب کړ، چې هرڅه گویادوی وو. تردې اندازې چې په پای کې دومره په ځان غره سول ، چې بېخي له خلکو بېل سول . له دوی څخه یوتن خودومره زړه ورسوچې دسردارحبیب الله دنوي کور ترکاڼان یې له خپلو گاډیو سره په زور له کارڅخه بوتلل اوداکاریې دامیرپه نامه وکړ. په داسې حال کې چې، امیرهم په داسې حالت کې نه و، چې دخپل زوی شکایت دې واوري . هغه هم که په زوی کې یې دومره جرات وای، چې دخپل پلارپه وړاندې دغه شان مسایل طرحه کړي . دغه سړي وروسته له هغه چې سردارحبیب الله امیرسو، دېرژرله کاره وایستل سو. ( ۳ )

په نتیجه کې د ۱۹۰۱ کال په پسرلي کې پرامیرعبدالرحمن باندې ناڅاپي دزړه حمله راغله اوداسې فکرکېده چې نوریې نوآن تمام سو.خو دی شپږمیاشتې لانورهم ژوندی و اوداکتوبر پرلومړی نېټه مړ سو. داسې ویل کېده چې پښې یې څوورخې وړاندې لامړې سوې وې اوداسې بدبوی یې کاوه چې په خونه کې یې چاځان نسوورته نېنگولای . دامیرترمړینې یوه ورخ دمخه چې نورنو دده دجوړېدو هیله پاته نه سوه، سردارحبیب الله اوسردارنصرالله له یوشمېرنورو لوړرتبه مامورینو سره جرگه سول ، چې دامیر له مرگ سره سملاسې دیوگام اخیستلو په باب فیصله وکړي . څکه کله چې په خلکو کې دامیردمرگ خبردیوه واقعیت په توگه خپورسوی وای ، دبغاوت اوستونزو پېښېدل حتمي وه اوداسې اټکل کېدی، چې ملکه سلطانه به اردودځان ملگري کړي اوخپل زوی محمد عمربه دامیرپرځای پرتخت کښېنوي . دې زیات نفوذ درلود اوپه خلکوکې دمحبوبیت څښتنه وه . په دغه جرگه کې فیصله وسوه، چې سردارحبیب الله به د خپل پلارجانشین وي اوکله چې امیرمړسي ، دی به سملاسې دارگ مستحکمه ماڼۍ، چې خزانه اودعصري وسلو گودامونه پکښې دي، اشغالوي . څکه دهغې نیول به عملاً دی پرحالاتو کابوکړي اوکه احیانا عسکر بغاوت هم وکړي ، لکه څرنگه چې یې خطراحساس کېده ، دهغه دمخنیوي امکانات به ترهغه وخته وي، چې حالات سمېږي اونظم ټینگېږي .

دامیردمرګ پروخت چي دشپې پېښ سو، ټول شهزاده ګان اومخور مامورین دباغ بالا ماڼۍ په انتظارخانه کي حاضروو. دوی هورې دخپلي شورا په بلنه له ماپښین څخه لاحاضرسوي وو ، څکه شورا ته څرګنده سوې وه ، چي امیرنورژوندی پاتېدلای نسي . کله چي رابلل سوي کسان حاضرسول اودامیرمرګ ورته اعلان سو. له حاضرومامورینو څخه یوه تن دفقیدامیرخولی دسردارحبیب الله پرسرکښېښوله اودامیرپه توګه یې وټاکه . ټولو حاضروکسانو په رونې سره لاس ورکړ، خپل بیعت یې ورسره اعلان کړ اوامیرېې وباله . یوبل مامورڅرمه خوني ته چي سردارمحمدعمرپکښې ناست و، ولاړاونومړی یې ورسره راووست ، ورته یې وویل چي نوی امیرته بیعت ورکړي اوده همداسي وکړه . خپل بیعت یې دنورو په شان ورته اعلام کړ. دغه مامورېخپل دغه کارسره دملکي سلطاني سخته دښمني اونفرت وګاټه .

نوي امیرورسته له خپلواکثرومامورینو اوپلویانو سره ښارته ولاړ، ارګ یې اشغال کړ اودهغه څای دلښکروله برګېډ (دګرمن ) سره یې کارونه سمبال کړل . دغه برګېډ دبرژردډګروالی (کلونل ) رتبې ته لوړسو . سردارنصرالله خان هماغه شپه په باغ بالاکي تېره کړه ،چي ارګ ته دټول فرېنچر، غالیواوګڼو اونوروسامانو دلېږدولو څارنه وکړي . ده په هماغه شپه ټول شیان په ګاډیوکي رانقل کړل اوپه سهارېې دامیرجسدهم ارګ ته راوړ اوددې له پاره چي دامیردمړیني دخبرپه خپرېدو اودهغه دجسدپه لیدو سره دکوم احتمالي پاڅون مخه نیوله سوې وي ، له مړي سره یې دسپرو یوه پیاوړې قوه بدرګه کړې وه .

په دابله ورځ دملکې سلطاني مېزوچوکۍ اونورسامانونه دارګ له حرامسرای څخه ددې خپلي ماڼۍ ، ګلستان سرای ته چي دارګ دېوالوته څرمه وه ، نقل سول اوپرځای یې دنوی امیرمېرمني په ارګ کي ځای پرځای سوې . وروسته نودامیردمړیني په ورځ له هراروپایي سره چي کوم اووه کسیزګارډ و، هغه دممکنواضطراري حالاتو په پام کي نیولو سره دوه چنده سواوداردل ټولی یوبل ګارډ هم وټاکل سو. اردل ګارډ دشاهي ماڼیو اوحرم سرایونو بهرني ساتونکي دي اودمهمو کسانو څارنه هم کوي.

په کابل کي د ټولوطبقو خلکو دا انتظاردرلود، چي دامیرمړینه به دعمومي

اړودوړ له پاره چي اردو به یې په مخ کي وي ، یوه اشاره وي اوپه دې کي شك نه و، چي دټولو خلکو داانتظار، هسي یوګومان هم نه و .خلکو د دغسي اړودوړ په مقابل کي دخان دساتني په غرض خپل جواهرات اوګڼې دکورو په چتونوکي ښخي کړي وې اوځومره چي یې وس درلود ، د اوړو، خوراکي موادو اوتېلو کافي اندازه یې زېرمه کړي وه . چاچي په کورونوکي وسلې درلودې ، داړودوړ په وخت کي یې دکوردمحافظې په غرض آماده کړي وې . له شاوخوا غرونو څخه یوزیات شمېرخلك دکابل شاوخوا سرکونو ته راشیوه سول . وحشي څېرې یې وې ، عجیب وغریبي جامې یې اغوستي ، تېرونه اوزړې پلټنه یې وسلې ورسره وې . ځکه دامیردمړینې خبرپردوی هغه شان اغېزه کړې وه لکه پرتېپوسانو باندي چي دمړه سوي حیوان دلاښ لیدلو له امله کیږي . دوی له ډېرولیرو فاصلو څخه په لږوخت کي خانونه دچوراوتالان له پاره رارسولي وو . داهغه خلك دي، چي دکابل اوسېدونکي هرکله داله ګولي دپښښېدو په وخت کي ، له هغوڅخه په واهمه کي وي . ځکه هغوی په زرګونوتنه لڅ لغړخلك دي ، بې له ژونده بل هیڅ شی له لاسه نه ورکوي اوژوندهم هغوی ته ډېرلږ اززښت لري . بلهای اونبستمن ته یې دکابل غریب اوسېدونکي په ثروت اوشتمي کي شهزاده ګان ښکاري . دوی آن کورونه په دې خاطرچپه کوي چي له لرګیو څخه یې پخېلو ودانیو کي کارواخلې . دغه کورچي زه پکښې اوسېدلم ، یوخل ددغوخلکو له خواله خاورو سره برابرسوی اوحکومت له سره بیا ودان کړی و .

ماته وویل سوه، چي دامیردمړي دتښتولو له پاره هم یوه دسیسه جوړه سوې وه اوهغه داسي، چي دامیرمړی قبرته دوړلو په لارکي چي ترکابل دباندي په هاشم خان کلا کي جوړسوی و، وتښتول سي ، ټوټه ټوټه سي اوسپوته وغورخول سي. ( دادیوه مسلمان له مړي سره ډېره ستره شیطاني معامله ګڼل کیږي ) . له کابل څخه دکلای هاشم خان پرلورسړك اودلاري شاوخوا غونډۍ په دغه ورځ ددوبجو په شاوخواکي دزیاتوسړیو دراغونډېدوله امله توري ښکارېدې، دوی دجنازې تېرېدلو ته منتظروو اوکله چي دجنازې وخت رانژدې کېدی پرټولوخلکو باندي دیوه پټ هیجان عمومي فضاخپره سوه، چي په یوه ځغلند نظرددوی له چابکو چابکو حرکاتو اوڅېروڅخه چي ددوی دسترګو سیني له عمومي روش څخه

يې توپیردرلود ، معلومېدلای سوای . په هرصورت ، مقاماتو ددغوښولو خبرونو له رسېدو وروسته دفقیدامیرمړی دهاشم خان کلا پرخای دبوستان سرای ماڼی په ختیخه څنډه کې فقط ترارگ دباندي دملکې سلطانې دماڼی په څنګ کې ښخ کړاوورځ بې له دې، چې کومه ناوړه واقعه دې پېښه سي، تېره سوه .

دامیر دمرګ پروخت په کابل کې شپږتنه اروپایان اوسېدل مېرمن ډالای (Mrs. Daly)، ښخینه ډاکتره ، یوجرمني مستر فلیشر Mr.Fleischer( په ۱۹۰۴ کې هلته ووژل سو ) دده مېرمن ، ماشوم اونرس یې اوزه پخپله . موږ پخپلو منځوکې پردې مساله خبرې وکړې، چې دکوم اړودوړ په صورت کې بایدڅه وسي؟ که څه هم دمسلې په باب په بشپړه توګه وږغېدو خوله ښاراوهیواد څخه مو دتېښتي هیڅ راز وسیله نه درلوده اوداسي ښکارېده چي دخپلو ځانو دساتني له پاره مو ، بې له دې چي داړودوړ دپیل په صورت کې ټول یوځای په یوه کورکي راغونډ سو، بل هیڅ نسو کولای . که مو ددغه کارله پاره کافي وخت درلود نوترڅوچي ممکنه وي باید هغه کورخپل مورچل وګرزوو اودفاع وکړو. خکه پراروپایي اوسېدونکو باندې به په دغسي حالاتوکي ترټولو لومړی برید کیږي اوکله چي نظم له منځه ولاړسي بیانو محافظین هم دپردیو دساتني له پاره له خپلو خلکو سره جنګېدلو ته نه چمتوکیږي. موږ پوهېدو چي که لښکرامیرته وفادارپاته سي ، بغاوت په اسانی سره ارامېدلای سي. خوکه لښکردامیرپرضدراوپاڅېد ، نوداروپایانو محافظین به بې له شکه دکافرانو په ویشتلو پیل وکړي اوچي رشتیا سي یومحافظ دمېرمن ډالای یوه نوکرته ګواښ هم کړی و،چي دجګړې له شروع کېدوسره سم به واردواره داروپایانو نوکران ووژل سي، بیااروپایان پخپله. ما دمارتیني هینري توپك یوه اندازه کارتوس له ورکشاپ څخه دګارډ له پاره اخیستي وو اوله ځان سره مې لرل، چي که خلکو پردوی برید وکړ، کاربه ترې واخلم اودجنازې پروخت دوی (محافظین) ډېرتلولي وو،چي زه باید سملاسي هغه کارتوس ورته ورکړم . خومااغوره وګڼل دمخه تردې چي دوی ته هغه وسایل ورکړم اودځان اوخپلونوروملګرو له پاره یې په لوی لاس خطرناك وګرزوم، باید دحوادثو مسیرته وګورم اودوی ته ووایم چي بېغمه اوسئ،هروخت چي وغواړئ، کارتوس به پرخپل وخت درته وویشل سي. بې له شکه چي عسکرپاڅرن ته تیاروو اودې کارته یې په هغه صورت کې زړه ښه کاوه، چي یوچاپې لاربښوونه پرغاړه اخیستې اومخکښ سوی وای . هري ټولی انتظاردرلودچي پاڅون به نوري ټولی پیل کړي اودوی ورسره یوځای کېدوته تیاروو .خو ددوی ترمنځ یووالي نه و او په هیچا کي دا جرات هم نه و.

چي مخکښ دي سي. دجنازې په ورځ زماپرکوردګارډافسران ددې له پاره راتاو سول، چي وګوري آیا ټول حفاظتي تدبیرونه نیول سوي دي ؟ او یو څو ساتونکي یې پرېیام باندي دګاونډیو کورونو دڅارلو په غرض څای پرڅای کړل. دوی راته وویل چي هرراز ناڅاپي پېښو ته باید تیاروواوسم. څکه له ټولو هغو اوازو څخه چي ددوی غوږوته رسېدلي وې، څرګندېده چي زه اوددوی یوزیات شمېر به ترشپې دمخه ووژل سو. دغه راز پراروپایانو باندي دحملې په صورت کي دناڅاپي ستونزودمخنیوي له امله مااونورو اروپایانو ته وویل سوه، چي په کورکي پاته سو اوپه هیڅ صورت بازارته ونه وزو.

دامیردښخېدو د ورځي په داسېاچي د ۱۹۰۱ کال داکتوبر دریمه وه، د امیرعبدالرحمن مشرزوی سردارحبیب الله، چي په دغه وخت کي ۳۲ کلن و، په رسمي توګه امیرسو. مراسم دارګ ماڼۍ تردېوالوبهرپه سلامخانه کي دټولو شهزاده، ګانو ماموړینو ، داردو لوړو افسرانو، مخورواوخانانو په ګډون سرته ورسېدل.رنګه جامې نه په سترګه کېدې . شهزاده ګانو، ماموړینو اونورټولو توري جامې اغوستي وې . یوازې دیوڅوتنوسپیني اویوڅوتنوبوري جامې په تن وې . افغانان دپاچا دمرګ په وخت کي دتوروجامو اغوستلو دودلري اودرې ورځي یې اغوستي وې. مراسمو دوې برخي درلودې ، مذهبي اوملکي.

مذهبي مراسم دمسجد جامع دمشرملاله خواترتیب سوي وو. ټولوحاضرو کسانو په دوعاوو کي برخه واخیستله اوپه دې ډول مراسم پیل سول . وروسته نوملادسپین ململ (ډاګې) لونګۍ دسردارپرسروتړله، په داسي حال کي چي قرآن اودپیغمر ( ص ) متبرکات (چوخه اووربښته ) اودکوم زیارت جنډه یې ورته ورکړه ، دی یې دافغانستان دمستحق اومنتخب امیرپه توګه اعلام کړ. دغه جنډه فقیدامیر ( امیرعبدالرحمن ـ م.هـ ) دترکستان له یوه متبرک قبر څخه راوړې وه. دټولودغه شان قبرونوسرته خادې ښخي اوبیرغونه اوربنکۍ باندي خوړندي وي. فقید امیرچي له روسیې څخه کابل ته راروان و پرلارې یې دغسي یوځای ته نزدې کمپ وهلی و. دشپې یې خوب لیدلی و چي دافغانستان دتخت ګټلو په هڅه کي به بریالی سي، څکه یې دزیارت جنډه دیادګار اوتعویذ په توګه ورسره رااخیستې وه.

ملکي ( غير پوځي ) مراسم دسردارنصرالله له خوا (دنوی اميرسکه ورور ) جوړسوي وو اونوي اميرته يې دفقيد اميرخولۍ ورپرسرکړه . دغه خولۍ له تورقره قل پوست څخه جوړسوې اوپريوه خوايې دالماسو ستوزي نښتي و. کله چې فقيد اميرته د «ضياالملت والدين» لقب ورکول کېدی. دغه خولۍ دشاهي کورنۍ د غړوله خواورته دتحفې په توګه ورانديي سوې وه. بيا د فقيد اميرکمربندترملاوروتاړه اودهغه توره يې ورته تقديم کړه . دنوی امير پخوانۍ خولۍ، توره اوکمربند سردارنصرالله ته اودسردارنصرالله پخوانۍ خولۍ ، توره اوکمربند سردارمحمدعمرته چې دفقيد اميرکشرزوی و ورکړه سول . وروسته نو اميروېناوکړه اوپه هغې کې يې وويل، چې غواړي هيواد يوموټی وساتي، د بهرنيي تېري مخه ونيسي اوداسي ريفورمونه پيل کړي چې دهيواد خلک يې نېکمرغه سي. دی به دغه راز هغه منفوراستخباراتي سيستم له منځه يوسي چې تردغې ورځې پوري جاري و اوهيڅوک په امان نه وو .ورپسې ټولو حاضرو کسانو له اميرسره دبيعت لوړه پرقرآن باندي وکړه اومراسم له معمول دود سره سم په دوډۍ خوړولو سره پای ته ورسېدل . دڅواوونو له پاره ښاردهيواد دبيلابيلو سيمو په خلکو ډک و . دقومونو خانان ، دښارو واليان ، دکليو ملکان اونورټول اميرته دبيعت ورکولوله پاره راغلي وو اوهغوکسانوته ، چې بيعت ورکاوه له معمول رواج سره سم «خلات» يا ددرناوي چپنه ورکول کېده . دا يورازچوخې دي چې له نصواري ، شنو يازرغونو ټوکرانو څخه روغې سوي اودپاسه ورباندي دطلايي تارخامک سوي وي . په راغلوکسانوکي ځيني خلک دومره بې وزلي اوغريبان وو چې کالي يې ترګودډيرولږڅه ښه اوددغه غونډې له پاره يې پرېولي اودبوټونو پرځای يې دابتدايي څرمني چاروغي په پښوويې . دوی چې به په بازاروکي له خپلوخلاتونه سرګرزېدل، ټول به شرمندوکي اوپوڅه مغروربښکارېدل . په کابل کې زياتره ګنډونکي په پرله پسې توګه دهغو خلاتونو په ګنډولو بوخت وو چې داميرپه غوښتنه خلکوته دعزت لپاره ورکول کېدل. ځيني خلاتونه ډېرازرښتناک دي اوله سنګينو کشميري ټوکرانو څخه چې په لاس ګنډل سوي وي ، خوراګڼ خامکونه اوګلابتوني اووربښميني پتې باندي کار سوي وي. دغه راز خلاتونه په سلګونو روپۍ بيه لري.

دهیواد ټول غټ ملایان په کابل کي راغونډ سوي اوټولو ته خلاتونه ورکول سوي وو. نوي امیردوی ته ډېره پاملرنه کوله. ملایان دټولني یوه ډېره اغېزمنه برخه ده اوکولای سي دخلکو ذهنونه هرهغه لوري ته کش کړي چي ددوی خوښ وي. دري څلورتنه ډېرسپین ږیري اوبزرگوار ملایان وگومارل سول، چي دفقید امیر قبرته ددوعا اوختم له پاره پاته سي . وروسته دځینو خلکو له خولې واورېدل سول چي له قبرڅخه شنې لمبې راوتلې اوداده دروح دعذاب څرگند ثبوت و. په هرصورت ، قبرته دنامعلوموکسانو له خوادري څلورځله دبې حرمتی په خاطر اوروورته سو اوپه خلکو کي اوازه سوه ، چي دامیردروح ټودوخه د اوررونو سبب سوې ده . دفقید امیرپه شان دیوه لایق واکمن له پاره دامکنه نه ده، چي خپلسري خلك دي په زورسره سمي لاري ته راواړوي اودخان په مقابل کي دي دهغوی کرکه اونفرت ونه پاروي .هغه کسان چي له ده څخه په ژوند دارېدلي وو، دده دنامه په سپکاوي کي یې هیڅ نه سپمول . څکه دی مړ و اودغچ اخیستلو واك یې نه درلود.

عسکربیاهم مطمین اوارام نه وو. په هماغه ورځ چي سردارحبیب الله دټول لښکرپه مخ کي دامیرپه توگه اعلام سو، دمومندزیوټولی جگه سوه اودجنگ چیغي یې وکړې خونوروټولیو یې ملاتړ ونه کړ اوخه ترڅې جوړه نسوه . داردل ټولی خلکو ته چي دهرراز ناآرامیو اوپاڅون پرخلاف وو ، څوڅوواره دنورو ټولیو له خوا بلنه ورکړه سوه چي له پاڅون سره یوځای سي اوورته وېل کېده چي که دوی داکارونکړي ، نورڅوك هیڅ هم نسي کولای. څکه دوی غواړي چي پاڅون باید عمومي وي اونه غواړي چي یودبل پرضد وجنگیږي بلکي هدف یې داوسنی واکمني کورنی لیري کېده اودبل حکومت جوړېده دي. مگراردل ټولی خپل پاچاته وفاداره پاته سوه اوپه پاڅون کي یې له گډون څخه انکاروکړ.خوله دې سره سره زیاتره یې ناراض اودنورولښکرو خواته یې میلان درلود . زیاترو یې په ډاگه وېل چي که انگرېزهیواد ته راسي، دوی به داوسني واکمن له پاره ونه جنگیږي بلکي وسلې به کښیږدي .

نوي امیردلښکرداراموله له پاره خپله توجه ددوی ټولو دمعاش زیاتولو ته واړوله او زه پـــه ورکشاپوکي غوږېدلم، چي ځیني عسکر په دې باب مشوري

کوي،چي که امیرخپله ژمنه پرخای نه کړه اوکه دمعاش زیاتوب کافي نه و دوی باید څه وکړي؟.په دې کي هیڅ شك نه وچي داغوښتنه دټول لښکر وه . ددوی معاش دمیاشتي اته کابلي روپۍ و (پنځه شلنگه و اته پنسه ) اویوه سړي راته وویل، چي دی دمیاشتي تردوولس روپیو په کمه قانع نه دئ . اوکه دغه اندازه معاش ورنه کړه سي، دی به له نورو کسانو سره یوځای سي. دعسکرو معاش دبرژردمیاشتي لسوکابلیو روپیو ته جگ سو خودمعاش دازیاتونه کافي ونه بلل سوه اوناراضیودوام ومونند . په راتلونکي اخترکي، چي سردارنصرالله دامیردناروغی له امله دهغه پرځای لښکر معاینه کاوه اوخلکو ته یې له معمول سره سم دامیرسلامونه وویل ، هیچایې علیك ونه وایه. دځوشیبو له پاره حالات نازك سول خوسردارنصرالله خپلي معایني ته ادامه ورکړه، ئکه هیڅ چي گویانه وي پېښ سوي . مراسم بې له دې چي کومه بله ناوړتیا دي پېښه سي ، پای ته ورسېدل.

نوي امیر دریفورم دېري ژمني وکړې خوپرځای یې نه کړې . تخت ته دده درسېدو په دابل کال وچکالي راغله ، واوره ونه اورېده . داکار د هغو اوبو دکمښت سبب سو، چي په غروکي دواورو له ویلېدو څخه راځي اوپه پسرلي کي دکرني له پاره ضروري دي . په نتیجه کي حاصلات لږسوُل . وچکالی دوام وکړ اویوزیات شمېر خلك له لوږي مړه سول . وروسته بیادخوراکي موادو دکمښت پرځنگ دکولراناروغي هم راغله اوپه یوځواوونیو کي یې په زرگونو تنه ووژل . په خلکو کي عمومي ناراضیتی زیاتي سولې. څکه داټول آفتونه یې دامیرله بدشامته گڼل . دامیردوژلو له پاره دسیسې کشف سوې اوامیرخان په ارگ کي خوندي وساته . کله کله به یې ځان ښکاره کاوه . زیات وخت یې په حرم سرای کي تېراوه اودمخبرانو رپوټونه یې پخپله لوستل . حکومت یې خوشي کړی و چي خپل کارونه پخپله وکړي .دې کارنارضایتی نوري هم پسې زیاتي کړې. دغه راز له دې بېري چي څوك خیانت ورسره ونه کړي ، له مخصوصوکسانو پرته یې بل چاته اجازه نه ورکوله چي ده ته حاضرسي .دهغوخلکو له پاره یې چي کوم شکایت یې درلود ، یوسیستم جوړکړ چي شکایت کوونکي بایدله کوټوالی څخه یوټاپه سوی کاغذ یا د عرض پاڼه رانیسي ، خپل عرض پرولیکي

اوژمنه سوې وه چي دغه راز عريضو ته به پاملرنه کيږي . دغه رازعريضې به په هغه بکس کي اچول کېدې چي دکوتوالی مخ ته به دهمدې مقصد له پاره اينبرول سوی و. کوتوال به هره ورځ هغه را غونډولې اواميرته به يې وړاندي کولې . خوخلکوشکايت کاوه چي دغه رازعريضوته دسملاسي جواب ورکولوله ژمني سره سره ، بياهم دوی پرټاپه سوي کاغذ پيسې ورکړي. خوجواب ترلاسه نه کړي ،که جواب ترلاسه هم کړي هغه داسي گونگ وي، چي نه دمنظوری معناورکوي نه دنامنظوری . په نتيجه کي داسيستم هم بې اعتباره سو. خلکو استدلال کاوه ، چي ولي پرداسي يوه ټکټ پيسې ورکړي چي په غالب گومان سره يې ستونزه نه په حل کيږي.

دفقيد اميردوخت داکارډېرگټهوروچي هغو خلکو ته په اجازه ورکول کېده له اميرسره وگوري چي پرسپرك يادجمعې په ورځ (دمسلمانانويکشنبې ) له مسجد څخه دراتگ پروخت به له اميرسره مخامخ کېدل .دې کاربه خلکو ته جرات ورکاوه . فقيد اميردخپلې پاچهۍ په لومړي سرکي دومره وړاندي ولاړچي ټولو خلکو ان جاروکښانو ته يې د «ورور» خطاب کاوه . نوی امير دااجازه نه ورکوله اوېرواعلان يې وکړچي که هرڅا پرسړك باندي ده ته عريضه وړاندي کړه ، بندي کيږي به . اوله خينوهغوکسانوسره چي له دغه امرڅخه يې سرغړونه کړې وه ، همداسي و هم سول . په نتيجه کي خلکو خانونه له خپل پاچا څخه بېل احساس کړل خکه له هغه سره يې خبري نسوای کولای ، ليکلي عريضې يې مستردېدلې اودوی بايد بې له دې چي دغورکولو اميددي ولري ،هرهغه څه زغملي وای چي ورپېښېدل، زړونه يې وختل .خکه اميرصاحب دوی هېرکړي وو اوددوی په غم کي نه و . افغانان په ډېروشيانوکي ډېرزيارکښ خلك دي اوبې له شکه ددوی ديني عقايدو له دوی سره مرسته کړې چي له حالاتو سره خان سم کړي. ددوی په عقيده امير روحاني مشردئ اودوی دهغه احترام په هرډول چي وي ، بايد وکړي . نورخلك به دغسي شرايطوکي مسايل پخپلولاسوکي نيسي خوافغانان ډېرقبېلوي خلك هم دي . دوی دخپلو خانانو له لاسه خکه خوريږي ، چي يودبل پرضد يې پاروي .

اوسنی اميرله سپورټ سره هم مينه لري اودخپل غتوالي په تناسب چي قديې

ترینځه نیم فوټو یوځه زیات پنډ (پریړ ) چارشانه سړی اوښني یې لږځه لنډي دي، خوبیاهم ښه تمرین کولای سي. دده اصلي مشغولتیا اشپزي ده اودامشغولیت دهیواد په زیاترو خلکو کي عام دئ . ویل کیږي چي دی ترخپلو اشپزانو لاهم ښه اشپزي کوي . دجمعې ورځ په خانګړي توګه دغه مشغولیت ته وقف سوې ده . دده ټول ملګري دخوړو په تهیه کولوکي مرسته کوي اوکله ، چي خواړه پاخه سول، ټول یو ځای سره کښېني اوپه ګډه یې خوري . امیردغه راز کله کله خپله دسپوګاډی چلوي اوکله لاچکراوښکارته هم ځي . پخوا چي میلې زیاتي وې ، دی به هرکله دڅو ورځو له پاره بهرته ووت. خرله کومه وخته چي پاچاسوی دی ، دپرلږ ښکارکوي اویوازي کوم مازیګر ووزي.

یووخت چي دکولرانارو‌غي پای ته رسېدونکې وه ، دی په پل بګرامي کي خپل ښکارځای ته ووت چي کابل دشمال ختیځ په شپږمیلي کي پروت دئ . هورې به یې څاوروني تېري کړې . ملګرو افسرانواومحافظینو یې شپې په شپږو کي تېرولي ځکه هواسړه وه اوږمی راتلونکی و. په دغه وخت کي یوسرکاري پیل مست (لېونی ) سو اوخپل خاوند (Mahout)یې وواژه، مخ یې پرکمپ ونیو ټول خلك چي په مخه ورتلل ځني تښتېدل . دامیرشاغاسي ، چي دده له خپلوانو څخه و، اوپخپله هم یوځه بدمغزه شانته سړی و ، امیرته وویل چي دی به پیل ووژني . توره یې کش کړه اوآس ته یې ورټوپ کړه . پرنورشلوټنوسپرو یې ږغ وکړچي په ده پسې سي اوپه ګډه پرپیل باندي برید وکړي. پیل هم ددوی پرخوا حمله پیل کړ. افغاني اسونه دپیلانو په مقابل کي درېدلای نه سي اوکله چي یې ولیدل ، پیل ورباندي دبرید په حال کي دئ، هري خواته سره تیت سول اوپه یوڅو دقیقو کي میدان خالي پاته سو . پیل به کله په یوه اوکله په بل پسې منډي وهلې . په داسي حال کي چي دتېښتي دلاري موندلو په غرض دسړیو اواسونو قهرجن اوعصباني تلاښونو ، له وېالوڅخه ټوپونووهلو، له کوچنیو بوټواونیالګیو سره ټکرېدلو دتماشا کوونکو له پاره له خطرسره سره ، یوخندوونکې صحنه جوړه کړې وه . په پای کي پیل یوې ژوري کندي ته ورونښوېدی او هورې پکښې بند سو . دپاس له خواپه ښاخونواوښوکي پټ سو اوپه دې ډول پسه دام کي ولوېد . له څه مشورو وروسته فیصله وسوه، چي پیل ته

بايدځلورپونډه کافور، ځلورپونډه ترياك اوځلور پونډه چرس ورکول سي چې مستي يې ورآرامه کړي اوهمداسي وسوه. په دابل سهارپېل مړو. دداسي نتيجې انتظار چانه درلود. که څه هم له دغي اندازې درمل سره دانتيجه طبيعي وه .افغانان دواقعي علاج له پاره پرزيات مقدار درمل باورلري.

اميرحبيب الله خان له ټېنس اوکرکيټ سره هم مينه لري په تېره بيا له کرکيټ سره خکه ددوی ملي لوبي (توپ بازی) ته ورته ده . توپ بازي هم په توپ اولرگي سره کيږي . داشپږی پرځنگ دامير بل ساتېری Magic Lantern (۴) دئ . دهغه په زرگونوسلايډونه لري، چې خني يې دنړی دډېرو جالبو ځايونو عکسونه دي. ماامیرته دسينما يوماشين ورکړ چې دوې شپې پرله پسې يې دارگ دددربارپه يوه خونه کي ايښی و . دسينماماشين په انتظارخانه کي ايښوول سوی و اوتماشاچيان دددربار په يوه بله لويه خونه کي ناست وو. ددې دووخونو ترمنځ دهلېز باندي يې لنډه پرده ځړولې وه چې تصويرونه وربانديي لوېدل. په اول مابنام چې هرڅه آماده سول ، امير هغې خوني ته راوبلل سو چې مامخکي سامانونه پکښې سمبال کړي وو. اميرله ماځخه وغوښتل ، چې خپل کار ور وښيم . ماهمداسي وکړه. وروسته دی بلې غټې خوني ته ولاړ، چې نمايش وگوري اودمخه تردې چې تماشې ته دشروع کڼولواجازه ورکړه سي ، پرداخلېدو باندي يې فيس کښېښود. پرچوکی باندي ناستو کسانو بايد لس روپۍ اوپرپښوولاړبايد پنځه روپۍ ورکړي وای . کله چې مادغه خبره واورېده . فکرمې کاوه چې ماته به هم ددغه ساتېري جوړولو په عوض کي خپله ونډه راورسيږي ، خوامیرهغه ټولي پيسې خپله واخيستې اودادده دهغو خاصيتونو يوه بېلگه وه چې خلکويې په باب خبري کولې .

## داتم ښپرکي لمنليکونه

( ۱ ) ډېورچستر په نامه يوه سيمه دلندن په لويديځ کې پرته ده . چې د Lord Dorchester نامه ته منسوبه ده .لارډ ډورچستر ( ۱۷۲۴ ـ ۱۸۰۸ م )دانګلستان يو زوړ رز جنرال و چې د کاناډا د کيوبيك ايالت په نيولو کې يې ميړانه ښوولې وه او د همدغې سوبې له امله دجنرالۍ رتبې ته رسېدلی و . نوموړي پر نورو دندو سربېره ، دوه واره دکاناډا د ګورنر جنرال په توګه کار کړی و ( م.ع )

( ۲ ) «خان ملا» د قاضي عبدالرحمن بارکزي کندهاري لقب و ، چې د اميرعبدالرحمان خان په اداره کې يې د قاضي القضات مقام درلود. خان ملاقاضي عبدالرحمن د قاضي محمد سعيد « خان علوم » زوی د قاضي محمد اسمعيل ( ژړي نيکه ) لمسی او د قاضي نصرالله خان کړوسی کېدی . قاضي نصرالله خان د لوی احمدشاه بابا د عصر فاضل او علمي شخصيت و .دکابل په زاړه ښار کې د « خان ملا يا خان علوم » په نامه يوه کوڅه سته . چې دقاضي محمد سعيد نامه ته منسوبه ده .

( ددغې درنې او علمي کورنۍ په باب وګورئ: کانديد اکاډميسن محمد اعظم سيستاني ـ دونابغهٔ سياسی و نظامی افغانستان در نيمهٔ اول قرن نزدهٔ ميلادی ـ صفحات ۶۸ ـ ۷۸ ـ چاپ ۱۳۷۱ ش )

( ۳ ) دغه حالت د دې کتاب تر ليکلو نژدې يوه نيمه پېړۍ وروسته بيا تکرار سو. د کابل ښکلی ، ودان او تر زياتې اندازې عصري ښار چور او له خاورو سره برابر سو . داسې ښکاري چې ددې خلکو عادت په دې يو نيم سل کاله کې دومره زيات بدل سوی نه دئ ( م.ع )

(۴ ) مېجك لانتېرن دلومړنې پروجکتورنوم دئ. چې د ۱۶۵۰ م کال په شاوخوکې اختراع سوی و. داوولسمې پېړۍ په پای کې دغه راز پرجکترونه په هوټلونواومانيوکې دکوچنيوسينماګانو په شکل اېښوول سوي و اودالکين څراغ اويوه کمزوري شمع په واسطه چلېدل .زياتره يې دپېرياڼانو، دېبانو او شيطانانو ننداري ښوولې ( م.ع )

# نهم څپرکی

## زندانونه او بندیان

کوتوال او کوتوالي ـ پولیس دښلوپه توګه ـ دزندانونو بیان ـ له بندیانو سره دچال چلند او دهغوی دزولنوبیان ـ دبالاحصارزوړخاه ـ استخباراتي سیستم ـ دسریوغاړي پربکول ـ دروغ ریوټونه ـ فانه او شکنجې.

---

په ختیځ کي دکوتوال مقام له لرغونو وختونو څخه یولوړ مقام دئ. په ځینو هیوادوکي، کوتوال داعدام امرهم ورکولای سي خوپه افغانستان کي یوازي امیردسترو سزاګانوواک لري . دکوتوال یوه وظیفه دټولو عمومي اوخصوصي اعدامونو دسرته رسولوڅارنه ده .دغه راز دهغوشکنجو اداره کول دي، چي خلکو ته دهغوی پرجرمونو باندي داقرارکولو اودهغوی دملګرو دنومونو ښوولولپاره ورکول کیږي .همداشان دټولوسزاګانو اوجریمودسم عملي کېدو څارنه ده . پردې سربېره دده وظیفه دټول ښاردانتظاماتو تعقیبول ،دپولیسو اداره کول ، څان ته دټول ملکي اوجنايي قضیو (دعوو ) ورغوښتل ، دکوڅو د کلانترانو (ملکانو ) درپوټونواخیستل اوڅېړل اودزېږېدنو اومرګونو دریکارډ ثبتول دي.

دکوټوالی دفتردارګ بازار دګومبتي په څنګ کي جوړسوی دئ . دغه بازار دښارتر ټولو نوی بازار اودارګ ماڼۍ ته نژدې بازاردئ . په کابل کي که څوک دېرښه مالونه غواړي راني‌سي ، همدلته مونډل کیږي . دکوټوالۍ دلوی دفترپرڅنګ دکابل په بېلابېلو کوڅوکي دکوټوالۍ (پولیسو ) یوشمېر مرکزونه هم سته چي په اصل کي دتښتوونو دمخنیوی په مقصد اوهیواد ته دټولو واردسوو مالونو دګمرکي محصول دټولولپاره دګاونډیو ولایتونو دپولو پرټولو اصلي لارو باندي جوړسوي دي. په دې ډول پولیس کولای سي هیواد ته دهرراتلونکي اووتونکي شخص څارنه وکړي . په کابل کي ګمرکي محصول د یــــوې مخصوصي ادارې له خوا، چي د همدغه مقصد له پاره جوړه سوې ده،

راغونډيږي. دپوليسو په هرمركز كي پرحوالدار (Sergeant) سربېره دكوتوالى دسپاهيانو اووه كسيزګارډ ستنه . حوالداران بايدليك لوست وكولاى سي. خوډېر لږيې باسواده وي اوخپل دوست يامل‌ګرى يې ورسره وي اوټول رپورټونه ليكي . ترحوالدارپه رتبه كي يوشمېر نورلوړ افسران هم ستنه خو دوى ټول ، افسران اوسپاهيان له چوكۍ څخه دګټې اخيستلو اودفترته له حاضرسويو كسانوڅخه دپيسو اومالونو تروښولو (اخيستلو ) اودخان حق په جانب ښودلو معمول دودپالي. ديرچاله پاره چي په يوه پېښه كي ګيرسوى ياله قانون څخه په سركښى متهم سوى وي ، دكوتوالى سپاهيانوته دخان خلاصولو په مقصد بډې وركول عام كاردئ اوهر سپاهي يې په هغه صورت كي كوي، چي لوړو مقامونو ته دخبروركرلوكوم شاهد نه وي اوده ته ستونزي پېښي نسي.

په كابل كي پوليس پخپله ترټولو غټ غله دي اوهرڅه لوى وي كه ووړ، چي په ګوتو ورسي، اخلي يې . خو كه بل څوك پرغلا ويني ، يايې شك پرراسي ، ډېرزيات خښمېږي. ښايي پرخپلو امتيازونو باندي به يې تېري ګڼي. پوليس به په بازاركي دتېرېدلو په وخت كي له دوكان څخه ډك موټ مېوه ياكوم بل څه اخلي اوخوري بـه يـې خـودوكـانـدار بـايـدهـيـڅ هـم ونـه وايـي. كـه كـوم دوكانداردپوليسو ددغه شان عمل په وړاندي غالمغال وكړي، ډېرژربه يې پرضد كومه دوسيه جوړه سي اودى به پكښې راګيرسي . كه يې داتهام له پاره بل څه نه وي ، په دې تور يې متهموي چي كانې (وزنونه ) يې كم وو. څرنګه چي په كابل كي دقيق فلزي وزنونه (كانې )، چي دحكومت په وركشاپونو كي دي جوړسوي وي ، ډېرمحدوددي اودوكانداران په سوداكي دوزن كولو له پاره بېلابېل كانې دسړك دغاړې له كاڼو سره اليش كړي وي، نودوكاندار په همدغه دوسيه باندي كوتوال ته دمحاكمې له پاره بوزي. كله چي دغسي باوري اسناد وړاندي سي ،څرګنده ده، چي دوكاندار ته درنه جريمه وركول كېږي او د كوتوالى سپاهي ته په راتلونكي كي نورهم درناوى كيږي . په كابل كي، چي زياتره غلاوي سوي دي، دكوتوالى دسپاهيانو لاس پكښې وي. دپوليس په توګه ددوى موقف ، دوى ته داامكانات برابروي چي ډېرډك دوكان ياكورپه نخښه كړي او دخښتنانو دتګ اوراتګ ډېردقيق معلومات ترلاسه كړي.

دکوټوالی ګارډ باید په هرودوو اوونیو کي دبېلابېلو ستېشنونو ترمنځ سره الیش سي. خوکه څوك وغواړي په هغه ستېشن کي پاته سي چي کاريې لړاوعوايدیې زیات وي ، پاتېدلای سي. داکارونه هغه کسان سره تنظیموي چي دکوټوال دباور وړ وي . دغه سپاهیان دکوټوال له خوا دسزاګانو اومجازاتو دعملي کولو اودګزموکولو له پاره مقرر سوي او ټاکل سوي کسان دي. ځیني خوان سپاهیان په وحشتناکوسزاورکولو کي له ګډون وروسته دېرناروغ سي مګرورو ورو ورسره عادي او زړه یې سخت سي او څه موده وروسته یې دنورو پرکړاو،ان دکوم بدمرغه پرمرګ او شکنجو ورکولولا هم زړه نه خوږیږي .

ترښاردباندي هم دبېلابېلو قطعو دعسکروګارډونه وي .دغه شان ګارډونه زیاتره دارګ پرشاوخوا اودښارپه نوي برخه کي ځای پرځای وي . داوسني امیرپه وخت کي دغه ګارډونه اودکوټوالی دا، دواړه په شمېرکي زیات سوي دي اوپه ځینو ځایو کي خودشپې له خوا پرهروسلومتروباندي یوولاړوي .دکوټوالی ستېشنونه هم په دې وروستیو وختوکي پرټولو سړکونو باندي اوترښاربهرترتقریبا څلورومیلو پوري ددې لپاره جوړسوي دي چي دبې اجازې وتونکو مخه ونیسي . ګویا اوس څوك ترښاربهران پنځه یاشپږمیله لاهم له اجازې پرته سفرنسي کولای. په لیري ستېشنونوکي کله کله دکوټوالی پرسپاهیانو باندي دشپې له خوا دپیرې پروخت دټوپك اخیستلو په مقصد برید کیږي . دیوټن وژل سوي سپاهي مړی خوپه بابر کي (له ښارڅخه صرف دوه میله جنوب لورته ) ټوټه ټوټه سوی هم و اوغالبا به له دې امله و، چي د ژوندي پاته کېدلو له پاره یې ښه جګړه کړې وه اوځیني یرغلګریې ټپیان کړي وو.

دکابل زندانونه دهمدې مقصد له پاره جوړي سوي ودانی نه دي بلکی له هرحکومتي کورڅخه چي مناسب موقعیت ولري، دزندان کاراخیستل کیږي اوجیلخانه ځني جوړیږي . کړکیوته یې کلکي میلې ورکړي وي چي دبندیانو دتېښتي مخه په ونیول سي اود بهردروازه یې دېرټینګه اوقلف وي . دکوټوالی یو سپاهي دننه پیره ولاړ وي . په دغه راز کوروټو کي دبندیانو دشمېر په نسبت ځای بېخي نامناسب وي خومقامات هغه ته نه پاملرنه کوي اونه یې د پاك او سوتره ساتلو له پاره مرسته کوي . ان ددغو بندیانو څارویو دسم استوګن کولو

پرمفکوره دلاسه لاخاندي هم . دناروغیو دمخنیوی فکرخوپه مطلق ډول وجودنه لري اوبندیان په یوه داسي کوړکي د رمې په شان سره راغونډ سوي وي، چي ښايي دشلو یادیرشوکالوراهیسي تري زندان کاراخیستل سوی دئ خو هیڅکله هم پاك سوی نه دئ . په نتیجه کي بندیان هرکله په لویه تبه اونورو ناروغیو اخته کیږي . یوازي همداتبه دبندیانو په سلوکي اویا ـ اتیا له منځه وړي اوعجیبه داده، چي ولي ټول نه مري.

یوچاچي څوکاله یې په بندیخانه کي تېرکړي وو، ماته بیان کاوه، چي دی ، پلاراویوشمېر نورخپلوان یې په ځنځیرونوسره تړلي اوله یوې لیري فاصلې څخه یې کابل ته په کوم سیاسي تور راوستلي اودلته یې په زندان ته اچولي وو . داډېره نادره خبره ده، چي ددغه راز اتهام بندیانو غوردي سملاسي وسي. دوی څوکاله همداسې پراته وواودخوشي کېدو امید خویې کوږتې نه درلود . خپلوانو اودوستانو یې امیرته له دې بېږي عرض نه کاوه، چي دوی پخپله په بلا کښېنوزي . هغه خونه چي دوی پکښې اچول سوي وو ، بېخي وړه وه اوله نورو بندیانوسره ددوی شمېر تقریبا دېرش تنه و .دشپې چي به بیدېدل ، په هغه صورت کي خایېدلای سوای چي ځنګ ځنګ یوه لیکه غزېدلي وای . دبیت الخلا انتظام بیخي و، نه . په دغه وخت کي لویه تبه هم په ګډه سوه چي یوپه بل پسې یې له پښو اچول. دده پلار اویوشمېر وروڼه و دتره زامن یې له نوروسره یوځای ښخولوته یووړل. دی پخپله له تبي څخه څو اوونی ناروغ و، خو روغ سو اوکله چي ناروغي پای ته ورسېده، ددوی له راغلیو کسانو څخه یوازي پنځه تنه پاته وو . ډېرژربې نوربندیان ورته راوستل اوخونه بیاډکه سوه چي له دغوبندیانو څخه څني په تبه اخته کېدل اومړه کېدل.

په هغه وخت کي یو شمېر بندیان په پټه توګه ایستل کېدل اوتقریبا هره شپه به یو سړی غوښتل کېدی اوله خپلو بندیانو سره به تلی اوبیایې هیڅ درك نه معلومېدی . دې کارنوربندیان په وحشت کي واچول خکه هیڅوك نه پوهېدئ چي څه پیښیږي اوښايي دده نوبت به هم دابلمه شپه راسي. په پای کي فشار دومره زیات سو چي هغوی بغاوت اوتېښتي ته چمتو سول . خکه دتېښتي په تلاښ کي مــــړکېدل هیڅکله تردې بدتر نه و، چي څوك دې دمرګ ورسېدو ته

منتظر ناست وي . خکه نويوه شپه ددروبجو په شاوخواکي کله چي پيره دار کهاله ورته معلوم سو اونورعسکر زياتره بيده وو ، دوی ترکوټي راووتل اومخ پردروازه رهي سول . په دغه وخت کي يوبل پيره دار وليدل اوډزيي پروکړ ، يوتن يي وويشت خومخکي له دې چي توپك دي بيادك کړي ، يوغټ پښتون چي دبنديانو لارښوونه يي کوله ، پرزړنګي پورته کړ ، دمخکي يي راوويشت اوملايي ورماته کړه . بيا يي توپك خني واخيست اوبه برچه يي وواهه. په غالمغال باندي نورپيره داران راويښ سول اويوه کوچني جګړه ونښته . څوتنه پيره داران ووژل سول اونوروتښتېدل . خوځيني بنديان هم په دغه اخ ودب کي ژوبل سول .دزندان دروازه اوس بې پيرې وه اوبنديانوفراروکړ. خوتښتېدلوپيره دارانو نورکسان خبرکړل اوبنديان لاپه کوڅوکي زيات ليري تللي نه وو، چي پيره داران ورورسېدل ، مخ وشايې ورته ونيوله اوله لنډ اخ ودب وروسته له زوره ولوېدل اوبيرته زندان ته راوستل سول . له دې امله څوتنه چي هغه غټ پښتون هم پکښې و ، په دارسول. پرنورو يي دومره درانه څنځيرونه واچول، چي ترلاندي تلای نسوای. سري راته وويل چي څوکلونه همداسي تېرسول . په پای کي دده دوستانو اميرته عرض ورساوه .څرنګه چي دده پرخلاف کوم ثبوت نه واوهغه والي چي دی يي بندي کړی و ، پخپله په دارسوی و. خکه نو دی خوشي سو. مګرصحت يي ډېرخي خراب سوی و اويوڅوکاله وروسته مړ سو.

بنديانوته دحکومت له خوادورخي دوې وچي ډوډۍ ورکولي کيږي (هره يوه يي نيم پونډ وزن لري ) ، يوه سهاربله په شپه کي . داډوډۍ هيڅکله کفايت نه کوي اوکوم بندي ته چي ددوستانو ياخپلوانو له خواخواړه اوپيسې ونه رسيږي، حال يي ډېرخي خراب وي. په هرصورت بنديان پخپلو منځوکي په تېره بياغريب خلك ټول ډېربنه وي اويو څوك چي دخورك له پاره څواړه ولري ، که څه هم لږ وي له هغه چاسره يي شريکوي چي هيڅ ونه لري . بنديانوته يي په پښوکي زولنې اچولي، چي پرښنګرو (بجلکو ) يي تړلي سوي وي ، ددوی دحرکت مخه نيسي اودتېښتي له پاره هرراز تلاښ يي شنډوي .لاسونه يي يوازي هغه وخت ولچك وي، چي يو سړی اعدام ته بيايي، يا کومه مخصوصه سزاورکول سوې وي . نور وخت لاسونه ازادوي. په ټولو حالاتوکي له بنديانو سره دهغوی د پيره

دارانو سلوك ډېرخشن وي .كه كوم بندي دپيره دارامرسملاسي پرخاى نه كړي دتوپك په تېره څوكه يې پرنازكه ملاباندي دخبرداري په مقصد وهي. تركومه خايه چي ماليدلي دي، فكركوم چي دكوخې دسپي ژوند دبنديانو په مقايسه ډېرخوشاله ژونددئ .

په ټولو زندانوكي ترټولوبد اوترټولووحشتناك يې په بالاحصاركي يوزوړځاه دئ . دايوپخوانى ځاه دئ ،چي په ډېره كي كيندل سوى دئ. دبېخ خواته يوځه پراخ دئ اوپسور يې پنخلس ، شل فوټه كيږي . دڅاه پرخوله باندي يوه كوډله ده چي دسپاهيانو يوه پيره پكښې ساتله كيږي . په دغه ترمخكي لاندي غاركي هغه انسانان د تل له پاره اچول كيږي، چي ډېرغټ جرمونه يې كړي وي (البته دمقاماتو په نظرغټ جرمونه ) اوهوري پسې مري. دمړو جسدونه چي له ژونديوسره يوخاى پراته وي ، تري راايستل كيږي. البته په ځاه كي د روغتيا ساتني انتظام نسته ، بنديان ورشيوه كيږي اوهغوى چي ورولوېدل هوري پسې پاتيږي . دورخي يوخل خواړه (وچه ډوډۍ اواوبه ) په رسۍ ورځړول كيږي . ډېرلږكسان داسي پكښې وي چي په لنډه موده كي دي يې مغزوصحت له لاسه نه وي وركړي. زياتره بندي سوي كسان ډېرژرخپل ژوندته له دې لاري خاتمه وركړي، چي خپل خانونه له ډېرو سره ترهغه وختنه وهي ، چي بې هوښه اوپسې مړسي. څكه يوازيتوب اوبيري دوى ټول ليونيان كړي وي .دڅاه ببېخ تياره دئ اويوازني روښادڅاله خولې څخه ورخي.هلته هيڅ بندي دبهرنى دنياږغ نه اوري . تعفن اودهوا چټلتيا تراندازې زياته وي اودا پخپله كفايت كوي چي دمرگ سبب دي سي. دلته يو سړى سته چي ويل كيږي چي په دغه ځاه كي يې پنخلس كاله ياتردې زيات تېركړي دي . خوهغه ببخي چورلېونى دئ اوبه خپل ماحول خبرنه دئ . كله چي اميرمړسو (مراد يې اميرعبدالرحمن دئ ـ م.مـ )، اوسني اميرامروكړ هغه كسان، چي په دغه ځاه كي دي، راودي ايستل سي اوده ته دي حاضركړه سي. درې تنه پكښې ژوندي پاته وو. دهغوى څېرې دكتلونه وې څكه مخونه يې دمړوپه شان تك سپين اوښتي وو. سترگي يې په روښاكي ديدنه كاوه ، دسرونو ږيرو وربښتان يې اوږده اوجړسوي اوپرمخونويې راخوړند سوي وو. دوحشيانواوځناور په شان ښكاربدل .دگوتو نوكان يې دومره اوږده سوي وه چي

دبانښې هغې ته ورته ايسېدل . امير يې دخوښې کېدو امرورکړ خودوې درې اونۍ وروسته يې بېرته امروکړچې ودې نېول سي اوښاه ته دي واچول سي. امير دنوروکسانو شهادتونو په دې خبره قانع کړی و، چې ددغو بنديانو په دغه شان بندي کولوکي يې دپلار عمل عادلانه و.

کله چې فقيد اميرله روسيې څخه هيوادته راستون سو، له خان سره يې دروسيې له استخباراتي سيستم سره علاقمندي راوړې وه اودخپل حکومت له سيستم سره يې ملګرې کړه .په نتيجه کي له هروځلورو تنوڅخه يوتن يې رپوټچي (مخبر ) و، او امير ته يې مخصوص رپوټونه لېږل .دا مخبران په ټولو طبقاتواوړتبوکي موجود وو. دهرغټ کور په نوکرانوکي يوېادوه مخبران وو اوهرڅه چې يې ليدل يا اورېدل ،رپوټ به يې کاوه . څرنګه چې دهيواد رسم ورواج داسي دئ چې نوکران له بادارسره په يوه خونه کي ناست وي .دوی دروازې ته نزدې دذې له پاره کښېني چې دخپل مقام ټيټوالی په وښيي ، نورنو دوی ته اجازه سته چې دخپل بادار اودهغه دملګرو په خبروکي خپله نظريه څرګنده کړي. څرګنده ده، چې دوی هرڅه په هروخت کي اوري اوکه يې بادار له کوم مېلمه سره خصوصي خبري کوي، دی بايد ترخونې دباندي روزي، چې داپخپله غيرمعمول ودبدګومانی کاردئ او بايد اميرته يې رپوټ ورکړه سي . اميردخپلو زامنو په کوروکي مخبران لري، دغه راز دهغوی دحرم په ښځوکي يې لري اوان دخپل حرم په ښځواودخپلو مانديڼوپه منځ کي مخبران لري. دده زامن اومانديڼې يې بياپخپل روڼ سره دده په نوکرانوکي مخبران لري اودټولو هغوکارونو خبرورکوي، چې ددوی په ارتباط کيږي. دايوډېرپرمصرف سيستم و داسي سيستم چې مخبرانوترې په ټګۍ سره ناوړه استفاده کوله اودهغو کسانوپرخلاف به يې دروغجن رپوټونه جوړول، چې ددوی به ورسره جوړه نه وه يابه ترې ډارېدل اوپه يوډول به يې له لاري ايستل.دغه راز به دوی دقضاوت په وخت کي دبل چاله دښمن سره ورته چلندکاوه.

دفقيد اميرپه نظر ترټولوسخت اونه بخښونکی جرم داوچې يوڅوك دده يادده دهيواد په باب دهندحکومت ته ليکلی رپوټ ورکړي . دانودده هغو مخبرانو ته تياره ميله وه، چې غوښتل به يې خپل کوم دښمن له لاري ليري کړي . دوی به

کندي ته دخپل حريف دورغورځولو له پاره ددسيسې جوړولو په مقصد بې له دې، چي دامير له غچ اخيستي څخه دي بچ سي، ښه پوره اندازه چالاکي ښودله اوپردې کارېې ښه پوره غوراووخت لګاوه . ددغه راز دسيسوپلان به معمولاً داسي جوړېدئ، چي اميرته به يې سرپرسر رپوټونه لېږل . داچي څه راز دوی انګرېزي حکومت ته دپلاني سړی رپوټونه درك کړل اوپه ثبوت کي به يې جعلي ليکونه اورپوټونه چي ګويا دوی موندلي وو، وړاندي کول اوداسي به يې ښوول چي تورنو کسانو داليکونه په هندوستان يا کوم بل خای کي خپلو دوستانو ته لېږل. ددغو ليکونو مسودې به يې له لازمو لاربښوونو سره کاپي کولې اواميرته به يې څواوونۍ وروسته استولې . په دې وسيلو به دوی اميرته له بېلابېلو خايونو څخه دليکونو لېږل تنظيمول اوپاکلی شخص به يې دانګرېزي جاسوس په توګه متهم کاوه . کله چي به يوليك په بل پسې اميرته رسېدی اوپوه به دهابل تاييد اوتصديق کاوه، طبيعي وه، چي اميربه هم وخنبمېدی اوډېره موده به تېره سوې نه وه، چي متهم به زندان ته ولاړ اوهورې به پسې ورك سو اوپته به يې بيا په ندرت سره لګېده . معمول داسي و، چي دغه راز خلك به دشپې له خوا يا په زهرو ياپه برچو ياهم دغاړي په پرې کېدو له منځه وړل کېدل.

دسړی دحلالولو (دغاړي پرې کولو ) طريقه ډېره ساده خو تاثرآوره وه . دووتنو به دسړي لاسونه ټينګ کړل او سربه يې دشاخواته کش کړ .بل تن يې پښې نيولې ، که به دقرباني سړی غښتلی و دووتنو يې پښې نيولې . ټاکلي افسر به خپله توره دسړي پرغاړه مخ وشاته تېره کړه اوترهغوبه يې تېروله چي پرهاربه ښه ژورسو. وروسته به سړی پرمخکه وغورځول سو اوهغه شان ترېکي به يې پيل کړې له چرګ، چي يې په عين شرايطو کي کوي. وروسته به مړسو . په خينو حالاتو کي به يې که اميرحکم کړی وای سرله تن څخه ورېرې کړ.

په نوروکېسونو کي چي پرسړي باندي دغاړي پرې کېدو حکم سوی وي قبرېې مخکي له مخکي لاتياروي .کله چي دچړې کارخلاص سي، سملاسي يې قبرته ور غورځوي او په يوم سره خاوري پرواړوي . ګويا ترمړيني دمخه يې ښخ کړي.

داميرــــــه نظرجعلي رپوټ سترجنايت دئ اودکشفېدو په صورت کي يې

عاملین سملاسي اعدامیږي . په څینو حالاتوکي چي یو څوك په غلطی سره ووژل سي، مجرمین یې زاړه ښاه ته په اچولوسره په خپله جزارسیږي . زه یووخت دامیرپه دربارکي ناست وم چي پنځلس شپاړس تنه بندیان اونورکسان راوستل سول. بندیان په جعلي ربوټ ورکولو تورن وو . نورکسان یې هغه خلك وو، چي ربوټ یې په باب تهیه سوی و . شپږ اووه تنه بندیان د «فانی» ورکولو په شکنجه محکوم سول . « فانه» داسي ورکول کیږي: دلرګي یوه پایه (ستن) چي تقریبا شپږانچه پسوررولري ، په اوږدو باندي پردوو برخو باندي چول کیږي . دواړي برخي یې بیرته سره یو ځای اینښوول کیږي اوپه اوږدو باندي یې نیمایي برخه په رسی تړل کیږي چي وروسته داسي ایسي لکه دټوکرانو غټ موږی . دپایې تړل سوی سرپه مځکه کي ښه مضبوط ټینګیږي .سره جلا سوې برخه یې دسطحي و خواته وي.د هغه چاپښه چي غواړي شکنجه یې کړي ، دپایې په لوړ سرپوري په نریو رسیو داسي تړي چي پرپښه اوپایه دواړو راوپېچل سي اودV په شان یولرګی دسرله خوا په درزکي ایږدي . کله چي دغه لرګی دکښتې خواته په سوټك ووهل سي. دپایې دواړه پلې سره پراخیږي اونری رسی په قوت سره کشیږي اودشخص پښه له پایې سره کلکه نښلوی . کله چي غواړي دشکنجې دغه آله استعمال کړي ، V شکله لرګی ترهغه وخته کښته ټك وهل کیږي، چي نری رسی پرپښه باندي یوڅه فشار راوړي . په دغه وخت کي هغه څه پوښتل کیږي چي دقضیې په ارتباط یې دتورن شخص له خولې څخه ویل مراد وي .که تورن له خبرو کولو څخه ډډه وکړي، V شکلله لرګی یوڅه نورهم ټك وهي او پرپښه باندي دنری رسی فشارلاپسي زیاتیږي. لرګی ترهغو پوري په سوټك ټك وهي چي تورن ټول هغه څه رسواکړي چي پرې خبروي (زیاتره خوله زیاتي شکنجې څخه دخلاصون په مقصد هغه څه وایي، چي دی په خبر نه وي ) اوکه دپښې پنجه عملا له پښې څخه پرې سي ، بیا یې دابلې پښې ته شکنجه ورکوي . دېرداسي کسان سته چي خپلي پنجې یې له لاسه ورکړي اوپه راتلونکي ژوند یې په کړاو وي ، خو پرهغه څه یې اقرار نه وي کړی چي په خبروي . له دې څخه دیوافغان دزغم اندازه لګېدلای سي. دیوه رښتیني افغان غوره توب دادئ چي دمرګ ترپولي درد وزغمي . او لـــــه خولې سپوڼ ونه باسي .اوخیني همداسي

دوي.دشکنجې بل ډول داسي دئ چي دسړي سر په لندو اوږوکي وپوښي اود اوږو څنډي داسي سره راغونډي کړي چي پياله غونډي شی څني جوړسي . په دغه پياله کي ايشېدلي غوړي توېوي. کله چي ماغزه په ايشېدو پيل وکړي ، ددرد اوکړاو تصور يې کېدلای سي ! دشکنجو نورډولونه هم سته خوتشريح کېدلای نسي.

کوم کسان چي يې اميرته راوستلي وو، د «فاني» له شکنجې ورکولو وروسته په سختی سره پرېښو درېدلای سول . پښې يې په گوډړانو وربېچلي وې. يو يې دازموينې په وخت بېهوښه سو، خواميرووېل چي خجالت دئ اوپرېيږه دارانو يې امروکړ، بيرته يې پرېښو ودروي. هغوی دتوپکانو په تېره څوکه په سختی سره وواهه ، لغتې يې ورکړې اوهغه بيرته پرهوښ راغی خومرگي حاله ناروغ ښکارېدی اوددرېدلو په وخت به زنگېدی . په پای کي ديوشمېر زياتومتناقضو شهادتونو تراورېدلو وروسته حکم وسو، چي يوڅوتنه دي په دار خوړند اونورېاته دي بنديان سي . دانو دمجازاتو له پاره يو مبهم تصميم و. نه محکومينو څخه يوتن دتېرېدلو په وخت کي اميرته ښکنځل وکړل اوورته ويې ويل، په داسي غضب اخته سې چي فکريې نسي کولای. پيره دارانو پرخوله بادي څوواره په سوك وواهه اوکش يې کړ. اميروژته په وحشتناکه توگه غانښونه چيچل چي داکارتل دقهرپه وخت کي کوي . خوله څو شېبو وروسته يې ژمسل ، ماته يې مخ راواړاوه اودنورو موضوعگانو په باب وړغېد.گويا غوښتل يې هرهغه څه له دماغه وباسي چي پېښ سوي وو . څوڅوتنه په مرگ محکومول اوددکشولو په وخت کي دهغوی خبروته غوږنيول ، اميرته کومه نوې خبره نه وه . زياترو خلکوبه داعدامېدو په وخت کي ښکنځل ورته کول څکه انتقام اوغچ اخيستنه دهغوی دکرکتر يوه ملي خانگړتيا ده.

# لسم څپرکی

## شکنجې اواعدام ډولونه

دامیراوسپنیزه واکمني ـ په وربښتانو خړول اوپه ژوندپوستول ـ په لرګیوباندې ترمرګه وهل ـ سري ټوټه ټوټه کول ـ له غره څخه لاندې راغورځول اوپه قفس کي له لوږې وژل ـ له ښځو څخه ښوروا پخول اوپه نارینه وباندې تراعدام دمخه څښل ـ دلوغ لیږکولو اولوږې سزاورکول ـ Saffold Scenes ـ په ژوندوني ښخول ـ دصابون دېګ ته اچول ـ لاسونه پرې کول ـ ړندول ـ ددرختو پرڅېو سوو ښاخونو تړل اوسره شلول ـ په توپ کي الوزول ـ په دارځړول اونور.

---

امیریووخت دخپلو خلکو دسرکښه کرکتر اوله دې بابته دستونزوپېښولو په باب خبري کولې . ویل یې هغه کسان چي سزاورکول سوې ده ، ارام سوي اوقانون ته یې غاړه ایښې ده . نوموړي زیاته کړه چي دخپلي واکمنی په دوره کي یې تریولك تنوزیات اعدام کړي دي.خوبیاهم یوڅو نورکسان لاسته، چي فکرکوي دده قوانین ماتولای سي . امیرخکه پرخپلو خلکو باندې ددوی له کرکتر سره سم لکه څنګه چي لازمه وه اوسپنیزه واکمني کړې ده ، چي نظم ټېنګ سي . یوه ورځ په باغ بالاماڼۍ کي دربارجوړو. ډېرنوعسکرباندې، چي کوم جرم یې کړی و ، امروسو ، دامیرحضورته راوستل سي. امیردحالاتو تحقیق وکړ او یوه افسرته یې لارښوونه وکړه چي نوموړی شخص ماڼۍ ته ورځرمه غونډۍ ته بوزي اوسریې وربرې کړي . داکاروسو اوکوم دوه تنه کوچني غلام بچه ګان چي ددغي تماشا له پاره ورسره تللي وو ، په داسي حال کي بیرته راستانه سول، چي دمخ بڼې یې سپینې الوتي اوغړي یې ربړدېدل . دالوموړی وار و، چي دغه راز یوه پېښه یې کتله . کوموکسانو چي دامیر په خدمت کي زیاته موده تېره کړې نه وي، له دغه رار پېښو سره عادي نه وي.

په هرصورت امیرډېرو کوچنیوجرمونوته دمرګ سزا ورکوي . که به یوچاکوم بل څوك وواژه ، امیر به پردې خبره هروخت نه خښمېدی ، چي یو چاکوم بل څوك وژلی دئ . غضب به یې هغه وخت ترکنترول ووت، چي وژل سوی شخص به ده پېژاندی او پرګـران به و. په داسي حالاتو کي به عموما حکم وسو، چي

قاتل دي په کومه خاصه وحشتناکه توګه ووژل سي . له غلام بچه ګانو څخه یوتن پرامیر د هرګران اودقدرت واختیار له مخي يې ترفیع ورکړې وه او په دې توګه دنورو په وړاندې مغرور اوکبرجن سوی و اوخان ته يې دښمنان ښه ډېر کړي وو ، یوماز یګر دیوعسکرله خواپه داسې حال کي وویشتل سو چي د شیرپور چوڼۍ په شاوخوا کي يې پرآس چکرواهه. کله چي يې عسکرامیرته راووست ، امیرفکروکړ، چي دی به له غلام بچه سره دښمني نلري اوضرور به کوم بل چا لمسولی وي. څکه يې نو تحقیق څني شروع کړ، چي چادغه عمل ته لمسولی يې؟ عسکرله جواب ورکولوڅخه انکاروکړ. دې کارامیرلاپه غضب کړامریې وکړچي سړی دي دماڼۍ په باغچه کي دسرپه وربښتانو وځړول سي اوهره ورځ دي څومربع انچه پوستکی څني شکول کیږي ترڅو اقرار کوي.

سړی په دریمه ورځ بې له دې، چي دبل چالخوا دي يې پرلمسونه اقرار کړی وي، مړ سو. خو دخلکوپه منځ کي دیوه جنرال نوم اخیستل کېدلی، چي په دغه وژنه کي يې دلمسوونکي رول څکه لوبولی و، چي نومړی غلام بچه دامیرپه مخ کي ورته په سپکه کتلي و اوده يې په انتقام کي داکارکړی و.

یوه بله پېښه دهغوکسانو له خپلوانو سره دامیردسخت چلند نمایندګي کوي چي دامیرله غچ اخیستني څخه تښتېدلی وو. یوبوډا سړی يې امیرته راووست. زوی يې له ملکه تښتېدلی و . دبوډازوی اودوه درې تنه نوریه دې تورن وو،چي خزانه يې وهلې ده اودهندوستان ته يې دتېښتي عزم کړی و. کوتوال ددوی په نیت غوږېدلی و اودتېښتي په ټاکلې شپه له نورو شلوتنو سره دهغه کورپه دروازه کي ورته ناست و،چي اوسېدونکوته يې زین کړي اسونه دتیښتي له پاره تیاررولاړوو. دبوډا زوی اونورملګرو ته څرګنده سوه ، چي کوتوال له خپلو سړیوسره ورته لارنیولې ده ، نویې دناڅاپي راوتلو فیصله وکړه . ناببره يې دروازه پرخلاصه اوله تورو اوتوپانچو سره يې برید پروکړ . کوتوال زره ورسړی نه واودکوتوالي سپایان هم عموما بې زړه کسان وي. بنایي علت يې دا وي ، چي دبېلابېلو توکمونو خلك سره راغونډ سوي دي . په هرصورت سپایانو له هغه وروسته چي یودوه تنه يې ټپيه سول ، برید کوونکو ته لارورکړه اوخوانان خپلو اسونو ته وروغورځېدل، چاچي يې مخه نیولې وه ، هغه يې رانسکورکړل .

اسانوته یې پونده ورکړل او بیایې درک معلوم نسو. دهلك پلار چې په کورکې پاته و ، دکوتوال لخوا نیول سوی او امیرته وړاندې سوی و. خوهغه په دې هډو خبرنه و، چې زوی یې تښتېدلی دئ . امیر ته یې دبخښنې لپاره زاری کولې اوویل یې، چې بې ګناه دئ او نوروپه تورمتهم کړی دئ . امیرهغوخوانانوته دېرپه غضب و، چې تښتېدلي وو خپله لکړه یې پورته کړه اوبودایې په وواهه اوپرنورکسانو یې هم حکم وکړچې وهي یې . دامیرپه مخ کې بوداترهغوپورې ووهل سو چې ساه یې ورکړه . مړی یې دوې ورځې پرکټ (چارپایي ) باندې په بازارکې دنورو دعبرت اخیستلو له پاره پروت وو. امیرتل دهغوکسانو نزدې خپلوانو ته سزاورکوي چې له مجازاتو تښتېدلي وي. زیاتره کسان خانونه په دې خاطر تسلیم کړي ، چې خپلوان یې خوشې سي.

په لرګیو (لښتو ) وهل عامه سزا ده . سړي پرمخکه باندې پرمخې غزولې وي اوپرشا (ملا ) یې په لرګیو وهي . دوه عسکریې یوې خوااودوه بلې خواته ولاړ وي اوپه داسې حال کې چې نورو کسانو ورته سړی ټینګ کړی وي ، دوی دلرګې واري پرکوي . کله کله امیرحکم کوي چې مجرم ته دې دمرګ تروختته وهل ورکړه سي . یوترکان چې دامیر دماڼۍ په نوې برخه کې دکارامرپرسوی او پروخت حاضرسوی نه و، یوسل وپنځوس لرګیه ووهل نسو اویوه ورځ وروسته مړسو . کله کله خودلرګیو ګوزارونه دومره درانه وي چې دملاهډوکي یې ورمات کړي اوانسان داسې له اخ وېوخه واچوي، چې لږ شمېر ګوزارونه یې دمړینې سبب سي.

اوسنی امیر دکوتوالۍ پنځلس تنه سپایان په دې خاطرپه لرګیو ووهل ، چې په وظیفه کې یې غفلت کړی و اودخپلو لوړو افسرانو دبې قانوني اجراآتو رپوټ یې ورکړی نه و. اته تنه یې خاې پرځای ترلرګیو لاندې مړل سول اونوریې څوورځې دبنوړ خوړلو نه وو. هغوی یې په زندان کې ساتلي اودټپونو دعلاج غم یې هم نه خوړل کېدلی . په یوه وروستۍ پېښه کې دامیریو نوکرکوم بدکارکړی اوملامتیا یې پریوه بل نوکراچولې وه . دا خبره کشف سوه . دغه سړی یې امیرته په داسې وخت کې راووست چې دارګ په باغچه کې دنوې ماڼۍ دموقتې چت پـــه جوړولو بوخت و. سړی یې په لرګیو دومره وواهه، چې تقریبا بېهوښه

سو. بیاېې نو دماښې چت ته په کشولو پورته کړ اوله هغه ځایه یې لاندې راوغورځاوه . تردې وروسته یې پښې په رسۍ وروتړلې اوترکوټوالي پورې یې په کشولو بوت خودځوند څه پکښې پاته نه و. له چت څخه چې یې راوغورځاوه ، لاژوندی و.

اوسنی امیر دېروسواسي دئ اوغواړي، چې دده شاوخوا دې هر څه پاك اوسوتره وي. نه یوازې کوراوباغچه بلکې ماڼۍ ته دورتلو سرکونه هم باید پاك اوجارو سوي وي . یوه ورځ دی دارگ باغچې ته دکوچنۍ دروازې له لارې تلی اووېې کتل، چې ددروازې شاوخوا مخکه جاروسوې نه وه . هورې معطله سو او د خایونو دجاروکولو مسول تن یې راوغوښت . دهغه شخص پرځای یې مېرمن حاضره سوه اووې ویل چې دمېړه یې سخته تبه وه اودراتلو نه و او داپه ناروغ دومره مصروفه سوه چې پخپله یې دځای جاروکولو ته وخت ونه موند اودغه راز لکه څرنگه چې تاسې مې هم وینئ ،کوچنی مې هم په نس دئ . امیرورته په خواب کې ورېل، چې دی به یې له عذابه خلاص کړي اوامریې وکړ، چې ښځه دې پرگېډه باندې پنځوس لرگیه ووهل سي . دده له امرسره سم یې ښځه پرمخکه باندې پر شاوخملوله اووېې وهله . ښځه سمدلاسه مړه سوه.

امیرمرحوم هغوکسانوته په سزاورکولوکې ډېرسخت زړی و چې دده دمړینې خبربه یې په درواغو ورکړی و . کله چې ۱۹۰۰ کال دکولرا ناروغي خپره سوه . امیرپغمان ته چې دهندوکش په لمن کې پروت دئ ، داستوگنې له پاره کډه سو. امیراودده کورنی له کولرا څخه سخته ډارېدله اوکله چې کولرا جارې وه ، ېمدستې له سیمې څخه ووت. دناروغۍ دختمېدو پروخت دوه تنه له پغمانه کابل ته راغلل اوپه بازارکې یې اوازه خپره کړه، چې امیرپه دغه ناروغي مړسوی دئ .کله چې امیرخوورځې وروسته ښارته راستون سو، دادوه تنه یې ونیول اوحضورته یې وروغوښتل اوورته یې وویل کاشکې ستاسې اوازه رښتیاسوې وای خودپلار ترخوله به هم تېره وای . وروسته یې امروکړ،چې خلك بندپربندپرې کړئ اوتوټې یې په بازارکې دنوروعبرت له پاره وځړوئ . یوبل وخت بیایوچادده دمړینې خبرپه درواغو سره خپورکړ. ده امروکړ چې سړی دې د اسمایي غره ته وخېژول سي اوهورې دې په هغه بـرخه کې ، چې سیند پکښې

لیدل کیږي اوخورا لوړ پاى ته رسيږي ، په يوه بهرل کي واچول سي اولاندي دي لمني ته راورغړول سي . يوه بله ورته پيښه چي په ډېروحشت سره اجرا سوله ، ديوه زاړه ملا وه . هغه ويلي يې وه ، چي اميررښتيني مسلمان نه دئ . پرده هم امرسوى و چي له هماغه غره څخه دي راشيوه سي. کله چي دی دکوتوالي سپايانو له پانه را ارتاوکړ ،جامي يې په يوه تېره ډېره کي بندي سوې اودده دراشيوه کېدومخه يې ونيوله . سپايانو يې بيرته وخېژاوه اودوهم وارېې په برياليتوب سره را ارتاوکړ.

اميردمېکاډوMikado (۱) په شان له ډراماتيك شهرت ګټلو ورروسته تل هڅه کوله ،چي سزاوي له جرم سره متناسبي وي. سره له دې چي کله کله به چا فکر کاوه ، په جرم کي زياته مبالغه سوې ده. دمثال په توګه يو سړي چي له څوبې وزلو ماشومانو څخه يې مړی غلاکړې اوهغوی ته يې هيڅ ورېړې اينبې نه وو ، په بازارکي په يوه قفس کي شوم وساتل سو. خوددې له پاره چي سزايې جرم ته ورته وي ، دورخي به يې دوه درې خله ورته ډوډی اواوبه دومره نږدې اينبوولې چي لاس به يې نه وررسېدل. دې کارته يې ترهغو ادامه ورکړه چي سړی له لوږي مړسو.

په يوه بله پيښه کي يوسړي اوبوې ښځي يوله بل سره زياته مينه درلوده دواړه واده سوي وو اوغوښتل يې يوځای سره وتښتي اوبه راتلونکي کي يې دخوښيو ارزوګاني ترسره سي. هندوستان ته درسېدوپه وخت کي چي غوښتل يې هورې ګډ ژوند وکړي، ونيول سول اوبيرته راستانه سول . اميرددوی دسزا په باب امروکړ څرنګه چي سړی پرښځه باندي ډېرمين و اوغوښتل يې څومره چي ممکنه وي هغومره يې په بشپړه توګه ترلاسه کړي، څکه يې ښځه دايشېدلو اوبو په يوه ستردېګ کي ژوندی واچوله اوښوروايې څني پخه کړه. دغه ښوروا يې په سړي په زوروچښل اووروسته يې دارته وخېژاوه . په دغه راز جزاورکولو کي دامير مراد داو چي مجرم ته نه يوازي په دې دنيا بلکي په هغه دنيا (آخرت ) کي هم جزاورکړي. څکه دقرآن له څرګندوونو سره سم ، سړيخوردجنت له نعمتونو څخه بې برخي دي.

يوبل سړی او ښځه په نامشروع عمل کي سره نيول سوي وه ، داميرلـه حکم

سره سم چي په ظاهره یې دوی ته دژوند ترپایه دیوخای اوسېدلو اجازه ورکړې وه ، داسې ایې غوره سرته وخپژول سول او هورې یې شاپه شا په رسی وتړل اوترهغه وخته یې هورې وساتل چي له شرم اولوږي څخه مړه سول . سپایان یې ورباندي پیره درولي وو . چي څوک یې له جزاڅخه دژغورلو په برخه کي مداخله ونه کړي . لومړی ښځه مړه سوه اوسړي ته یوه بله ورځ هم دژوندي پاته کېدلو اجازه ورکړه سوه اوپه دې ډول یې په سفرکي مرسته ورسره وسوه .

په عادي قضیو کي چي نراوښځه سره ونیول سي ، لکه په دا تېره پېښه کي ، پردواړو حکم کېږي چي ددار خای ته بوتلل سي دارته دآماده کېدو له پاره دسړي په غاړه کي رسی اچول کیږي. دی تر هغوولاړ وي چي ښځه په بوری کي واچوي . دبوری خوله وتړي اوسپایان دبرچووارونه ورباندي پیل کړي . کله چي دښځي چیغاري ودریږي معنایې داده چي مړه سوې ده . وروسته سړی چي دخپلي معشوقې مرگ یې په سترگو کتلی وي ، دارته خپژول کیږي. که دواکمني کورنی خپلوان په دغه شان قضیو کي ونیول سي ، نارینه یې بندي کیږي اوهیڅوک نه پوهیږي چي څه ورباندي وسول . دومره پوهیږي چي بیابه یې څوک ږغ وانه وري .له ښځي څخه یاسترگي ایستل کیږي یایې پزه پرې کیږي اویادې ته ورته نوري جزاگاني ورکول کیږي. ترجزاوروسته ددې خوښه چي مري اوکه بې له علاجه پهطبعي توگه روغیږي. زیاتره مري اوویل کیږي چي که دچا زړه پروسوځي نویې په زهروباندي دوژلو په لاره کي مرسته ورسره وکړي اوښایي دابه یې ډېره مهرباني وي چي ورسره کړې یې وي.

دنارینه له پاره داعامه مساله ده، چي که یې پرماندینې باندي دبې وفاتوب گومان راسي، پزه یې وریږې کوي .کله یې لاپه غاښو خني شکوي چي وتولوته ددې دبې وفاتوب نخښه سي اوخپله ښکلا پکښې بایلي. البته داپه هغه صورت کي چي اشنای (نامشروع یار ) یې معلوم نه سي اوناوړه عمل له پاره یې ثبوتونه هم په منځ کي نه وي.

په هغه رازقضیوکي چي نارینه پرنجونو یاښځوباندي په تېري کولوتورن وو ، امیرپه جزاگانوورکولوکي ډېرسخت چلندکاوه. په یوه پېښه کي درې تورن نارینه ترزني پوري ښخ سول اوترڅوچي مړه کېدل ، همداسي پاته وو. وروسته یې سپي

ورخوشي کړل چي وېې خوري یاځومره چي تري وړلای سي ، یوېې سي. په سپیوباندي دخوړلو سزا دمرګ ترنورو سزاګانو بدتره ده څکه په دې صورت کي جنت ته دتللو ټولي هیلي له منځه ورسره ځي . امیر په ځینو قضیوکي هغه چاته چي دېرښخنوکي اوله خپلو ښځوسره زیات وخت تېرولوته مایل وي، اوپه دې توګه یې سرکاري وظیفه پرخوشي کړې وي ، د «ګناه دمخنیوي په مقصد» کافور ورکول . څکه داسي فکرکېدی ، چي کافوردناریښه وو جنسي څواک کمزوری کوي. په بېلابیلو کارخانوکي ددولتي پیسو دلوټولو دمخنیوي له پاره، فقید امیر هغه شخص چي دصابون ددوکانومسول اوپه غلا باندي تورن سوی و، دصابون ایشېدلي دېګ ته ژوندی وروغورخاوه چي دغلاشوو موادو کمی په پوري کړي .کله کله خوامیردایشېدلو غوړیو دېګ ته هم خلك اچول .دا داسي جزاوه، چي دګناه په نوعیت یې اړه نه درلوده .

دغلاپه جزاکي یوه معموله سزا چي دامیرله خوابه د «دارولو» پرځنګ ورکول کېده ، دلاس پرې کول و . کابل ته زمادلومړي ځل ورتګ په وخت کي (۱۸۸۹) یې ماته داستوګني له پاره دورکشاپونو څنګ ته په یوه باغچه کي خیمې راکړې وې . ددوبي وخت و اویوه ورځ له یوتن کارګر سره له لویې دروازې څخه دوتلو دوخت په تلاښې کي دانسان دلاس په اندازه دځرمني یوه ټوټه ګیرسوه، چي ترکوټ لاندي یې پټه کړې وه . امیر حکم وکړ،چي د نورو د عبرت لپاره دي په کارخانه کي دننه په دار وځړول سي.څو دهغو انګرېزانو په منځګړتوب چي په کارخانه کي یې کارکاوه ، امیرپه سزاکي کمښت راووست اودسړي دلاس پرې کولو امریې وکړ. لاسونه دقصابانو په واسطه پرې کیږي اوکله چي لاس پرې سي معمولاً یې دوینو دبندولو په خاطرپه ایشېدلو تېلو کي ورغوټه کوي . دغه کارګریودوې ورځي وروسته مړسو.

یوه بله معموله سزادخلکو ړندول دي. داسزا عموماً هغوکسانوته ورکوله کیږي، چي له بندیخانې یاله هیواده یې د تښتېدلو هڅه کړې وي . له بندیخانې اوهیواده تښتېدل تقریباً ورته جرمونه دي.

ددغې سزادعملي کولوطریقه داسي ده، چي دسترګو ښینك په نشتر وهل کیږي اووروسته د نایټریک تېزابو څاڅکي پکښې اچول کیږي . ددې له پاره چي

ړندېدل حتمي سي، وروسته کلسیم اوکسایډ ( quicklime) هم پرزیاتیږي.
دغه رازټپ درد باید دزغملو نه وي . په یوه پېښه کې یې پنځلس تنه یوځای دښبرپور په چونۍ کې چې معمولا دغه راز سزاوي پکښې عملي کیږي ، ړانده کړل . په دریمه ورځ دغه خلك په داسي حال کې ولیدل سول چې یوله بله یې په خنځیرتړلي اوپرمخکه باندي یوه لیکه ناست وو . دوی بل ځای ته د تللو قدرت نه درلود، چې طبیعي ضرورت پکښې رفع کړي اوپه نتیجه کې دومره په مرداریو لړل سوي وو، چې بیان یې نسي کېدلای. دري تنه یې مړه سوي وو خوله نورو ژوندیو کسانو سره لا تړلي پاته وو. خیني ژوندي هم بېهوښه پراته وه . په داسي حال کې چې نوروکسانو زګېروی کاوه اوخانونه یې له مخ وشاځخه پرډېرو باندي وهل.

دتېښتي سزاهروخت ړندېدل نه و .دپنځوتنو کافري هلکانو یومثال به بیان کړم . دغه هلکان دهغي ټولۍ غړي وو، چې له کافرستانه دراوستل سویو بندیانو څخه هغه وخت جوړه سوې وه چې دغه سیمه دامیرله خوافتح سوه . دوی هڅه کوله هندوستان ته وتښتي څکه کابل اوپه زورسره یې محمدي(ص ) شریعت خوښ نه و. خو دوی باالفعل نیول سوي اوبېرته راوستل سوي وو. امیردسزاورکولو په توګه پرکافري ټولۍ حکم وکړچې منظم ودرېږي اوهلکان دي دځپلو ملګرو په مخ کي په برچو ووهل سي. دې کاردکافرو په منځ کي ښه پوره اندازه نارضایتي څرګنده کړه اوامیربه غالبا دډېروسختو ضروري اقداماتو فکرکړي وي.

داعدام یوبل شکل چې البته دډېرنادرکارتړې اخیستل کېږي ، دادئ چې ددوو نیالګیو سرونه یوبل ته راغبرګوي اوپه مځکه کي یې تړي . د اعدامېدونکي سړي یوه پښه اویولاس دیوه نیالګي په سر پوري اوبله پښه وبل لاس یې دبل نیالګي په سرپوري وتړي . کله چې داکارسرته ورسېد، هغه رسۍ چې نیالګي په تړل سوي دي، یودم غوځوي اودتړل سوي شخص بدن سره شلیږي(۲ ) داعداملولودغه دري عام روشونه معمول دي : په توپ کي الوزول، په دارول او په برچووهل. وروستی ډول یې زیاتره په بندیخانوکي دشپې له خوا سرته رسیږي . اعدامېدونکي کسان دمحافظینو په واسطه یــــــوګوښه ځای ،

دمثال په توګه دبالاحصار يوې ګوښه برخې ته بېول کېږي اوهورې په برچوړژل کېږي . مړی يې وروسته يوه زاړه ښاه ياځرمه کندي ته غورځول کېږي اوخاوري ورباندې اړول کېږي.

کله چې پرچاباندې په توپ کې دالوزولو امروسو، هغه چاته يې وروايي، چې هره ورځ دتوپ په ويشتلوسره دغرمې وخت اعلانوي . دغه توپ دشيرپور چونی ته نژدې پريوه کوچنی غونډۍ پروت دئ . ( ۳ ) هورې محکوم شخص توپ ته داسې تړي، چې شا يې دتوپ ميل ته برابره وي. دتوپ په ټک سره يې دبدن زياتره برخه سره ټوټې ټوټې کيږي . په توپ کې دالوزولو له سزا څخه مراد دنورخلکو په زړونوکې دېېرې اووحشت ايجادول دي، خوشک نسته چې داعدام ترنوررو ډولونو يې مرګ غوره ځکه دئ چې ناڅاپي اويوه شېبه دئ .هغو کسانو ته، چې حکومت سرمايه غلاياوخوري ، دغه راز سزاورکول کېږي اوامين نظام يادادرو دتاداياتو مشرPaymaster کله کله په دغسې مواقعو کې مرکزي عنصروي. دغه راز دلويولارودغلواوسپاهانو دژوند ورځې دتوپ په واسطه پای ته رسيږي.

ددارله پاره له معمولي زندۍ څخه کاراخيستل کيږي .محکوم شخص دمغزې ماتېدلو له بېرې يې دپاسه راځوړندوي نه، بلکې ديوه څرخ په واسطه دارته خېژوي اوترهغو ځوړند وي، چې دزندۍ له امله مړ سي . له دوه رازه دار څخه کاراخستل کيږي . يويې د T په شکل دئ اوبل جګ دئ . دغه دارهغه کسان ځوړندوي چې غواړي ترداېلي ورځې پورې يې لاځوړند پاته کړي . مړی ددې له پاره پردار باندې پرېږدي چې نورو ته اخطاروي. ددار بل شکل دمېز دڅوکاټ په شان يوڅوکاټ دئ چې دسرلرګي تې ليري کېدلای سي. دڅوکاټ بازوګان په ځمکه کې ښخوي . دمربع پرېڅره ځتخه باندې دلرګيو درې څلور داني ځرخونه (غرغرې ) نصب سوې وي چې دهغو په منځ کې رسی تېرېږي اودشخص بدن ځوړندوي. کله کله پېښيږي چې ځوڼنه بايد په يوه وخت کې اعدام سي اوددې له پاره يې ددار تمبې دومره غتې کړي وي چې دشپاړسو تنو له پاره کافي وي. دهغوکسانو ،چې په دارمحکوم سوي وي، داعدام په وخت کې سترګې نه ورتړي.لاسونه يې پـــــه بدن پورې ترځنګلو لوړ اوپښې يې ترزنګنو

لوړي په رسی تړل سوي وي . کله چي يوځوك خوړند سي، لېځي يې پورته وکښته کيږي اوددې له پاره تلاښ کوي چي له غاړي ځخه دزندی حلقې ليري کړي . داکارترهغودوام مومي، چي شخص بې سده ( بې هوښه ) سي. دايوه ډېره دلخراشه منظره وي چي ځوك ديوچادهغه بې ګټې تلاښ تماشا کوي چي دزندی کېدوددرد دکمولو له پاره يې سرته رسوي. يووخت يوه پنډ افغان چي دارته يې خېژولی و، هڅه وکړه هغه رسی وشلوي، چي پرلاسونو اوغاړه يې تاوسوې وه . ځان يې سره کش کړ بيرته يې خوش کړ، غالبا به يې مراد داو، چي دغاړي په پرې کولوسره دشکنجې زجرپای ته ورسوي . خو دغاړي پرځای رسی وشلېده اودی لاندي راولوېد .شل دقيقې ياځه زيات ددار په بېخ کي بې سده (بېهوښه ) پروت و. بيايې بله رسی له بازاره راوړه، دوباره يې خوړند کړ اواعدام سرته ورسېد. په يوه بله پېښه کي يې يو سړی په دار خوړانداوه اورسی درې واره پرې سوه . هروواربه يې بله نوې رسی له بازاره راوړه . کله چي دريمه رسی هم وشلېده ، هغوکسانو چي نږدې ولاړوو، وويل چي دا دسړي پربېګناهی باندي دخدای له خوايوه اشاره ده اوسړی بايد خوړند نه سي. داعدام مسول افسر ، اميرته دپېښي دځرنګتيا اوخانګړتيايه باب يوايلچي واستاوه اوغوښتنه يې وکړه چي شخص دي وبخښل سي. خوداميرپيغام بيرته راغی، چي سړی بايد لکه ځرنګه چي امرسوی دئ، په دارخوړند سي .دوی ته بله لارپاته نسوه ، بې له دې چي سړی يې دځلورم وارله پاره دارته وخېژاوه . اوترهغوځړېدی، چي مړسو.

دجرمونو په وړاندي بېتهي سزاګاوې ، پرهغو برسېره چي پورته بيان سوي ، دامير دطبيعت په سموالي ياناسموالي اړه لري اوبېلابيل ډولونه لري ..په ځينو حالاتو کي پزې پرې کيږي ، ږيرې يې ورشکول کېږي ، سړی دځوورځو اوشپولپاره ځای پرځای بې له دې چي وښوري ، درول کېږي . په سترګوکي نصوار اچول کيږي اودامير دځپګان اوقهرله احساس سره سم نوري بېلابيلي لاري په کاراچول کيږي . اميرشيرعلي به هرهغه قصاب چي دلږوزن په ورکولو محکوم و، ددوکان ددروازې ځنګ ته ګوش مېخ کاوه . ( په غوږکي به يې مېخ ورټك واهه ).

په یوه پښنه کي دامیرپه وړاندي ناحقه شاهدي ورکول سوي وه اوکشف سوه.
پرهغو جاسوسانو، چي ددغي ناحقه شاهدی اودهغې پرسر دپیسو اخستلو خبرېي راوړی و، حکم وسو چي په ارګ بازارکي دي له لمرختوڅخه ترلمرلوېدو پوري اته ورځي په پښو خوړند سي .خوخلکو اشنایان درلودل اودپیسو قدرت دېر زیات و، ځکه نو دپولیسو سپایانو دوی ته اجازه ورکړه پرځپلو سینو (ټټرونو ) باندي تر هغو پوري پرمخکه دمه وکړي، چي افسر به له سترګو نهامبدی. کله چي به افسر تېرسو، دوی به بیرته پښې کښته کړې . خوله دغوټولو چلونو سره سره بیاهم خلك څوواره بېهوښه سول . ددې سزاعجیبه برخه داوه ، هغه سړی چي ناحقه شاهدي یې غوښتلې اودهغې پرسریې پیسې اخیستي وې ، صرف یولږڅه جریمه سو.
په کابل کي ویل کیږي، چي دامیر په دماغ هیڅوك نه پوهیږي.اودابه دېره جالبه وي، چي څوك په دې دلیل پوه سي ، ولي غټ مجرم ته ترهغوکسانوچي ده جرم ته امرکړي وي، لږسزاورکول کیږي ؟
یوه بله سزاچي څومیاشتي په دربارکي یوه لویه مسخره وه ، داسي وه : یوغلام بچه څوواره له امیرڅخه غوښتي وه، چي ماندینه وروغواړي . په پای کي امیر «هو» ورته وویل . امیرته دامعمولي خبره وه چي له خپل حرم څخه یوه مینځه( وینځه ) یوګران غلام بچه ته واده کړي. ددغه هلك واده په معموله توګه وسو. دواده په شپه دماښی په باغچه کي دزوم ونلوي له پاره یوه لویه خرګاه ( غټه خېمه ) ودرول سوه. ټوله شپه دټوپکو په ډزو اودعوتونو تېره سوه . په پای کي زوم خیمې ته ولاړ چي دلومړي ځل له پاره خپله ناوې مخامخ ووینې (ناوې ترهغوپوري زوم ته نه ښکاره کیږي چي دواده مراسم پای ته رسېدلي نه وي ) په خیمه کي تیاره وه ، خودی ورووړاندي سو. لږشېبه وروسته په ځغاسته اوچیغو راووت اودامیر حضورته یې ورمنډه کړه ، ویل یې چي لویه بدمرغي وړباندي نازله سوې ده ځکه له چاسره چي ده واده کړی دئ . ښځه نه ده بلکي «شیطان» دئ . وروسته څرګنده سوه امیرددې له پاره چي دهلك اصرار ته یې سزا ورکړې وي ، پـه پټه یې بل غلام بچه ته امرکړی و چي جامې واغوندي او د واده په شپه دنجلۍ رول ولوبوي.

## دلسم څپرکي لمنلیکونه

( ۱ ) میکاډو د جاپان دامپراتور لقب و . چي دبهرنیانولخوا ورکړه سوی و . ( م.ع )

( ۲ ) دغه عمل ته یې په محلي ژبه شغه (شقه ) کول ویل. ( م.ع )

( ۳ ) دغه توپ په وروسته وختوکي دده مزنک نوآباد ته مخامخ دکابل سیند پرجنوبي خنډه د چهلستون دسړك پرغاړه دیوې غونډۍ پرسر ایښوول سوی و. ( م.ع )

# یوولسم څپرکی

## په کابل کي داروپایانوژوند

د کابل ژوند۔ کوروته اوباغچې ـ ساتونکي ( گارډ ) او د « غازیانو » لخواخطر۔ ماندینوته ورکول سوي تخصیصې (Allaowances ) ـ نوکران او دوکه بازي

---

زماځخه به تل داپوښتنه کېده ، چي « په کابل کي دي خان یوازي نه گاڼه ؟ » دې پوښتني ته په مثبت ځواب ورکولوسره به مي تل دهغو ستومانوونکو گړیو یاد ذهن ته راغی ، چي تر کارورېسته به مي په یوازیتوب کي تېرول . د کابل دژوندیوازیتوب ترټولوبدترین یوازیتوب دئ اوپرېوچاباندي ددغه رازځوکلن ژوند اغېرحهېره زیانمنه ده . خوله هغې څخه دراپیداسوي دوامداره ناروغی اټکل ترهغو ځوك نسي کولای،چي مدنیت ته بیرته راستون نسوی نه وي . دافغانانو او اروپایانوترمنځ ټولنیزه راکړه ورکړه نسته او په دې لار کي چي ډېر سي ، نو هغه مېلمستیاوي یا کالیزي ته دداسي چالخوا ورغوښتل دي ، چي انگرېزانو ته ښه نظر لري . داپه عمومي توگه یوه داسي پېرزوینه ده ، چي دمجراورکولو انتظار یې کېدلای سي .

په ژمي کي تردوبې یوازیتوب ډېرسخت وي . ورځي لنډې وي او ماښام له څلوروبجو څخه د بیدېدلو تر وخته پوري تمامېده نلري . په تېره بیا چي ژمی پسې اوږدسي . څکه د وخت تېرېدلو لپاره له لوستلو پرته بل هیڅ شی نه وي . دورځي چي څو ساعته به لوستلو بل کارنه وسي ، سړی ډېر ستومانه کېږي . سخته خولاداوي چي دلوستلو لپاره نوی کتاب نه موندل کېږي . زماهغه کارډېر خوښ دئ ، چي دپلان او نقشې کښلو تیاري ته اړتیا لري . دغه تیاري زه دشپې لخواسرته رسوم اوپه هغه باندي وخت ډېر ژر تېرېږي . کله چي د ساتېري او خان مشغولولولپاره بل څه نه وي ، زه خپل دېوالي ساعت راواخلم ، سره ټوټه ټوټه یې کړم ، پاك یې کړم او یا یې له کاره وباسم . بلهکارچي ماشپې ته پرې ایښی وي ، هغه دهغو کاني ډېرو څېړنه ده ، چي امیر ته دهیواد له ټولو برخوڅخه استول سوي وي . نوموړی دا ډېري ماته رالېږي او زه څکه په خوشاله

یم ، چي راته دوخت تېرولویوه وسیله وګرزي .

په کابل کي به څوک خانته پخپله ساتېرى برابروي . داسي څوک لږ وي ، چي خانته یې ساتېرى نه وي برابرکړى . که نورڅه نه وي ، تراژیکي ټوکي جوړوي . په جمعو اورخصتیوکي ورځ په ښکار سره تېرېدلاى سي . ددوبي په زیاترو میاشتو کي ترښاردباندي کروندو کي کرکان ( مېزان ) او شنې کوترې موندل کېږي او په ژمي کي په چمنانو کي ښه پرېمانه هېلۍ او تاروګان پیداکېدلاى سي . چمنان ( چمنونه ) په کروندو کي دخمکو هواري ټوټې دي ، چي تر یوې اندازې په اوبو پټې وي او د مرغانودښکارلپاره واښه او لوخي پکښې پرېمانه وي . دمرغانوښکار زیات کېږي ، ځکه یې مرغان ډېر تورندوکي وي. څرنګه چي ویشتل یې سخت دي ، له دې امله یې یوښه سپورټ منځ ته راوړى دئ .

فقید فلیشر (Fleischer) چي په کابل کي زماداستوګنې په وروستیو دریو کلو.کي اوسېدى ، زیاتره جمعې زماسره ملګرى کېدلی او موږبه په چمنانو کي د ورځي تېرولوتمرین کاوه . ( نوموړى د ۱۹۰۴ کال په نومبر کي هندوستان ته دتلوپه لاره کي دخپل افغان بدرګه افسرلخوا ووژل سو ) . موږبه اته یا لس تنه سپاهیان دساتونکوپه توګه ، چي تل ضروري دي ، له ځان سره ملګري کول داخلك په ښکار کي زموږډېرپه درد خوړل . موږبه ډغرمې ډوډۍ او دغه رازچایجوشي او دچایو نورضروري مواد له ځان سره اخیستل ، چي په ... توګه په ښکار کي ښه مېلمه په جوړه کېدلاى سو . له ښکارڅخه به تښه ... ته راستنېدلو . داسپورټ په ورځني ژوندکي یوه ډېره ښه تنوع وه . په پسرلي کي چي دهېلیو اوتاروګانو ښکارختم سو او مېزان به هم نه راتلل ، موږ به د بوړیو توپکو (Rifles) دتمرین لپاره ځغلندهدفونه جوړول . داهدفونه (نښانونه ) به دژوندیو هوسیو یا پیشي پړانګ په اندازه وو ، چي پرکاغذو باندي به په بدرنګه توګه رسم سوي اوپه یوه سپکه ګاډۍ کي به پریوه چوکاټ باندي مېخ سوي وو . یوه سرې به دغه ګاډۍ په یوه اوږده رسۍ باندي په یوه لنډه فاصله کي په ډېره چټکۍ سره کشوله . دګاډۍ مخي ته به موږ دنازکز بوټو او ونویوه کتاره جوړه کړې وه ، چي هدف به صرف په ټاکلو وقفو کي معلومېدى . دا کارپه اتیا ـ سل متری کي دګرندي ښکارله پاره یوښه تمرین و . د بوړي توپك

له ښکارځخه چي به ستړي سولو ، بيابه موږه رود کي دسيمه ييز گردي تور په واسطه ماهيان ( کبان ) نيول . کابل ته دځرمه رودونو کبان لږ او واړه دي او که څوك غواړي دېر کبان ونيسي ، بايد څوميله بر ولاړ سي . موږ تر دريو انچو غټ ماهی ډېر نادرېيولی . زياتره به چي په تورکي ونيول سول ، واړه به وو . خوچي پاخه به موکړل ، ډېرخوندور اوتك سپين به ښکاريدل . ماهی چي هرڅومره غټ و ، هغومره به بې مزې و .

په کابل کي زماداستوگني په لومړيو وختوکي به ماپه شاوخواسيمه کي د آس په سپارلی اورده مزلونه کول .عمومابه يوازي وم.داهغه شپې وې ، چي اميرعبدالرحمن ښه په زورکي و اودابه خوشي حماقت وای، چي چادده يوه «پرنگي»ته په بده کتلي وای.په هرصورت ماته داسي ځرگنده سوه ، چي زه دخپل کار په معمولي لارکي ډېر سپور تللی وم، خکه يې خوا راووهلږ . بيا مي نوبايسکل پيداکړ اوپه شاوخواسيمه کي به مي خغلاوه . داکار هم ورو ورو راته بېخونده کېده ،خکه په لارکي به دکتلو وړ نوی شی اوپه مزله کي به هم کوم خاص هدف نه و . ورځنی کارراته تر تمرين و سپورټ کولو زيات کافي و، چي دروغتيالـه مخـي مـي روغ وسـاتـي . تـردي وروسـتـه بـه کـه پـه راخـرمـو کروندوکېدمزانو ښکار ميسر کېدلی ، نو زيات مازيگرونه به مي په باغچه کي تېرول . خکه راته معلومه نه وه ، چي ترلمرلوېدو دوه ساعته وړاندي به يوزيـات شـمـېر شـنې کـوتـري دوې دوې ، درې درې دباغچې دپاسه په هوا تېرېدلې اوپه داسي حال کي چي توله ورخ به ښې مړې سوي وې ، کروندو او غرونوته به د بيديدلو ځايونو ته ستنبدلې . دې کار زمالپاره ډېرښه او اسانه ساتېرى برابراوه. مابه زياتره مازيگرونه ، چي کوم بل تردې ښه کاربه مي نه درلود ، په باغچه کي منتظرناست وم،يوه يابله کوتره به په روڼ سره راتله . دا يوډېرښه تمرين و ،خکه شنه کوتره په الوتلو کي ډېره تېزه (گړندی ) وي، مخ پرتندي دسري دسردپاسه تېرېږي .موږ دټېنس ميدان هم جوړکړ اوپه وروستيو دوو کلونوکي به مودژمي ترراتلو پوري زياتره دورځي لخواد ټېنس لوبه کوله .په کابل کي څوك دډسمبرترپايه پوري ټېنس کولای سي . کله چي واوري اورېدل پيل سي ، لوبه هم ترراتلونکي اپريل پوري نوره بنده سي .

دغه کور چي زه پکښې اوسېدلم ، شپږخوني لاندي اوشپږباندي درلودې .
ټولي کړکی منځني غولي ته پرانیستي وې .شاوخوا ته یې پخلنځی ، دنوکرانو
کوټې ، غوجلونه ، حمام او نور واقع وو . مادکوربهرني لوري ته هم کړکی
جوړي کړي وې ، چي په دې ډول مي نه یوازي دباغچی منظره لیدلای سوای ،
بلکي دشاخوا کوټو هم ورسره په پوره اندازه روښنا وموندله او داوسېدلو وړ
وګرځېدې . داکور اساسا حرمسرای و ، چي دامیرشیرعلي څو مېرمني پکښې
اوسېدلې . په هغو ودانیوکي چي ښځمني اوسي ، رواج داسي دئ ،چي مخ یې
د کور دننه غولي ته وي . له همدې امله یې دکورو پر بامو هم جګ جګ
دېوالونه راتاوسوي وي ، چي ښځي وکولای سي دمازیګر له خوا ببله دې چي
نورنارینه یې ووینې ، له آزادي هواڅخه مستفیدي سي .
موږټولوکورته څرمه باغچې درلودې . زمادکورباغچه تر ټولو لویه وه .
کورمي هم غټ و او ده افغانانوته نژدې دښارپه یوه بهرنی برخه کي ، چي
مځکي یې پرېمانه دي ، پروت دئ . ماله باغچې څخه ښه پوره ګټه اخیستله او
هر رازترکاری ، پټاټې ، کرم ، ګلپي ، بادرنګ ، ختکي ، ګازري ، سابه ،
رومیان ، نخود ، لوبیا او نوي ترکاری پکښې کرلې اوښه په موج کي وې .
مادغه رازمځکني توت هم کرلي وو، چي ښه پوره حاصل یې ورکړ. خودباغچې
له ونو څخه مي ګویا هیڅ میوه نه اخیستله. دکوټوالی اووتنوسپایانوبه چي
دکورپه بهرنی دروازه کي یې پیره کوله ، زیاتره میوه له پخېدلو سره سم وړله .
داکاربه یې دشپې لخواکاوه یابه چي زه پرکورنه وم او دوی به پر ګیرولای نه
سول. له دې سره مي نه غوښتل چي دغلاسوي مېوې پرسرخان ته تکلیف ورکړم
.یووخت مي دیوې وني په ګڼو ښاخوکي یوه مڼه ولیدله،چي پاته سوې وه .
سپایانوته مي وویل دامڼه زماونډه ده خوزه غواړم څو ورځي یې لاپه ونه کي
پرېږدم ، چي ښه پخه سي . له دوی څخه مي وغوښتل،چي پام پرکوي او څوک
لاس ورنه وړي. دوی وویل « بچشم » (پرسترګو ).خودابله ورځ بیامڼه نه وه
اوټول یې پرشکولو ناګاره وو . په داسي حال کي چي له دوی پرته بل څوک
باغچې ته راتلای نسول . داخبره مي خکه یاده کړه چي دکوټوالی سپایان ، چي
کوم شي ته یې لاس ورسېږي ، صرفه نه پرکوي . خکه نـــود غله د نه کشفېدلو

امکانات منځ ته راځي. یوبل وخت یې زما د آس کیزې ( ملونه ) غلا کړل . څرنګه چې داکارجدي و او ماهم دغه یوه دانه درلوده نوځکه مې نو پیره داران او دهغوی حوالدار راوغوښت او دغلاموضوع مې ورته څرګنده کړه . ورته ومې ویل زه ترسهارپوري لاګورم، که ترهغه وخته پیدانه سوه نوبایدامیرته خبرورکړم . په سهارکې یوه سپاهي هغه پیداکړه،چې دباغچې په ګڼو وابنوکي غورځول سوې وه اوماته یې دثبوت لپاره هماغه ځای هم راوښود .ماورته وویل،چې زماټینګ ګومان دئ دکورپه شاوخواکي کوم شیطان یاپیریان سته،چې زما دشیانو د غلا کولوعادت لري . دادنبکمرغی ځای دئ،چې مادی وپېژاند .کنه فکربه مې کاوه ،چې سپایان داشیان غلاکوي او «بدنامي» به دوی ته وراوښتله . دوی ماته په اریانی سره کتل،چې آیا زه دملنډو په توګه وایم ، که مې رشتیا مقصد همدا دئ . ډېره موده بیاله کوره بل شی غلا نه سو .

دکوټولی پیره دارانوماته دغلادعادت له امله ډېري ستونزي پېښي کړې . دوی چاته داموقع نه ورکوله،چې لاس په لاس یې پرغلاګیرکړي . کله چې به مې هڅه کوله پرغلایې ګیرکړم . دوی به زماپرپوه یابل نوکرتاوانول . ټولوبه شاهدی ورکړې . یوه به وېل مانوکرولید ، چې غلایې کوله.بل به یوڅوك راووست،چې غلاسوي شیان ورباندي پلورل سوي وو . اوداسي نوري شاهدی به ورکول سوې . له هغه څخه به یوه لویه قضیه جوړه سوه . زه پوهېدم چې که نوکرانوته دغلازمینه برابره سي ، کوي یې.خوماداسي انتظام ورته برابرکړی و چې هرسړی دخپلوشیانومسؤل و . هرڅه که به ورکېدل بایدده یې غم خوړلی وای . ځکه مې نسوای منلای ،چې یونوکردي پخپله یوشی غلا کړي او ودې پلوري . ځکه په دې صورت کې یې بایدپلورل سوي شي دوه چنده بیه تادیه کړې وای . په دغه وخت کې چې دغلاوو دبندولوپه هڅه کې وم اوکله کله به پېښېدلې، دسپایانوپیو ډېره بده ډله پرپیره ولاړه وه اوکوټوال زماپه هڅو سملاسي خبرېدلی . ځکه یې زمادنوکرانوڅخه یوتن دعمومي باغچې له چای پلورونکي څخه د دووپیالوغلاکولوپه تور جبل ته اچولی و . دکوټوالی یوسپاهي چې پرماپیره و، شاهدي ورکړه ،چې نوموړی نوکرېې په بازارکې پردوکانداراباندي د هماغو پیالود پلورلوپه حال کې لیدلی و. دوکاندار او پیالې

دواړه يې دشاهدپه توګه حاضرکړل . قضيه اميرته وړاندې سوه . پرنوکربانديې دبندي کېدلو حکم وسو اواميرماته وليکل،چې دنوکرانوپه استخداملوکې احتياط وکړم . خکه يوخوکلچي غل وي يو وخت قاتل کېدلای هم سي.ده ته داډېره خطرناکه ده چې زماپرشاوخوادې دغه رازکسان واقع وي.په دې ډول کوتوال غوښتل داميرذهن زمادنوکرانوپه نسبت خراب کړي اودده دسپيانو دغلا په برخه کي زما شکايت خکه نه اورېدل کېدی،چې دوی ټولوبه زماديوه نوکر پر متهملو باندې قسمونه خوړل. دچايودپيالودغلاپه بابزه پوهېدم،چې نوکربېګناه دی .خکه تردغې ټاکلې غلاخوساعته مخکي لادوی دواړه زماسره وو. له هغه وروسته يې ټوله شپه زماسره دکتابودالماري په جوړولوکې مرسته کوله. بالاخره مانوکرله جېله راخلاص کړخونوموړی دسپايانوددښمنی له بېرې بيرته زما نوکری ته رانغی.په هرصورت دوی خپل دغچ اخيستني دود ته دوام ورکړ. هغه داچې تورن سړی يې پسې پرې نښود اوډېره موده وروسته يې بيرته جېل ته واچاوه اوهورې دنورو کسانوپه شان تری تم سو .

دحکومتخدمتګارو اروپايانوته دسپايانوورکول سوی ګارډدعزت او درناوی ګارډبلل کېږي . دوی بايد داروپايانودټولوکارونوربوټ هم ورکړي. داچې دوی څه کوي ، چيرته خي ، څوك ددوی کور يانوکرانو ته ورځي او ددوی اړوندکسان څوك دي ؟ اساسا داټول ددې لپاره کېږي ، چې څرګنده سي ښايي دی ( اروپايي شخص ــ م.هـ ) مخبروي اودهندحکومت ته رپوټونه لېږي . خودغه راز بياامیرته داهم څرګندوي ،چې نوموړی اروپايي څه راز شخص دئ؟ ګارډ له هغو بريدونو څخه داروپايانودژغورلو لپاره ضروري دئ ، چې د متعصبينوياغازيانوله خواکېږي .دوی په همدې نامه ( غازيان ) بلل کېږي او شاوخواپرېمانه دي . ددوی لخواخطر اوس دفقيدامیردواکمنی تر وخت زيات دئ . دامتعصبين(Fanatics ) په دې کي ری نه وهي ، چې دپرنګي دوژلوپه صورت کي به دوی پخپله يوه ياخو شپې وروسته ووژل سي.خکه دوی تردغه راز وژل کېدلو وروسته جنت ته پرتلو ، پر حورو، دشيدوپرشيندونو او نورثوابونوکلك باور لري . پرماباندې يوه ورځ ماپښين په ورکشاپ کي دغه رازبريد وسو. زه د پښو پرګوتو ناست وم.بنايانو ته مې ، چې ديوې کرې (دابس ) تاداوېې ايښاوه ،

لاربنوونه کوله . غازي زماشاته راغی، په دواړولاسو کې يې دنهه پونډيز توپ تش اوسپنيز کارتوس و اوله ډېري نژدې فاصلې څخه يې يوه دانه پخپل ټول زور څما پرخوا ارتاو کړه . ده زماسرپه نخښه کړی و .څولـه ښه مرغه دکارتوس د راغورځولو په شېبه کې زه ولاړ سوم اودسرپرځای مې کارتوس داوږوپه منځ کې ولګېد. دکارتوس يوې څنډې مې دنيم انچ په اندازه شمزۍ راوتوړله . دګوزارله امله زه يوه شېبه بېخي بېواکه سوم خوزما سپاهي . چې په دغه ورځ يوازې راسره و،دمخه تردې چې غازي ددوهم کارتوس واروکړي ، زنياوه . لاسونه يې تړشا ور واړول اوبېرمخکه يې راغوځارکړ.کارګان دمعجزې په شکل پر راغونډسول . غازي يې دومره سخت په لغتو وواهه چې ډېر ژر بېهوښه شانته سو. وروسته مې دورکشاپونودګارډ دقطعې کپتان ته حال ورکړ اوسړی مې په پيره دارخانه کې واچاوه،بندي مې کړ اودامیرحکم ته معطله سوم . ده ته يې داسې سزا ورکړه،چې دلاسو په منځ کې د دوولسوانچوپه اندازه يولرګی ورکړ،په څنځيريې وتاړه اوشپېږمياشتې همداسې پاته و .پردغه سزاسربېره ورته دعمري بندجزاهم ورکړه سوه . په مسلمانانو کې دپرنګي وژل ډېرغټ جرم نه دئ او دسړي دوستانو ډېرژرپردې بريالي سول ، چې دبندموده يې يوکال ياترهغه لږې مودې ته راټيټه کړي . خوماله خپل نفوذ څخه کارواخيست اودذوی هڅې مې ناکامه کړې . ترحملې څو ورځې وروسته مې ډېر حرکت نسوکولای او دفلج کېدلو بېره موجوده وه . خکه شمزۍ مې لږڅه ټپي سوې وه مېرمن ډالي Mrs.Daly زماعلاج په زيات دقت او مهارت سره وکړاو زه ډېر ژرعادي حالت ته را وګرزېدم. اميردډېري خواخوږۍ په څرګندولوسره خپل شخصي حکيم ډاکټر )راولېږه چې زما زړه امتحان کړي . نوموړۍ درې ورځې راغی،چې وګوري ناروغي مې څومره ښه سوې ده؟ وروسته بيرته له امير سره په پغمان کې يوځای سو .اميردکولراناروغی دخپرېدوله امله چې زمادټپيکېدوپه شپوکې يې شيوع موندلې ووخپل درباريغمان ته لېږدولی و . نوربريدونه هم راباندې وسول خوهيڅ يو يې ددغه واربه شان نه و .داخل بيخي ورياخني بچ سوم .داواقعېپه کابل کې زماداستوګنې په وروستيودريوکلونوکې پېښې سوې.په دغه وخت کې فقيدامير ډېر بې سبکه سوی او اوسنی اميرلاپخپل هيوادکې د تقدس درجې ته

رسېدلی نه و .

یوه بله واقعه چي دکابلي بې عقلي اوحسادت ترې ځرګندېږي ګ په باروت خانه کي پېښه سوه . دغه ځای ته زه دامیرله هدایت سره سم تللی وم ، چي کارونه یې سمبال کړم . امیروېل،چي په کابل کي جوړسوي باروت تربهرنیو باروتو دتوپونو میلې ډېري چټلوي.دباروت خانې مشردشاهي کورنی د زیات شمېر غړو له ډلي څخه و. دده پر سرباندي زما مقررېدلو دی په خښم کړی و . له دې امله یې دباروت ګډولو دکارخانې په باروتوکي پټهاکی ایښي وې او زمادورتګ په وخت کي یې خلاصه کړې وه . دباروت ګډولو په وخت کي تل دچاودني امکان سته او له دې امله دی اوملګري یې دباندي ووتل. زه یې په شاپ کي یوازې پرېښولم . ماته حالات سم ښکاره نسول . دباندي راووتم او دکارخانې درولو امر مي ورکړ . ورروسته چي ماته دپلټني اجازه راکړه سوه ، په دې پوه سوم چي خبره څه وه؟ مقام اتو ته مي په دې باب هیڅ ونه وېل اوپه رپوټ کي وښوول چي دباروتوانداز داسي تنظیم سوې ده ، چي دمسولوکسانولپاره یې دعاید یوه منبع جوړه کړې ده . زه پوهېدم چي همداخبره دټولو مقصدولپاره کافي وه .

اروپایانوته داحق سته چي کابل ته خپلي مېرمني ورسره بوزي او مېرمنوته یې دامیرلخوادژوندکولو سخاوتمندانه اسانتیاوي برابري سوي دي . خوکابل دیوې ښځي لپاره دژوندځای نه دئ . هلته دساتېري وسایل نسته اوددې لپاره په عمل کي ګویا هیڅ ټولنه نسته . یوڅومحمدودي ښځي چي له یوې میاشتي تربلې پوري بې له خپلو مېړو څخه بل څوك نه ویني ، آیاپه خوښۍ سره ژوندکولای سي؟نتیجه داده ، چي ښځي یوازېتوب ته ورټېل وهل کېږي اوداکاریې روغتیایي حالت ورخرابوي اوژرېې ناروغي ځرګندېږي. دماشومانولپاره آب وهوادېره ښه ده او هغوی ښه وده پکښې کوي . افغانان له ماشومانوسره زیاته مینه لري . دوی په دې عقیده دي ، چي ماشومان له هرنژاده چي وي ، دبلوغ سن ته تررسېدلو وړاندي ټول مسلمانان دي . اروپایي ماشومان چي هرځای خي ، په ښه سترګه ورته کتل کېږي . کله چي په کوڅو او عمومي باغچو کي د خپل ورځني چکرلپاره وزي ، یوه لویه ډله یې تعقیبوي او

تحسینوي یې . ناوکیاني ( نانځکي ) ورکول کېږي او هره غوښتنه یې دقانون په شان ترسره کېږي . ځکه نوکله چي یې له محافظینوڅخه بیرته خپلو کورونو او مور و پلارته بیایي ، دوی ډېر خواشیني او معمولاپه چیغو ژاړي . په زور وجبر سره یې له ساتیري څخه راوستل نه خوښېږي.

په کابل کي داروپایي ښځونوکړي ښه نه ده .ځکه یوخوډېرزیات مراقبت غواړي اوبل یې دمعشوقې په توګه له ملګرتوب پرته دکارکولو زمینه هم نسته . محلي خدمتګاراني او نوري ښځي چي له دوی سره په تماس کي وي ، داشنایی او ملګرتیاچلندورسره کوي او مسولیتونه یې ورلېږوي ، چي داددوی په کریډیټ کي نه راځي. په کابل کي زماداستوګني په لومړي پړاوکي چي کومي انګرېزی مېرمنې راوستل سوي وې، زیاتره یې په لږیاډېرخپګان سره بیرته ولېږلي سوې.جرمنی نرس چي د Mrs. Flaisher لخوا راغوښتل سوې وه ؤ ډېر ژر هغه وظیفه خوشي کړه ، چي داورته استخدام سوې وه او داوسني امیر حرم ته ولاړه .خپل خان یې دامیردګراني ماندینې په واك کي ورکړ. ورته یې وویل ، غواړي مسلمانه سي.کله چي مسترفلیشرپه هغه ناوخته دامیرمانی ته ددې لپاره ورغی ، چي ښځه که دیوې ورځي لپاره لاهم وي ، دستونزي دلیزي کېدو تروخته بیرته کورته بوزي . دامیر لخواورته وویل سوه ، چي دی نومونړي ښځه دکور ستنېدلو ته مجبوروولای نسي . هروخت چي یې خپل زړه وغواړي ، ستنېدلای سي . خوښځي له بیرته ستنېدوڅخه انکار وکړ . په نتیجه کي مېرمن ډالي ته خان ډېر غټ ښکارېده ځکه مېرمن فلیشر او ماشوم یې هماغه شپه اودابله ورځ بې له نرسي تېره کړه . دغي جرمنی نرسي په پای کي مېړه وکړ، چي ګویا دایې ددین اړولو اصلي علت و . که څه هم په لومړي سرکي داکارپوڅه مشکل ښکاره سو، ځکه کله چي امیرخپل نوکران راوغوښتل او پوښتنه یې ځني وکړه چي څوك غواړي له دې سره واده وکړي؟ له بده مرغه کله چي یې ددې مخ ته وکتل،هیڅ کوم داوطلب حاضرنسو. دافغانانودواده کولو درواج دغه یوه ګټه مونږ ولیده . امیرپه پای کي هغه یوه کافري افسر( ۱ ) ته وروبخښل .دافسرتنخواه یې ورزیاته کړه اویوکورییې داستوګني لپاره ورکړ.

په کابل کي کلیساوي اوپادریان نسته.ځکه نـــومېرمن فلیشرخپل ماشوم

دخپل مېړه په لاس عيسايي کړ ( ۲ ) زه او مېرمن ډالي دسپانسرانوپه توګه ورته ولاړوو او اميرپخ يوه فرمان کي ماشوم ته نوم ورکړ. دپاچاهرليکل سوي امر ته فرمان Firman ويل کېږي .

کوموانګرېزانوچي پخوايې په کابل کي ژوندکاوه، پخپل هيوادکي دخپل ټولنيزموقف له بابته متاسف نه وو. يوې ښځي، چي ديوه انګرېزي مامور مانديته وه، په دې خبره چي پلارېې وزير و او سيمه بيمېز ترجمان بياداخبره د «صدراعظم دلور »په توګه ژباړلې وه، سمدلاسه دربارته اجازه وموندله اونورو ښځو ددې لپاره چي دخپل شخصيت دټيټېدلومخه ونيسي ، خپل خانونه هماغه موقفو ته لوړول . په نتيجه کي دايوه منسجمه ډله سوه ، چي کله کله به يې دملکې سلطانې ددربارملاتړ هم کاټه .

دکابل نوکران دکورله عمومي کارونوپرته دبلي هيڅ ښې نه دي . په انګرېزي اشپزي او دميز اوډلو په چل خو کورټ نه پوهېږي . ماله خان سره يوهندوستاني اشپزاوخدمتګار بوت . داوبو راوړلو، جاروکښي ، دشيانودپاکولو او داسانودمراقبت له پاره مي يوهزاره استخدام کړ. دغه خلك له ځومياشتونوکري وروسته خپل کار زده کولای سي . خودوی بيا کله چي په کارپوه سي اوپرکار باندي دګومارلو ور وګرزي، هرومرويې دومره پيسې سپمولي وي ، چي خپل کوروکلي ته ددوی دستنبدلولپاره کافي وي . دی هوري ديوه ړوکي بزګرپه توګه کار پيل کړي . ځينو هزاره ګانو، چي کله کله به يې زماله اشپزسره همکاري کوله،ډېر ژرديوشمېرانګرېزي کتغونو پخول زده کړل او ښه به يې پخول . که دوی زياته موده په کابل کي پاته کېدلای،بې له شکه به ښه ماهراشپزان ځني جوړېدلای.هزاره ګان کلك خلك هم دي اودګارډله سپايانوسره کله جګړې کوي . ددغوجګړوپه نتيجه کي دښمني اوبدنيتي ښه پوره ډېري سوې او زمايوزيات شمېر نوکران ورك سول . زه ورروسته پوه سوم ، چي ماته يې مخبري کوله او اطلاعات يې راته راوړل . په بنديخانه کي بيا په يو شکل دشکلونو ترور سوي او له منځه وړل سوي وو . په جېل کي دا راز کارونه عام دي .

يوهندوستاني نوکر، چي زماسره دکابل -- کندهارپه سفرکي ملګری و ، ځومياشتي وروسته په شرابو روږد او دايم الخمر سو. تل به يې هغه اومه الکول

چنبل ، چي دحکومت په شاپونو کي تصفیه کېدل اووروسته بیاپه بېلابېلو لاسي صنایعوکي کارخني اخیستل کېدی . دغه الکول په بازارکي پرهندوانوباندي خرڅېدل. ماده ته زیاته موده وکتل . کله چي پوه سوم ، کار ورځ په ورځ ورانېږي اونه یوازي دکورکارونه په سمه توګه سرته نه رسیږي ، بلکي یوه زیاته اندازه غلاوي هم کېږي، نومي په هندوستان کي خپل یو دوست ته لیك وکښ . نوموړي بل سړي ددغه پرځای راولېږه . ما دده یوه اندازه پیسې ددې لپاره ور ساتلي وې ، چي په شرابو او ښځو یې ضایع نه کړي . دی ددغو کارونو ډېرشوقي و . دغه رازمي دلویې دروازې سپایانو ته امرکړی و ، چي دشپې لخوایې پرې نږدي دنوروهندوستانیانوکورونوته ولاړ سي، ځکه هوري قطعه بازي او شرابخوري کېدلې اوبدي ښځي پکښې ساتل کېدلې . دې ټولو اقداماتو چي دسړي دناوړوکارونوپه بندولوکي مرسته ونه کړه او بل نوکر هم راورسېد ، نومي هندوستان ته دده دستنېدلولپاره دپاسپورټ سربښته وکړه اوده ته مي وویل، چي خان چمتوکړي او په کوم کاروان کي ، چي زړه یې غواړي سفر وکړي . ده ته مي وویل ، چي ترتنګ یوه ورځ وړاندي راسره وګوري،ځکه غوښتل مي سپمول سوي پیسې یې بیرته ورکړم . په همدې وخت کي دی ولاړ اوله خپلوملګرو سره یې استوګنه غوره کړه . دوې درې اونۍ تیري سوې اویومابښام د خدای پاماني لپاره راغی ، راته وېویل ، چي سباسهرهندوستان ته روانېږي . مخه ښه مي ورسره وکړه اودلاري اجازه اوپیسې مې ورکړې او دی ولاړ . لنډه موده وروسته خبرسوم، چي دی هندوستان ته نه دی تللی ، پیسې یې له یوې بداخلاقي کونډي سره په واده کولو لګولي دي او زماله پخواني دښمن ، کوټوال سره هره ورځ ګوري .کوټوال هغه څوك و، چي غوښتل یې ددغه هندوستاني په واسطه له ماسره دامیر په مخ کي روغه جوړه وکړي. ده کوټوال ته زمادغچ اخیستلو په خاطر زیات دروغ ویلي وو .خوځرنګه چي هیڅ یوه یې ثبوت نه درلود ،ځکه نوامیر غوږ نه پر ونیو . په پای کي کوټوال نوموړی شخص په جېل کي واچاوه اوزماپرخلاف قضیه کي دده دلاس لرلو په باب دهندوستاني داقراردمخیوي لپاره یې همداجېل ډېره ښه وسیله ګڼله . څو اونۍ وروسته یې دسړي سر وربرې کړ او تن یې هیسته وغورځاوه . زه څــــو

ځومیاشتي په دې خبره هیڅ خبرنه وم خو وروسته یوچادکوټوالمدسپاهي له خولې راته ټول جزییات وویل. داچي ځرنګه دغه سپاهي یوه شپه له نورو خو تنوسپاپانو سره ګومارل سوی و، دنومړوي هندوستاني سر ورپرې کړي . داچي ځرنګه یې له تنه کالي وکاږي او ځرنګه یې وروسته په یوه کنده کي وغورځوي اوخاوري پر واړوي . ده وویل هندوستاني چي کله پوه سو، مورو یې وژلو ته بیایو، چیغي یې اسمان ته رسېدلې . ماته دده دارن حالت رامعلوم و ،ځکه مي زړه ته داخبره ولوېده،چي ده به ځومره چیغي وهلي وي .

کوم هندوستاني نوکران چي ماپه کابل کي درلودل ، ټولو یې لېرياډېره غلاکوله اوعموما به یې هغه وخت کوله، چي نوکري به یې پای ته ورسېده یابه زه مجبور سوم له کاره یې وباسم اوپرځای یې بل یو ودروم. زه دکورچارو ته له شپې پرته بل وخت فارغه نه وم اوځرګنده وه ، چي ستومانه به هم وم . دغه راز کارونه دشپې څه ، چي دورخي لاهم سخت وي . ماله مجبوریته د نوکرانوهرراز بیان مانه. داچي دځارویو او آس لپاره ځومره خوراکي مواد پېرودل سوي او مصرف سوي دي ، بې له دې چي پوه سم آیاداټول موادځارویو ته رسېدلي دي که نه؟ خوپه زړه کي مې پوره باور و ، چي وررسېدلي نه دي . نوکرانوزماله دغه وضعیته ترنورو ښه ګټه اخیستله . دنوکرانو وهلو ټکولو ښه نتیجه نه ورکوله اوپرځنګ یې په هغوی کي دغچ اخیستني یوراز روحیه رازېږوله،چي اغېزه یې په ځینو کوچنیوشیانوکي ځرګندېدله .داچي دکور وظایف به یې هېروله خوداسي به یې ښوولمه ، چي دصاحب دخوشالولو لپاره هرڅه کوي . دغه رازجزاګاني که څه هم ورې به وې خودوی به پرځان دېرولې . په دغه شان غچ اخیستنو کي محلي نوکران اول لمبردي ( ۳ ). کله چي په وظیفه کي وړوکي غفلت ورپه ګوته سي ، خوراډېري توبې باسي . خو نوکر و بادار دواړه دواړه پوهېږي ، چي داخوشي ټکي دي او مخکي سنجول سوي کینې ترې ثابتېږي . نوکرپه خواشینی سره شاته کېږي او کله چي کافي اندازه لیري سو ، په داډه زړه ومسي . په داسي حال کي ، چي بادار یې ولاړ وي او له دې بابته ځان ته په قار وي ، چي ولي یې دخپل وقار له بایللو پرته نوکرته دسرزنش اراده ونه درلوده . هغوی ، چي محلي خلك نه پېژني او داسي ښکاري ، چي په ټولـــــو

ختيځو هيوادو کي به همداسي وي ، ښايي د دوباره انتقام اخيستلو په لټه کي سي . خو ښه داده مخکي له دې ، چي موضوعات دغي اندازې ته ورسيږي ، نوکر بايد بدل سي او نوی سړی وموندل سي . د نوکر بدلول به بيا يوبل تاوان لري او هرڅا چي زيات نوکران بدلول ، ډېر ژر پوه سوي دي ، چي دښه سړي پيداکول ورته سخته ده اوپه سيمه-ييزونوکرانو کي هر راز خلك سته . په ختيځ کي دانګرېزانوعمومي تجربه داسي ښکاري ، له ځينو کسانوپرته چي له خپلو نوکرانوسره نورو بده ګوزاره کوي، زياتره يې د ښه چلند خلك دي. عمومي نظرغالبادهغو کسانوپه باب چي سيمه ييز خلك ښه ورته معلوم نه وي ، داسي دئ، چي بادار يې له بې وزلو نوکرانو سره ډېر ناوړه او له انصافه ليري چلند کوي .

که څوك غواړي له بازاره دي ارزانه شی رانيسي ، هندوستانی دي نه پسې ليږي . دوکاندار په هندوستاني پوهيږي ، چي دا دکوم انګرېز نوکر دئ، ځکه نوهرشی تر نورو دوه چنده زيات ور بيه کوي . هندوستانی او محلي سړی دواړه چي سودا وکړي يوځه هرومرو پرزياتوي . خودمحلي سړي کمېشن ترهندوستاني لږ وي اوداېي لابله ګټه ده ، چي له دوکاندار څخه ترهندوستاني په لږ بيه سودا اخلي. مايووخت بازارته دسودا لپاره زما يوغريب هزاره نوکر ولېږه . دغه بيچاره سړي زما څخه هومره پيسې واخيستلې، څومره چي دوکاندار ترې اخيستي وې . دوکانداردافکرکاوه،چي يوغريب هزاره دخپل خان لپاره سودا ځني اخلي . ددغي بيې له مخې ما دنور نوکرانو سوداپنجولای شول اود کمېشن د ډېربدلو مخه مي په نيوله .دغه «دستوري»يا دسوداکمېشن په ټولو هغونوکرانوکي، چي دبهرنيانولپاره سودااخلي،ديو راز حق په توګه پېژندل سوی دئ . کله چي نور نوکران دهزاره غريب په دې کارخبرسول ، چي له ماڅخه يې عين هماغه د دوکاندارپيه اخيستي ده اوخان ته يې هيڅ نه دي اخيستي، نويې له ده سره ډېرناوړه چلند کاوه . خودخوميلاشتونوکري او نصيحت له لاري نورو نوکرانو تل ددغه شان حماقت مخه نيوله . په هرصورت ماته هزاره ګان تل تر نورو هندوستاني نوکرانو په « دستوري » اخيستلوکي باانصافه او دبازارپه سوداکي ارزان پېرودونکي ښکاره سول . هندوستاني نوکـــــران تل تر وروستی اندازې پوري هڅه کوي او عمومادخپلوسرانو طبيعتونوپهخاطر، دچاخبره له ډېري څخه غوري باسي . دې کار ددوی جيبونو ته سخته صدمه ورسوله . خوله شرمه يې څه نه ويل ، ځکه مادبازار سودا ددوی له لاسه وايستله اوپرځای مي نورداسي غريب نوکران وټاکل ، چي تردوی يې ښه کار کاوه اوغلايې هم لږ وه .

# دولسم څپرکی

## په کابل کي داروپایانو ژوند

### (ادامه)

بې قانونیت ـ خواړه ، خاروي، چرګان اونورروزل ـ دشهزاده ګانو او نورو کسانو لخوا سوغاتونه ـ په کابل کي وچکالي (famines) ـ کولرا ـ دملاحج اوزیارت ـ دکورله بام څخه کاراخیستل ـ کاراودکار ساعتونه ـ ساتېرې ـ هندومعامله ګران اوزاړه قیمتي شیان ـ له امیراوشهزاده ګانو سره دجشن لیدني کتني ـ دجوري هیات په واسطه داروپایانو ازمویل ـ لیکونه ـ دپوستې بیه ـ ترجماني ـ

---

دامیرعبدالرحمن ترمړیني وروسته په بازارکي ښه پوره بې قانوني خپره سوه ،چي هغه هم زیاتره دخلکو په کاروکي دعسکرو دمداخلې له امله وه ـ عسکري خلکوالبته ټولویې نه، دامیرترمړیني وروسته ددېوال دچرګانو په شان اسمان ته کتل اوهریوه کوښښ کاوه ، خان داسي وښیي چي ګویا دهیڅچا پروانلري ـ له دې امله زه مجبورسوم له هغه نوکرسره خپل ساتونکي ملګری کړم، چي بازارته به دورځنی سوداله پاره تللی ـ داهم په دې مقصد چي څوك یې ونه خوروي اوټول پېرودلي شیان ترکوره پوره راورسوي ـ

دوکاندارانو هم لـــه دغي بې ثباتی څخه ګټه اخیستله، په وزن کي

يې کمې راووست اوله نورو لارو چارو څخه يې پله ګټه زياتوله.
دوی بې له شکه په دې فکروو، چې تراله ګولۍ وړاندې څومره يې
وس وي خپل کاروکړي. داله ګولۍ انتظارېدلو لاره. يوه دوکاندار
داورلګيت له درزن څخه چې دوولس قطۍ وي، نيمې ايستلې وې
اوددې له پاره چې دوه چنده ګټه واخلي. دغه نيمې يې دپوره په بيه
ورکاوه. دغه نيم درزن يې زما پريوه نوکر هم خرڅ کړی و. کله چې يې
چلبازي کشف سوه، له نوکرسره ملګري عسکردوکاندارپه خوله کې
وواهه اودوه غاښه يې ورواېستل. دوکاندارکوتوال ته عرض وکړ
اوهغه موضوع دعسکرومشرافسرته وړاندې کړه اوکيسه زما دجيب په
څوروپيو پای ته ورسېده، چې عسکرمې په راخوشې کړ. البته
داکاررشوت ورکول اوفساد و. خوماهغه څوك يوازې پرېښوولای نه
سوای، چې په ډېره مېرانه يې زما دمنفعت له پاره ځان ته جنجال پېښ
کړی و. دی يو ساده افغان عسکرو. اودغه شان خلك معمولا
ډېرمخلص وي. صرف هغواوامرو ته ګوري، چې ورکول سوي وي.
يووخت ماخپل دغه شان عسکردورکشاپ په مشرپسې واستاوه، چې
ورته ووايي، زمادفترته راسي. دورکشاپ مشرپه سپين سترګی سره
حال راولېږه، چې ګويا مصروف و اووروسته به راسي. ما عسکر ته
وويل چې که بيانه راتلی اوهمداسي يې درته وويل، ترږيره يې ونيسه
اوراېې وله. عسکر ولاړی اوسمدستي يې سړی ترږيره نيولی راووست
. ددوی دووغالمغال دنوروکارګرانو پاملرنه هم ځانو ته اړولې وه اويوه
لويه ډله ددې له پاره ورپسې راروانه وه، چې وګوري ماجراڅه رازپای
ته رسيږي. البته مانه غوښتل، چې زما امردې تکې په تکې عملي
سي خواغېږه يې پرنوروکارګرانو داوه، چې بيامې نوبل چاته دوهم
وارسړی ونه لېږه.

په بازارکي کې ښې غوښې نه پيدا کيدلې. معمولا يې غټ
ترکستاني پسونه حلالول. ددغوپسونو غوښه سخته وي اوپه خوړلو
کې يې چنداني مزه هم نه وي. له دې امله ماخـــان ته کوچنی هزاره

کي پسونه چي welsh sheep ته ورته دي ، رانیول . دپنځوسو
شپېتو مېږیوه رمه ترې جوړه سوه اوهزاره جات ته مي ولېږل. هوري
وانبه هم ارزانه وو ، هم پرېمانه. نور وري یې هم راوزېږول . وخت په
وخت یې ماته اته ، لس تنکي وري، چي ماد حلالېدو تروختته مړولای
سول، رالېږل. اوپه دې ډول مي ډېره ښه غوښه ترلاسه کوله. هرېسه
ماته په متوسط ډول په دوه شلینګه تمامېدی. نه مي پروښو پیسې
ورکولې نه پرروزنه .هغه چاچي مارمه ورسپارلې وه ، دمېږو شیدې
اخیستې ، کوچي بې خني جوړول اوخپل مزدیې په جوړاوه. مادغه
رازچرګي، هیلی، بتي ، پیل مرغان او چرګان کښېنول . څرنګه چي
خواړه یې ارزانه دي، ماته ګران نه تمامېدل. چرګو ماته هرڅومره چي
مي غوښتل ، هومره هګی تهیه کولې . دوې غواوي مي ساتلي وې ،
چي شیدې او دګیلګیانو (خوسیو ) دغټېدلو پروخت یې غوښه راکوله.
ددې خای غواوي د زیاتي مودې له پاره ښه اندازه شیدې نه ورکوي
خکه مي لازمه وګڼله، چي دوې غواوي وساتم، چي په دې ډول زما
دورخنی اړتیااوکوچوله پاره پوره اندازه شیدې راکړي. اوړه معمولا
ارزانه وي خودتېروڅوکلونو په بهیر کي یې بیه ورو ورو ځګه سوې ده
. او اوس یې بیه تر پنځو کالو وړاندي درې چنده سوې وه . کله چي
زه له کابله راوتلم په روپۍ شپږپونډه پلورل کېدل (پونډ تردرې نیم
پنسو په لړبیه )
چای ،قهوه ، دقطیو (دبلیو )مواد ، تنباکو ،شراب اونورله
هندوستانه باید ترلاسه سي . معمولا یې پرراغوښتلو او رسېدلو درې
میاشتې وخت تېرېږي . داچي ولې دومره اورده زمانه پر تېرېږي
،علت یې په کرایه کښنانوکي دئ. لومړی ستونزه یې داده، چي
یوڅوك به له پېښورڅخه کابل ته دمالونو راچلولوله پاره هڅوې
اودوهمه ستونزه یې پرلاربانديدمالونو دخنډخبره ده، چي څواووني
نیسي،زیاتره داسي پېښه سي، چي یوڅوك خپل ټول اوښان ،اسونه
اونورڅاروي له پېښوره راباركړي ،خوددې بارنیمه برخه که دجلال آباد

ابطلو له پاره وي اوکه دوراندي وړولوله پاره ، ټول تسلیم کړي. دی بیرته دنوربارله پاره پېښورته ستون سي. داتګ وراتګ څوواره ددې له پاره تکرارسي، چي کابل ته دخپلو ټولو څارويوپه اندازه پوره بارزېرمه کړي . کله چي داکاربشپړسو، بیانومخ پرکابل حرکت کوي .
له پېښوره ترجلال اباده سفرپنځه شپږورځي اوکابل ته دتیاری له پاره نورسفرونه هم زیات وخت نیسي . اوس نوکه دیوچاتنباکو یانورڅه مخ پرتمامېدو وي ، دتازه مال تررارسېدلو پوري انتظارکول دېرستومانوونکی وي . په تېره بیاکله چي له پېښوره چاته لیك راسي، چي مالونو څواروني مخکي حرکت درکړی دئ . خوکله چي مالونه راورسیږي ، سړی یې په رسېدلو ډېرخوشاله سي اوټولي ستوماني ترې هیري سي . زیاتره پېښیږي چي مالونه پرلاري، هغه وخت چي بکسونه دهواد خرابی له امله دبېلابېلو سیمو په سرایونو (کاروانسرایونو ) کي پراته وي، وراسته اوخوساسي، خوچاره نسته . سړی باید داچانس قبول کړي.
کله چي دخیبرکوتل شاوخواقبایل وپاڅېدل اودتیراه دکمپاین اړتیا منځ ته راغله، دکابل اوهندوستان ترمنځ تګ راتګ یومخ بندسو اوموږپه کابل کي له هغوشیانو څخه بې برخي سولو، چي ژوند په هوساکیږي . دښېنلو له پاره هیڅ نه وو ، ان چای اوقهوه هم نه وه . دڅکولوله پاره څه نه وو .دې حالت څومیاشتي دوام ومونډ .زه داړتیا په وخت کي په نه څه گوزاره کولای سم اوډېرنه خواشیني کېږم . که څه هم په دغسي حالاتوکي ډېره تقاضانه کوم خوکه تنباکو اوسګریټ نه وي، نو داسي ښکاري چي بایدژړېږي دچارې کولوپه فکرکي سم .زه باید تل هغه وخت په یادولرم چي دخیبرکوتل بندو، امیراوشهزاده ګانو تل دموادو دکمښت په وخت کي زما سره ډېره ښه مرسته کوله خوپه دغه راز حالاتوکي دوی پخپله هم له کمښت سره مخامخ وو.
دغه رازامیراوزامنو یې ماته هروخت مېوې اونورسوغاتونه رالېږل، هغه مېوه چي په کابل کي به لارسېدلې نه وه، خو دوی تــــه به له

نوروخایوڅخه استول کېدله. په تېره بیاکله چې به یې په پسرلي کې ماته مخکني توت راولېږل، ډېر به ممنون سوم،ځکه دامېوه به په کابل کې لاپخه سوې نه وه . په پسرلي کې تل ترکاري لږوي ځکه دتېرکال حاصل مخ پرخلاصېدووي اودنوی کال دالارسېدلی نه وي . مابه زیاتره وخت ځواوونی بې له پتاټو ژوندکاوه اودا داسي کتنغ دئ، چې زما په فکرزیاتره خلک یې که دمانسام په ډوډی کې ونلري ،چنداني پروانه په کوي . خو په هرصورت ، کله چې زه ددغه ځای له شرایطو سره بلدسوم ، نومې ددغه شان کمښت دمخنیوی له پاره بندوبست وکړ .

د۱۳۵۳ کال په وچکالی کې چې په زرگونو تنه له لوږي مړه سول، دبازارزیاتره موادپه ټپه ورک سول . ځیني شیان خوپه هیڅ بیه نه موندل کېدل. اوړه په گنج(منډيي ) کې نه پیداکېدل اوزه مجبورسوم له حکومت څخه دخان اوخپلونوکرانو له پاره یوه اندازه غنم رانیسم اواوړه یې کړم . حکومت یوډېرپوړرانیسست، چې هره ورځ پکې یوه ټاکلې اندازه اوړه پرخلکو پلورل کېدل ځکه بل ځای هیڅ شی نه پیداکېدی . دادحکومت یودوددئ، چې دتنگسې له پاره گودامونه ډک وساتي . ډېپوټه درسېدلو په وړاندي تنگ کي دخلکو بېروبارااوټېل ماټېل دومره زیات وو ، چې هره ورځ دغنمو دونډې ترلاسه کولوپروخت دډېپو ترپرانیستلو دمخه ډېرکسان په تېره بیانښځي، مړې یاترپښولاندي مرگي حاله کېدلې . پرېې وزلو باندي فشارخورازیات و. میندي اوپلرونه چې دکورهرڅه یې دخوړو رانیولو له پاره پلورلي وو، مجبوروو، له لوږي څخه دخپلو ماشومانو دچیغو ، دهغوی دورځ په ورځ کمزوري کېدلو اوتښتېدلو اوپه پای کي دوروستی ورځي دمړکېدلوننداره وکړي او دوی پخپله به په دې خاطر ژوندي نه پاته کېدل، چې څه به یې خوړل اوماشومانو ته به یې نه ورکول ، بلکي له دې امله به ژوندي پاته وو، چې مقاومت یې درلود اویوڅه پیاوړي وو.

زماترلاس لاندي زياتره کارگران ورري وو. يووخت خولايوتن دکارپه وخت کي ببهوښه سواوکله چي مي دببهوښي علت وپوښت ، راته څرگنده سوه، چي دخوروخو په اوږدوکي يې تقريبا دوه انسه ډوډۍ خوړلې وه . له ټولودغوکسانو سره مرسته ممکن نه وه خوهغوی ته مي چي زماکارگروو اوزه پوهېدم چي ډوډۍ ته اړتيالري ، دورخي يووار خواړه ورکول . يوه ورځ مي يوځوك وليد چي زما لخواورکړه سوې ډوډۍ ترکوټ لاندي پټوي .سړی له لوري هڅوپوست و اوزه حيران وم، چي ولي دغه ډوډۍ خوري نه . خورروسته راته وويل سوه، چي دی په کورکي يووړۍ ماشوم لري اودخوړو راټيولوله پاره په کورکي څه ورپاته نه دي ، چي ويې پلوري . ده وويل، چي دماشوم موراويوه بله ښځه هم په کورکي شومه ناسته ده . خودی دهغوپروانلري . يوازي يې په ماشوم زړه کښانده دئ . په کابل کي ښځوته هيڅ ارزښت نه ورکول کيږي اودنارينه لپاره داښه خبره نه ده چي دښځي پرمرگ وژاړي . که څه هم موريا خوريې وي . خودهرنارينه خپلوانوپرمړينه باندي بياپه رينگټ ژاړي .
يوه بله ورځ دکارگرانو يومشرراته راغی، بې له دې چي دمعمول په شام سلام واچوي ، راته يې وويل، چي دی يومسلمان دئ اوهيڅکله يې له يوه غيرمذهب سړي يا پرنگي څخه دمرستي غوښتنه نه ده کړې . خودده په کورکي درې تنه کوچني ماشومان شامه پاته دي، چي ورو ورو مرگي حاله کيږي. دوستانويې هيڅ مرسته نه سوای کولای . له خانه سره يې وپتيبل چي خپل ماشومان ووژني ، غم بې ورلنډکړي اووريسې خپل ځان هم ووژني . خودماپښين دلمانځه په وخت کي يې په زړه کي وروگرځېدل، چي يووارباي دپرنگي ته ولاړسي . په دې ډول دلمانځه تراداکېدوورروسته سملاسي راغی .دده ويناموډبانه نه وه اودهغوکسانوزاريو ته ورته نه وه، چي ماته دمرستي له پاره راځي اومعمولا مي د «حضور» په نامه يادوي . خوماداسړی پېژاند ،چي له هغومتعصبومذهبي کسانو څخه و، چي په دې ملك کي

خوراړ ېردي اوکافرورته ترحیوان لاهم سپک ښکاري . په هرصورت
ماده ته دري روپۍ بې له کومې ملاحظې ورکړې .دی بې له دې چې
مننه وکړي ، راځخه رهي سو اوروپیوته یې په بېخوندۍ سره کتل . په
کابل کې درې روپۍ ډېرځه دي که څه هم ارزښت یې ترنیم کرون لږدئ
. ماپه دې گیسه کې نور ری و نه واهه. دوې ورځې وروسته سړی
بیرته راغی . له سره یې بگړۍ پورته کړه اوماته یې دوعاوکړه .
داکاردیوه مسلمان له خوادډېرزیات صمیمیت اوپېرزوینې ښکارندوی
دئ ، چې د لامذهبه په وړاندې یې وکړي . ده وروسته راته وویل،
چې تازما دماشومانو ژوندوژغوری اودده داهم . خکه دی چې لومړی
خل ماته راتلئ ، له ډېره غمه چورلېونی سوی و . ده زیاته کړه، چې
ماته دپرنگیانو په باب ډېرې خبرې سوې دي. خودی به اوس تل
دادوعا کوي، چې دوی مسلمانان سي اوترمړینې وروسته جنت ته
داخل سي .

په دغه کال پروچکالی سرېېره دکولرا (وبا ) ناروغي هم راغله .
مرگ ومړینه بیخي زیاته وه، خکه خلك کمزوري اوخواړوته اړوو.
ددوی دخوراك سیستمونه ببخي بې نظمه دي هرناوړه اوچټل شی،
چې په لاس ورسي ، خوري یې اودلوړي مخه په نیسي . هره ورځ
دهدیرې پرسړك جوپې جوپې انسانان روان وو اومړي یې پراوړو وړل
اوزیاتره چې مې پیژندل ، راته راتلل اوویل یې چې نن موزموړدواړو
یواشنابنخ کړ. خوسبایابله ورځ به یې دی پخپله هغه خای ته یوړ.
کولرا په ټولوطبقوکې خپره وه . ان دشهزاده گانو حرم لاهم په اخته
سو. دسردارنصرالله خان گرانه ماندینه په همدې ناروغي مړه سوه .
په نورکسانو کې دامیریوډېرگران غلام بچه هم وبا وواهه اومړسو.
څوتنه لوړرتبه افسران ددې ناروغۍ له امله مړه سول .

دشاهي کورنۍ غړي له کولراځخه خاصه بېره لري اودغه شان له
زلزلې څخه هم ډېره واهمه کوي . پخوادناروغۍ له شیوع سم به
مرحوم امیراودده کورنۍ دټولـوماموړینو اومتعلقینو په گډون له ښاره

وتل اوپغمان ته به تلل . کله چي دري کاله دمخه په ۱۹۰۰ کال کي دکولرا ناروغي خپره سوه . مرحوم اميراوټول متعلقين يې سمدلاسه ووتل ، په گاډيوکي بارونه ، خيمې اونورشيان چليدل ، خلك پراسونو باندي سپاره اومنډي يې وهلې ، بارچلوونکي په وارخطايي سره روان وو ، نوکران اوعسکرويه پښو وريسې ځغستل . دغې صحنې دالوتکي دبې نظمي الوتني (flight) بڼه اخيستې وه . انگريزان شاته پاته وو اوچي مرخومره يې وس و، نه يې سپماوه . (په دغه وخت کي Mr Daly اوزه يوازني اروپايان وو. ) مېرمن ډيلي خلورمياشتې دکولرادناروغانو په علاج کي تېري کړې . ډېروکسانو ژونديې وژغوره . ماخپل خان دبې دوده باروتو دجوړېدوپه يولړتجربو مشغول کړی و، چي له نېکه مرغه ډېرپکښي بريالی وم اواساسي دليل يې داو چي په دغه وخت کي يوازي وم اومزاحم مي نه درلود .

کله چي د۱۹۰۳ کولرا راغله اوسني اميردخپل پلاريه شان سمدلاسه فرنيچراوغالي اونورشيان پغمان ته ولېږل اوبه دابله ورځ يې خيال و، چي دی هم وريسې رهي سي خوپه دغه وخت کي چي والی دده په تصميم خبرسو، سملاسي ورغی اوورته يې وويل چي که دی له ښاره ووزي ، ښايي عسكراوخلك بغاوت وکړي ، ځكه ناراضي خورازياته ده . اميردحالاتو په باب دوالي نظرومانه اومجبورسو دارگ په ماڼۍ کي پاته سي . هوري يې خان په دووخونو کي محدود کړ اوصرف پنځو شپږوتنو ډېرو محرمو درباريانو اونوکرانو ته يې دکتلو اجازه ورکوله . چاچي به ورسره کتل ، له ماڼۍ څخه دبيرته وتلو اجازه ورته نه وه . ځکه دميکروب راوړلو بېره ورسره وه . سردارنصرالله خان هم مجبوروو په ماڼۍ کي پاته سي ، ځکه اميرله ښاره بهرنه ووت، زياتره وخت يې پرخپل جای نماز (مصلې) تېروه . ماته هغوکسانو چي له ده سره پاته وه ، وويل کله چي دده گرانه ماندينه په کولراباندي مړه سوه، دی ددغي ضايعې له امله اوله دې امله ، چي ښايي بل واربــــــه پرده هم ناروغي حمله وکړي ، له ډېره

غمه بالکل لیونی شانته و.
دشهزاده اودغه رازدامیریبره پرخای وه اودناروغی واهمي ددوی بېره لاورزیاته کړي وه . په دغه کال یوډېرستراومنلی ملاحج ته ، دمکې د زیارت لره روان و.کله چې هندوستان ته ورسېداومدینې ته دتګ په نیامت بندرته ولاړ، هورې یې واوریدل چې یوروحاني سړي دعیسی(ع) ددوهم واړراتګ تبلیغ کوي اوویل یې چې یوبل - St John رالیږل سوی دئ ( له سینت جانه یې مراد بنایي مهدي « ع » وي . ژباړونکی ) چې دعیسی(ع) دراتګ خبرورکړي اوتیاري ورته ونیسي . ملادغه روحاني ته،لا چې خلکو یې په باب عجایب بیانونه کول ، دلیدلو له پاره ورغی . دده دپیغمبری خبري دومره ډاډه وي ، چې ملایې هم اړولی اودې ته نزدې کړی و، چې دروحاني خبري ومني . یوه ورځ چې«پیغمبر» دملادحج دتګ په اراده خبرسو، دی یې دننه کوټې ته بوت اوملابیا ورروسته بیان کاوه، چې دوی دواړو هورې مکه ولیده اوملاخپل ځان دکعبې پرشاوخوا دګنوحاجیانو په ډله کې ولید، دننه حرم یې وکوت اوهورې یې دکتلو هرڅه ولیدل .ده وویل چې دننه حرم ته له رسېدو وړاندې یې په بېلابېلوځایو کې ټول ضروري عبادتونه پرځای کړل. داچې دملاددغه تصورله پاره څه رازدم وجادو یا کوم تاثیراغېز من واقع سوی و، بېله خبره ده اوبېل اټکل غواړي.خوملاپه مرګ لاهم له خپلې دغې عقیدې نه اوونښت، چې دی مکې ته تللی و اودده لارښود واقعي پیغمبر و. مسلمانان په دې عقیده دي، چې دبېلابېلو نبیانو (موسی «ع» عیسی«ع» محمد «ص» ) دینونه دخپل وخت وزمان رښتني ادیان وو اوخدای«ج»نوی دین دبشریت له نویوغوښتنو سره سم نازل کړ. په دې ډول دیهودیانو دین دعیسی«ع» تر راتګ پوري حق دین و اودعیسی«ع» دین د محمد «ص» تربعثت پوري رښتینې دین و. دغه نوی شخص به،که یې څوک پرخبروغوررونیسي ، دمحمدي دین لارویان خواشیني کړي. څکه دی وایي، چې مسلمانان باید عیسیانو ته د ورونـــــــــــو په شان

درناوی وکړي او دکافرانو په سترګه باید ورته ونه ګوري. داکاربه دانګرېزانواوروسانو دتېري پرضدداميراساسي وسله ،جهاد (مذهبي جګړې) ته زيان ورسوي . له همدې امله کله چې اميرپه دغوټولو کيسو خبرسو ، ملايې بيرته راوغوښت . ملاهيواد ته راروان سو اوله راستنېدو سره سم يې دنوي دين تبليغ پيل کړ.خوکله چې دهيواد سرحدته راورسېد ، ونيول سو اوبندي يې کابل ته راووست . اميرهغه وازمويه . خودملاپه معقولو جوابونو کې اميرداسي څه ونه موندل چې دواقعي دين پرخلاف دي وي اودهغه له مخي دي يې کافروبولي اودمرګ مستحق يې وګڼي . دقران له مخي کله چې يومسلمان مرتد سي ، بايد په ډېرو ووژل سي. ملا يې دازمويښت له پاره سردارنصرالله خان ته، چې په ديني چاروکي ترملازيات عالم دئ ، ولېږه . خوشهزاده هم دملاله خولې داسي ونه ايستل، چې په محکوم دې کړي . نو يې دډېرو سترو ملايانو دوولس کسيزه وفدورته وټاکه اودهغوی ازمويښت هم داسي اتهام په لاس ورنه کړ، چې دهغه له مخي دي سړی ووژل سي . هغوی خپل رپوټ اميرته ورکړخواميروويل چې سړی بايد محکوم سي . هغه بيا ملايانوته ولېږه اوورته يې وويل، چې هغوی بايد داسي کاغذلاسليک کړي ، چې په هغه کې دغه شخص کافراودمرګ مستحق بلل سوی وي . داخل دملايانو اکثريت تاييدکړه، چې سړی بېګناه اوددين پرخلاف نه دئ. دووتنوچې دنصرالله خان رفيقان وو اودهغه لخواورسره خبري سوي وې ، دمرګ فتوا ورکړه . ددغودوو ملايانو په پيداکولوسره اميرهغه محکوم کړاوورپسي يې سنګسارکړ. دمخه تردې چې ملا داميرله حضورڅخه وژنځای ته بوزي ، ملاپېشګويي وکړه چې هيوادته به يوسترمصيبت راسي اواميروسرداردواړه به په مبتلا سي . دملادوژني دورځي په ماښام دنهوبجو په شاوخواکي دباد اودوړو يوسترتوپان راغی اودنيم ساعت له پاره وچلېد. وروسته لکه ناڅاپه چې پيل سوی و، همداسي ناڅاپه ودرېد. د شپې له خوا دغه رازتوپان يوه غيرمعمولي پېښه وه

اوخلکو ويل چي داملا روح و چي تېر سو . وروسته کولراغله اودا ناورغي ورستيو څلوروکلونو کي پېښه نه وه اودا هم دملا له پېشګويي سره وتړله سوه اوامیروشهزاده زيات وبېرېدل . دوی دواړوخپل مرګ پکښي وليد . دغه رازدشهزاده ليونتوب، چي دهغه دګراني ماندينې دمړيني پروخت ورته پېښ سوی و ، هم له همدي پېښي سره وتړل سو . وژل سوي ملازيات شمېرپياوړي پيروان درلودل اوهغه دوه تنه ملايان چي دده دوژلو فتوايي ورکړې وه ، دده دپيروانو له غچ اخيستني څخه دېرسخت وېرېدل. هغوی لوړلي وه، چي غچ به يې اخلي .

په دوبي کي مادخان له پاره پربام خېمه درولره اوپکښي بيدېدلم . خېمه ترکورهم دېره تازه وه هم سړه . ددوبي شپې دېري تودې اوشمال(باد ) دېرکم يا هيڅ نه وي . څرنګه چي دکورو بامونه هموار اوپه دېوالونو محاط دي، خکه نوخلك معمولا ددغه شان مقاصدو اودشپې لخوادناستي له پاره کارځني اخلي . دغه راز ښځي هم دتازه هوا داخيستلو په مقصد استفاده ځني کوي. دوی ته دباندي وتلو اجازه نسته اودېرمحدود کورونه، هغه هم يوازي دېډايانو کورونه په څنګ کي باغچې لري . په هغوکي ښځي په تنهايي سره ګرزېدلای سي . پردغسي باغچوباندي چي ښځي استفاده ځني کوي، بايد دومره چګ دېوالونه راتاوسوي وي ، چي دوی دګاونډيانو له ليدو پرته په خلاصه ښه وګرزيدلای سي. دکورغولي (انګړونه ) معمولاکوچني اوچټل وي او دفضله موادو دبوی له امله دساتيري وړنه وي . زه چي مازيګرله کاره ياکوم بل ځايه راستون سم (دکاروخت له وختي سهاره ترمازيګره وي )، ښه زيات وخت پربام باندي تېروم اوخان دهغو نيالګيو په کتنه و روزنه مشغولوم ، چي پربام باندي په ګلدانيو کي ساتل سوي وي . دګلدانيو نيالګي ترهغه وخته، چي مځکي ته انتقاليږي ، دوچېدلوبرچانس لري. ما په هغوکي ښه وختي لاتخمونه پاشلي دي خکه زه بايددسلات مـوادتيار

ولرم بې له دې چې مارکېټ ته دهغو درارسېدلو تروخته دي منتظرپاته سم. پربام باندي کله کله خپل سات هم تېروم .. ډول ډول کاغذبادونه (ګوډي) په هواکوم ، چې نزدې اوسېدونکي سمدلاسه زماتقلیدپیل کړي . خوزما کوردښهردروازې اواسمايي غروترمنځ پروت دئ اودناڅاپي دوړواوبادو له امله، چې په دغه تنګي کي زياتره چليږي، زيات شمېرکاغذبادونه له لاسه ورکوم.

کابل دلرغونو نادروتورو، سپرونو، پلته يي توپکونو، زغرو اونورشيانو دکلکسيون دشوقيانو له پاره ښه مناسب ځاى دئ . ځيني دغه رازشيان ښېخي زيات لرغوني وي . له هغوعربي ليکونو څخه، چي پرزياتروتوروباندي ليدل کيږي، چاته داسي چورت ورلوېږي، چي ښايي دغه توري به په پخوانيو صليبي جګړوکي کارسوي وي. داسي سکې هم موندل کيږي، چي نېټه يې دسترسکندرهغه زمانې ته رسيږي، چي نومړي به دهندوستان دفتح کولوپروخت دلاري داوړدو په ښېلاښېلو سيموکي خپل واليان مقررول .
داکارښه پوره پوهه اومعلومات غواړي، ځکه جعلي شيان هم په دغه ځاى کي پلورل کيږي .هندوانې چي ځوسوه تنه يې په کابل کي اوسي ،ددغونادروشيانو زېرمي لري. خواروپايانوته يې دسپايانو له ښېري نه راوړي ځکه څه چي يې کټلي وي، له کورڅخه له وتلو سره سم بې بيرته په ټى کوي . کله يې سپايان په دې خبره ګواښوي ، چي دعوه ورته جوړوي ، ياپې پرنګيانوته دا ا طلاعاتو رسولو ريوټ کوي. په داسي حالاتوکي نوبياله دوى څخه چي، سپايان هرڅه غواړي، د «نه» جواب نسي ورکولاى . مادډوى له خولې دغه خبراوربدلي دي.

په لويو جشنونوکي به اروپايان عموما دامير اوترهغه وروسته دشاهزاده گانو دربارته دسلام له پاره ورتلل . په دغسي مواقعوکي دربار دنورو وختوپه شان نه وي . په دغودرباروکي داميرپه گډون ټول حاضرين ټوکي ټکالي کوي اوخوشالي ددغي ورځي دود وي. ځني مامورين به پرمخکه ناست وو اوشطرنج به يې کاوه اوامير به کله له يوه اوکله له بل سره شرط تاړه اوکله کله به يې دچال په کولوکي مشوره هم ورکوله . اميرښه شطرنج بازو. دده په دربارکي ډېرولږوکسانو له ده سره سيالي کولای سوای . ددربارټوکي به هم په لوړه سويه وې . زياترو به په کيسواوټوکو باندي خنداوي کولې . مرحوم اميربه په دغسي محافلوکي زياتره خپل خاطرې بيانولې اودهغوخايو اوسړيو په باب به يې خبري کولې ، چي ده په روسيه کي ليدلي وو. يوله دغوکسانو څخه يوروسی سوداگرو، چي اميربه تل ددغه سوداگردښه سلوك اوازيکو په باب رغبدی. دغه سوداگريووخت اميرته په پور ورکولو سره نوموړی له ستري شرمندگی څخه ژغورلی و. اميريووخت ماته وويل، چي ده له يوساعت ساز سره څه موده په دې نيامت کارکاوه، چي داکسب ځني زده کړي . ځکه دمشغولاله پاره يې نورڅه نه درلودل . ده به دساعت سازدماندينې په باب ډېري جالبي کيسې کولې . داچي هغې څه رازپرخپل مېړه باندي په ډېرسخت ډول حکمراني کوله. خودامیردظرافت قوت ډېرپراخ و اومکرري کيسې نه ځني بېخونده کېدلې .

داوسني اميردجشن دورځو دربارده دپلاردوختو خوند اوشخول نلري ځکه دی ټول وخت دخپل دربارپه زموخت نظم اونسق باندي لگوي اوله خپلو متعلقينو پرته له بل چاسره کارنلري . اصلا خوحاضرين ببخي محدود کسان وي. دی ترامیرکېدو دمخه ښه مجلسي سړی و خوله غالمغالي ټوکو څخه يې ښه نه راتله اوددربارپه خوښيو کي به يې له ستوخوټوکو سره مينه نه درلوده . دده ارام ساتېری خوښ دئ ، چي وخت په تېرکړي . له خپل (Magic Lantern) ( * ) سره ډېره مينه لري اوکله چي يې په کارواچوي ، ساعتونه ساعتونه يې پرپرده باندي دبېلابېلو تصويرو په ننداره کولو تېروي.

اروپايانوته په کابل کي په دې سترگه نه کتل کيږي گنې، چي دوی دغه خای دقوانينو تابع دي. خوکه داسي کاروکړي چي ددغـــوقوانينو پرخلاف وي

نولکه په ټولو هیوادوکي چي رواج دئ ، بی له شکه به هندوستان ته بیرته لیږل کیږي . خوتراوسه پوري هیڅ اروپایي په دغه شان قانوني ضدعمل باندي محکوم سوی نه دئ . مرحوم امیرډیراحتیاط کاوه ، داسي کار ونکړي، چي نورهیوادونه گوته ورته ونیسي . کله چي یوافغان عرض ورته وکړ، چي له هندي حکومت څخه دده دهغه دپورپه ترلاسه کولوکي مرسته وکړي چي د۱۸۷۹-۸۱ کلونو دانگریزي اشغال په بهیرکي یې لښکروته دموادو برابرولو له بابته پرهغوی باند ي و ، امیرله دغه سړي سره دعدالت کولو ډیره ښه لاره غوره کړه اوبې له دې چي پخپله سرتصمیم ونیسي ، دکابل له غټو سوداگرو څخه یې شپږتنه وټاکل، چي زماپه گډون به پرموضوع باندي غورکوي . خودسړي اسناد ، چي په انگریزي ژبه وو، ددې ښکارندوی وو، چي دغه ټول پورتصفیه سوی دئ. یوه بله دعوه چي زه پکښي دحکم(jury) په توگه ټاکل سوی وم ، داو، چي یوامریکایي سوداگرکابل ته دخپلو کارونو دتصفیه کولو له پاره راغلی و. ده پخپل تړون کي دټاکل سوي معاش دبشپړي ادایني ادعادرلوده اوویل یې دبیزنس اندازه چي دهغه له مخي کلني معاش ټاکل کیدی، ترهغه څه لږوه ، چي په تړون کي ورباندي موافقه سوې وه.
کوم کارچي ده ته سپارل سوی و ، دتړون تراندازې لږوخوډی دهغه لږوالي مسول نه و . په دې‌خاطرباید ده ته هومره کلني معاش ورکول سوی وای ، څومره چي تړون پرسوی و.. ده خپله ټول کوښښ کړی و اوله حکومت سره خپل تړون ته تل وفادارپاته سوی و. له هغه لیکونه، چي ده ماموړینو ته کښلي اوپه پوسته خانه کي قیدو ، دامیر په حکم پرانستل سول اوله هغو څخه داسي څرگندېدل چي نوموړي دامیرپه ژمنوډېرلږپوه سوی و . دغو لیکونو امیرته دده نظریه هم په ډېره گونگه توگه رسولې وه . څکه نو امیرادعا کوله، چي ددغو لیکونو له مخي داسي چاته کارنسي سپارلای، چي پرخپلو ژمنو باندي شکمن ري اودخپلي نظریې درناوی نه کوي . په حکم هیت کي زما اودمېرمن ډیلي حضورخکه لازمي وگڼل سو، چي که نورڅه نه وي سوداگرخوبه د اروپایانو په وړاندي نورهم وشرمول سي. زه باید په هرصورت ووایم چي له لیکونو څخه څرگندېدله ، چي سوداگردامیردماموړینو کرکترپه بشپړه توگه درك کړی نه و.

دلیکونو په باب ، په کابل کي دایوعام کاردی، چي دانګرېزانو مکتوبونه باید قیداودحکومت له خوادګومارل سوو جاسوسانوله خواولوستل سي اومعمولا ترلوستلو وروسته بیرته نه وراستول کیږي . ګوریا دماموریڼو په نظردیوه انګرېزشخصي لیک یوبې ارزښته شی دئ . په کابل کي دانګرېزانو لیکونه اوهغوی ته لیږل سوي لیکونه څکه پرانستل کیږي، چي دهغواودهندوستان دحکومت ترمنځ کومه دجاسوسي خبره اورپوټ خانته معلوم کړي. خوداوسني امیرپه وخت کي داکار تردېري اندازې بندسوی دئ . اوس له دواړوخواوو څخه لیکونه په محافظت سره خي وراخي . په هرصورت په افغانانو کي دپوستې لیکونو ته دیوه ډېرمحرم شي په سترګه نه کتل کېدل . ټول لیکونه به یې په یوه کڅوړه کي واچول ، لاک ومهربه یې کړل اودلیکونو لیست به یې ورسره مل کړ. دپوستې امرینوته امرونه صادرسوي وو، چي یوه پوسته بایدتریوې ټاکلې اندازې زیات وزن ونلري . دپوستو رسوونکو داعادت و،چي دلیکونو پارسل به یې خلاص کړاوښه ډېرلیکونه به یې دغره په ډډه کي په دې خا ضرغورځول ، چي دپلنډي وزن یې سپک سي.

ماته یوچادیوه مهم لیک په باب بیان کاوه، چي دانګرېزي نماینده له خواخپل حکومت ته استول کېدی اوامیرغوښتل هغه ترلاسه کړي . امرونه صادرسوي وو ،پوسته رسوونکي دلاري په یوه ټاکلي ځای کي وژل سوی و اولیکونه بیرته کابل ته راوړل سوي وو. داوژنه اوغلا پرهغوقبایلو تاوان سوه ، چي دهجرم دپېښېدو په شاوخواکي اوسېدل . له دې څخه څرګندیږي، چي نه لیکونو اونه هم دسړي ژوند ته اهمیت ورکول کېدی . په هرصورت امیرلیک ترلاسه کړاوچادده دایمانداری خبره پرخوله هم رانه وړه.

دکابل اوپېښور ترمنځ لیکونه دسړیو په واسطه دپنځومیلو په مزله وړل کیږي. هرسړی (عادي تګ نه کوي ) پخپلو پنځومیلوکي مخ وشاته ځغلي اوله یوې خوالیکونه وړي اوله هابلې خوایې راوړي . اوپه دې ډول ددغو دووخایو (کابل ـ پېښو ـ ژباړونکی ) ترمنځ واټن په دریو ورځووهل کیږي. دپوستې بیه پریوه مثقال باندي چي دانس شپږمه برخه کیږي، څلورپنسه دده اوټکټونه ورباندي ښلول کیږي. خوله بهرنیولیکونـــــــــــو څخه په پېښورکي

داميردپوستې دمشرله خواټکټونه دمخه ترديې چې هندوس ان ته دي وليبرل سي. ليري کيږي. افغانستان دپوستې په اتحاديه کي شامل نه دی. خکه نودک بل پرليکونو بايدپه پښنوررياکوم بل خای کي دمرسل اليه لخر وسته ووهل سي اوبيسې يې تاديه سي.

کله چې مجلې ياورخني اخبارونه کابل ته رااستول کيږي ده ستې لگښت يې يوغټ رقم وي . مايووخت دپښنور اوکابل ترمنځ، چې نږدې دوه سوه ميله کيږي پريوه کوچنی مجله باندي درې روپۍ دپوستې محصول ورکړ. په داسي حال کي چې دهمدغي مجلې محصول له انگلستانه ترپښنوره يوپنس و. نه کابله، چې هندوستان ته ليکونه لېږل کيږي، پته يې بايد په پاړسي ژبه ونيکل سي اوپرپاکټ باندي بايد دافغانستان دپستي محصول پرځنگ دهندوستان ټکټ هم ونښلول سي.

له کوم شخص سره، چې په کابل کي انگرېزان زيات اړيکي لري.هغه ترجمان دئ . دلته ځوکسه ترجمانان سته ، خويوتن يې دېرمهم دی اوهغه دامير اوانگرېزي اوسېدونکوترمنځ دترجمانی له پاره ټاکل سوی دئ . دغه دنده دېرزيات کارغواړي . پرترجمانی سربېره داميراودهغه دشهزاد گانو خدمت هم کوي اوټول هغه خطونه، چې دانگرېزانو لخواامیرته اوبرعکس لېږل کيږي ، بايد وژباړي. له نوروهيوادوسره حکومتي مکاتبات دنوروکسانو لخواچي ددغي دندي له پاره په خاصه توگه ټاکل سوي دي ، ژباړل کيږي. اوسړی په کابل کي له اوسېدونکو انگرېزانو سره داړيکولرلو جرات نه کوي. دترجمانی له پاره په کارده، چې يوشخص بايد په چټکی سره په دواړو ژبو کي دمعناروټولي اوښتني درک کړای سي او دې ته تياروي ، چې که کومه خبره سمه وانه وري . پخپلو الفاظويې سره ولاوډي . خکه چې اميردخبرودتکرارحوصله نه لري دغه رازبايد دی ترپوې اندازې دخبروپه موضوع کي وارد وي اوکه داسي نه وي ، نوښايي تخنيکي لغتونه په خينو خايو کي سکتگی راوړي.

دزياتروانگرېزي لغتودتشريح له پاره دپاړسي ځوجملې په کاردي . خکه دوی دهغو معادل لغت نه لري . په وروستيو کلونو کي خيني دغه شان معادل لغتونه له نورو ژبوځخه اخيستل سوي دي. دی بايد ، مخصوصا ټولي وېل سوي خبري

په چتهکی سره بې له غلطی ترجمه کړي . که داسي نه وي نو له کاره به لیري اوپرخای به یې بل څوك ودرول سي، چي داکارده له پاره د همېشني خجالت په معنا دئ .

# دیارلسم څپرکی

## عسکراووسلې

جامې - تمرینونه - مشق - دامیردباډیکاړدانو یونیفورمونه - وسلې - معاشونه - مډالونه - دخدمت موده - عوضیان - بارکونه - دژوندلاري چاري - په عسکرو کي قماربازي - دبېلابېلوقبیلوقطعات - غله قبیله اوټولی - افسرانواودرتبولوبدل - باجه خانې - د ۸۱ ،۱۹۷۹کلونو دجګړې په باب دافغانانو کیسې - افغاني لښکردیوه جنګي ماشین په توګه - دجګړې له پاره دهیوادحالت - دافغاني کرکټردیواړخ بیان .

---

دافغاني عسکرودیوې ټولۍ دلیدلو پروخت ، لومړی شی، چي دچاپاملرنه وراړوي ، هغه ددوی بې نظمي ، بې سلیقې بڼه اوخړبدلی رفتاردئ. څرنګه چي هغوی منظم یونیفورم نلري ، نوجامې یې رازراز وي، چي ددوی په غوښتنه اودرانیولو په قدرت پوري اړه لري . خینې دانګرېزي لښکرو یاداورګاډي دکارکوونکو زاړه کوټونه اوخینې له رنګارنګو ټوکرانو څخه په بازارکي جوړسوي کوټونه اغوندي. دبازاردګنډونکو کوټونو چي په لاس ورسي ، پرځان یې برابرګڼې. خینې دټوکرانو پتلونونه اوخینې نخې پتلونونه اوخینې نوربیاافغاني پرتوګونه (تنبان ) اغوندي . زیاتره افغاني کمیس وپرتوګ اغوندي . دغه جامې په ختیځوسیموکي باب دي . له غرنیو اوسېدونکو څخه جوړي سوي ټولی بیاپوستینچې اغوندي . البته ټولودځرمني کمربندترلی وي چي پردواړو خواوو یې کڅوړي (بغل خولی ) ځړېږي. عسکراوملکي کسان که کمربندونلري لکه جامې چي یې نه وي اغوستي اوهرهغه چاته، چي په دغه هیوادکي یې څه موده تېره کړې وي ، بې کمربنده افغان عسکریا ملکي تن ورته بې جاموښکاري . دسرله پاره بګړی عامه ده . خوډول ډول خولی هم رواج لري، چي زیاتره یې دروسانو عسکري خولیوته ورته دي . توپچي عسکر، چي دوی یې سوار (Sawars ) بولي، روسي ډوله جګ بوټونه ، چي ډېري چګې پوندي لري، په پښوکوي اواغوستونکي پکښې بې ډوله دنګ ښکاري . دابوټونه زیاتره پینه سوي اوله سره ترمیم سوي وي . دحیرانتیا ځای دادئ ، چي

دوی دغه بوټونه دوهم لاس رانیسي (پېرودي) ، په داسې حال کې چې ماهیځکله هم کوم سوارنه دئ لیدلی ، چې نوي بوټونه دي یې په پښو کړي وي . دعسکروجامې عموما زړې اوځیري ویري وي ، مایوحوالدارځوواره لیدلی دئ ، چې نوی کوټ یې اغوستی وي. اودغه بایدخوراډېري ورځي سپماکړې وي، چې ددغه کوټ درانیولو وس یې موندلی وي . دی دکوټ په انتخاب کې ډېره پاملرنه کوي.اومعمولا تېزرنګونه (تېزژړاوشین) خوښوي، چې په اغوستلو کې ډېرژرځیرن سي اوسړی مجبوروي، چې په پاکولویې نیم ساعت ولګوي . دی خپل زاړه کوټونه دخپلي ټولی پرافرادو خرخوي.

کنډکونه، چې پریوه کرښه ودرېږي، توپک یې ټول کاره نیولي وي . دوی هغه رازتمرین نه لري، لکه په نوروهیوادوکې چې کیږي. ټولی دمارش په وخت کې داسي ښکاري لکه دوسله والو داړه ماروډلو، نه لکه دعسکروټولی .ددې له پاره چې په کلنیو دومارشونو کې عسکري ټولی ښه وایسي ، دتمرین په میدان کې مارشونه په کوي اوافسران دعسکروفرد فردپرخپلو خایونو ودروي ـ یودلته وراندي کشوي ، بل هلته شاته پوري وهي. څویه پای کې یوکوړ ووړ غبرګ کتار خني جوړکړي. کله چې تمرین پای ته ورسیږي ، خلك بیامخ وشاته پوري وهل کیږي چې داخل یې څلورپوره کتاره کړي. وروسته نوبیا مارش پای ته ورسیږي اوټول بیرته دخپلوبارکونو پرلورخوځیږي. پرلاري دمخ یادشاڅلورکسیزي کرښې افراد یوبل ته دخبروله پاره سره نزدې سي اوپه دې وخت کې نو هغه لږشانته نظم چې یې موندلی وي ، هم وران سي اوټولی، چې څه راز یې زړه غواړي ، روانه وي واداحالت نو هروخت پېښیږي . (دتمرین پروخت امیراوشهزاده یې دمرستیال په توګه دبېلابېلو ټولیو مخ ته په چټکی سره پرآس سپورتېرېږي. ) دکنډکونو هغه افراد، چې په تمرین یارسم ګذشت کې (رسم ګذشت یې هم دتمرین په شان وي) په استثنایي توګه پرخط برابرتېرسي اوافسران یې وګوري ، خانونه دومره ډېرسرلوړي ګڼي لکه په کومه مغلقه مانوره کې چې یې برخه اخیستې وي. دامیرساتورنکی ګارډلږخه روزل سوي کسان دي. دوی ته په تمرین کې داخبره ورښوول کیږي.چې څه رازخانونه پرڅلورکسیزه کرښه باندي برابرکړي، دډول له ږغ سره سم ورو ورو مارش وکړي

اودامیرپه وړاندي پښې اوچتي پورته کړي . ددغه تمرین تماشا ته، چي دارګ د ماڼۍ په بهرنۍ سړک کي سرته رسیږي، دښاریوزیات شمېرمینه وال لاوسېدونکي راوزي . خودمارش په وخت کي دعسکرو دپښواوچتولوننداره ، چي هرګام یې څلور پنځه ثانیې وخت نیسي ، نندارچي ته هغه نوي جلبیان وریه یادوي، چي داوزګړو په شان ګامونه اخلي (۱) کنډکونه کله کله په رسم ګذشت هم تېرېږي اودبې ګولیو کارتوسوډزي کوي خوهغه رازکتارونه نسته چي عسکرپکښې دښېدان ویشتلو له پاره روزل کیږي . خیني توپچي ټولی کله کله دنخښې ویشتلو تمرین کوي اوداکاردواقعي تمرین په نیت نه، بلکه د توپودازمویلو له امله سرته رسیږي . کوم توپچیان چي مایې تمرین لیدلی دئ، نخښې سمې نه ولي. ډېرلږپېښېږي چي هدف ته دي دپنځوسو مترو په اندازه نزدې خای وولي.یووخت چي یې جنرال توپ پخپله پرښښان برابرکړ اوپه دوه زره متره کي یې نخښه وویشتله ، دومره خوشاله و، چي څودقیقې یې وړاندي وروسته ګامونه اخیستل . زه فکرکوم چي دنخښې ویشتلوله پاره دعسکرو دښه روزلوسبب دادئ ، چي په افغانستان کي دهري طبقې سړي کارتوس ته دکارتوس په توګه ګوري نه دداسي شي په توګه، چي بې له ضرورته هم کارخني اخیستل کېدلای سي . ترټولولوښه نخښه ویشتونکی ځې مالیدلي دي ،هغه کارګران دي، چي توپك اوتوپونه له دوکانو څخه دازمویلو په نیت راباسي . ماپخپله کله کله دتمرین په وخت کي خپل لنډتوپك هغوعسکرو ته دنخښې ویشتلو له پاره ورکړی دئ، چي زماسره به ملګری وو.خوهیڅ یوه یې هدف ته نزدې خای نه دی ویشتلی. دغرونو خلك چي له توپکوسره زیات بلددي، ډېره ښه نخښه ولي . دنخښې ویشتلو په وخت کي توپك پرډېره تکیه کوي او ډز په کوي.

دامیرپلي سپاره باډیګارډان یوازني کنډکونه دي چي خاص ډول یونیفورم لري اوامیریې تعقیبوي ، چي یونیفورمونه اووسلې یې پاکي وي. پلي ساتونکي په Lee Metford( ۲ ) توپکواوبرچوسمبال دي اودآس سپاره په تومانچو، توروواوکارابینونو وسله وال دي . په نورلښکرکي یو څوباوري کنډکونه په Martinis ( ۳ ) توپکووسله وال وي اونوریې Sniders لري(۴). توپچي ټـــولی

شپږېن اونهه پن توپونه لري اويوخودکچروټولی ستنه چي شپږېن او دري پن توپونه ورسره وي . توپونه يې دلنډ واټن دي اوسمه نخښه نه سي ويشتلای .پلټې يې زياتره نامنظمي وي اوګولی يې زيات اغېزمنتوب نه لري.ګويا توپچي پوخ يې د برېدارونکی نه دئ . دتوپخانې دوړلو راوړلو له پاره د بري غښتلي کچري اواسونه لري، چي په غرنيولاروکي ښه بلددي . دترانسپورټ څاروي دلوی لښکرله پاره کفايت نه کوي. هغه توپك چي په حکومتي کارخانوکي جوړسوی وي د برېدشکله دي اودوه يې په يوه رنګ نه وي . که له هغوڅخه دانسانانو ديوې داسي ټولی پرضدکارواخيستل سي، چي سره نزدې پراته وي ، دنوني (جري وجوك ) نيمګړتيابه يې لادومره زياته اغېزمنه نه وي . خوسمه نخښه ويشتل ديوه توپك له پاره لومړی درجه اهميت لري اوپه پټوسترګو نخښه ويشتل ديوه روزل سوي لښکرله پاره په عمل کي د بېره اغېزه ښندي . ددغو توپکو بله نيمګړتياد باروتوده . هغه باروت چي په هيوادکي دننه جوړېږي ، له دوو درو وارو ډزي کولو وروسته دټوپك ميل خورازيات خيرن کوي ، داسي چي پاکول يې حتمي سي. که پاك نه سي ، ټوپك سمه نخښه نسي ويشتلای اوپه دې ډول دويشتونکي روحيه ورکمزوري کوي . Maxim ( ۵ )او Gatling (۶) ټوپك هم په شاپونو (کارخانو ) کي جوړېږي ، خودپرزوناسم اچول اوپريوه لاس اويوه اندازه برابر کارتوس نه جوړول ددې سبب کيږي، چي درست کتار کارتوس بې له ناغې نسي ويشتل کېدلای . ناغه هرومرو کوي.

دعسکرو معاش دخوراکي موادو د هماغه وخت دبيو په پام کي نيولو سره، د برناکافي دئ .پلي عسکروته په مياشت کي اته کابلی روپۍ ورکول کېدلې، اوکله چي نوی اميرپرتخت کښېنوست ، ددې له پاره چي عسکرراضي وساتي ، معاش يې په مياشت کي لسوروپيو ته جګ کړ ( شپږشلنګه اواته پنسه ). سپرو لښکرو ته دمياشتي د برش کابلی روپۍ (شل شلنګه ) ورکول کيږي خوآس بايد پخپله ځان ته پيدا کړي. ګوياد آس بيه خني وزي . داميرپلي ساتونکي په مياشت کي د برش روپۍ اخلي اودنورو عسکرو کست(رخه، حسد ) خکه په کيږي چي ګوياشاهانه عايد لري . غسکردامیرلخوادهغوی په تنخواه کي ددوو روپيه زياتوب راضي نه سول . دهــــغوی توقع زياته وه اوويل به يې، چي که

تنخواه ورته زیاته نه کړي، دابه وکړي ، هابه وکړي . خوافغانان زیاتره په طبعه کي پسونوته ورته دي اوترڅو چي یوېي وړاندي نسي ، ټول څای پرڅای ولاړوي اوبې له بغاروبل څه نه کوي. دفعال خدمت پرهرمړا!! باندي دمیاشتي یوه روپۍ په تنخواه کي زیاتیري ښکه نوعسکرپخپلو مړالونو ویاړي . په داسي حال کي چي هغه دوفاداری اوستونزونه پېښسولو له امله ورکړه سوې وو.دغه مړالونه تر زیاتي اندازې دسپینو زرو دارزښت له امله دخوراکي موادو د رانیولو په بدل کي گرو (برمته ) سول . ښکه کاښتي ددغومړالونو له ورکولو سره سمه راغله . دکاښتي په جریان کي اوړه نه پیداکېدل اوحکومت دعسکرودتنخواه دیوې برخي پرځای اوړه ورکول . دې کارته یې ترهغه وخته دوام ورکړ، چي نوې غله ورسېدله .

دعسکرو دخدمت موده نامعلومه ده اوښایي ترهغه وخته پوري اوږده سي ، چي عسکرنوردبوډاتوب له امله خپله دنده سرته رسولای نسي . زیاترو عسکرو وماته وویل چي هغوی څه دپاسه شل کاله کیږي خپلي کورنۍ یې نه دي لیدلي . ښکه درخصتۍ له پاره ټاکلي اصول نسته اوکه یوعسکردخپلوشخصي کارودسرته رسولو له پاره کورته دتګ سخته اړتیا ولري، باید چي دځان په عوض کي بل څوک دخدمت له پاره پیداکړي . په ځینو ځالاتوکي دغه عوضي کسان تنکي هلکان وي اوما یوزیات شمېردغه شان هلکان دخدراڼواونورغرنیو قومونو په قطعاتو کي لیدلي دي .دوی به دومره واړه وو، چي توپك به یې پرغټ وو. خودوظایفو په سرته رسولوکي به بیادېرهوښیاران وو. اوامربه یې ژرسرته رساوه . دابېله خبره ده چي په عملي خدمت کي به نوددغوهلکانو ارزښت څومره وي؟ عسکرمعمولا غریب خلك وي اوځیني خوېې دځان اوخپلي کورنۍ له پاره له تنخواه پرته بل هیڅ نلري . همداعلت دئ کله چي زاړه اوږیري وسرونه یې سپین سي، ورېښتان ددې له پاره رنګوي ، چي دتنخواه اخیستلو اوفعال خدمت کولو په لیست کي پاته سي.

دعسکروبارکونه فرش وسامان لکه چپرکټونه، چوکۍ اومېزونه نه لري . خلك پرمځکه بیدیږي . هغه کسان دېربختوروي، چي ځان ته چارپایي یادتختو کټ برابرکړي اودوډۍ دمېز پرځای یوه زیږه بوریا ولري، چي د خوراك په وخت

کي پرمخکه هواره کړي . هره پیره (دحوالداریه ګډون داوتنوګارډ ) دخان له پاره دپخلی لوښي برابروي . دادحوالداروظیفه ده ، چي دسونګ دلرګیو له پاره تېشه او د ډوډۍ پخولو له پاره تبې برابره کړي . نورلوښي وسامان لکه مسي دېګ ، فلزي چایجوشه اودچایوښې لاستي پیالې دهرسړي لخوا پخپله تهیه کیږي . څرنګه چي په لاس باندي خوراك ددوی دود دئ، خکه نوپنجو، کاچوغوونو ته اړتیانه لیدله کیږي.

تروظیفې وروسته دوی ډلي ډلي ناست وي ، یا یې څنګ اچولی وي (ډیره یې لګولې وي ) په داسي حال کي چي یویې رباب ږغوي اوسندري وایي ، بل یې نکلونه کوي اوکیسې وایي. زیاتره عسکرپخواني قماربازان (جوارګر ) دي اوسره له دې چي قطعه بازي ډېره سخته منعه ده اوسخته جزالري، بیا هم په دوی کي ډېررواج ده .داکار ډېروجنایتوته لارهواروي . مایو څوك پېژاند، چي ورقي (قطعې ) یې بایللي وې اوخان یې وریشت . که ددوی قطعات(ټولی ) بازارته نزدې وي، بیانو بازارته وزي اوهورې زیاتره په خلکو خانونه غرضي کوي اوهغه شان خانونه ښیي لکه عسکرچي یې عموما ښیي. داځکه دوی بل څه لري نه . عسکرمعمولا دخان په کیسه کي نه وي ،خکه ډېرپیرې اونوري وظیفې یې دغاړي وي چي په هغوبانذي زیات مشغول وي. ددوی دپیرې وظیفې سختي ستومانوونکي نه وي. له څرګنده پیرې پرته ، نوربې له خوب وناستي بل کارنه لري . دوی دشپې له پاره نوم لري اودانوم په هرودوویادرو شپوکي بدلیږي . دامیریه پیره دارانو کي دشپې نوم هره شپه بېل نوم اوډېرزیات محرم (پټ ) وي .

قطعات معمولا دهغو قومونو یاسیمو په نامه نومول سوي وي چي دقطعې افراد وریسوري اړه لري. دمثال په توګه دمومندو ، خدرانو(۷)، کندهاریو،کوهستانیو، اردلو( ۸ )،اودخپلواونوروپه نومونو وي . بیانو دSappers اوMiners دي چي یو مخي له هزارګانوڅخه جوړي سوي وي اوتوپچي قطعات دي چي توپخانه یخ بولي . له Sappers اوMiners اوکوټوالي(پولیسو ) پرته نورداردوټول افراد پښتانه دي. دکوټوالیو نورو قطعاتو ته یې دملنډوپه توګه د«پنج پدر» نوم ورکړی دئ (د پنخوپلار وخلك ).

دامیرسپاره گارډ «شاهي رساله» نومیږي.

اودخېل لوېماره قبیله ده اوځرنګه چي ددغو عادتو پرېښوول یې په نورهیڅ رازلاروچارو سره ممکن نه و اودهغوی مشرانو به ویل ، چي ددوی مخکي شاهي دي هغوی اوډژوندي پاته کېدوله پاره غلا پرته بله وسیله نه لري ، خکه نومرحوم امیردهغوی یوشمېر په قطعه کي تنظیم کړل اوقبیلي ته یې وښودله ،چي دخپلوهیوادوالو له لوټولو څخه لاس واخلي . که غواړي چي غلاوکړي نوباید هندوستان ته ولاړسي . له پېښوراودهند له نوروسیمو څخه زیاتره غلاسوي ټوپك کېدلای سي ، ددغوخلکوپه لاس وي . اودخپلودهیوادپخوانیو امیرانو ته هم ښه ډېري ستونزي پېښي کړي دي اوهروخت چي ددوی دانتظام له پاره کومه نیمګړې هڅه سوې ده ، دوی یې په ډېراندي سخت مقاومت کړي دئ . خوامیرعبدالرحمن لکه دهیواد پرنوروسرکښوخلکو چي و، پردوی هم ډېرغښتلی و.

دکابل خلك دامیرشیرعلي اوداوځیلو دیوه مشرکیسه کوي وایي، دغه مشرېې خپلي قبیلې ته واستاوه چي ورته ووایي غلاوي مه کوي څکه ډېره رسوایي یې پېښه کړې ده . که غلابنده نه کړی ، امیرته که غل په لاس ورغلی ، په داربه یې خړوي . مشرته وویل سوه چي اودخېل په غلاکي دومره ماهره دي، چي هیڅوك یې لاس په لاس نیولای نسي اوپه ثبوت کي یې ورته وویل چي نن شپه پخپله دامیردخوب شال غلا کوي . که یې لاس په لاس ګیرکړ، بیادي یې په دارخړوي . په دابل سهاردغه مشردامیرحضورته ورغی اودامیرپه مخ کي یې دهغه دخوب شال له تخرګه راوېوست اوامیرته یې ورکړ ، ورته یې وویل ، چي ده خپله وعده پرځای کړه . امیرهك پك سو چي څرنګه یوځوك دده ترپیره دارانو تیرېدلای سي ، دده خوب خوني ته تللای سي اوهغه شال چي دی پکښې بیده دئ ،.اخیستلای سي، بې له دې چي ویښ دي سي . له دغه وخته ویل کیده، چي امیرشیرعلي نوراودخېل خپل سرته پرېښوول .

د اودخېلوقطعې په خپل وارسره دورکشاپونو پیره هم سرته رسوله . هره قطعه دیوې میاشتي له پاره خپله ډله ټاکي، چي پردغه وظیفه باندي ودرېږي .

ماته ددوی کپتان یوساده سړی ښکاره سو. ده دکولرا (وبا ) دلومړي ناروغی په

وخت کې چې زه هورې وم ، له خپلو سرېوسره مرسته کړې وه . موږهغه وخت سره وپېژندل. دی به زمادفترته دماښام د ډوډۍ پروخت راتلی اوزما سره به یې مجلس کاوه . یوه ورځ مې ځنې وپوښتل چې پښتوژبه رازده کړه خکه مایې له زده کړې سره مینه درلوده ، خوکوم کتاب مې دلوستلو له پاره نه درلود . کله چې مې دغه پوښتنه ترې وکړه ، دی یوڅه ناارامه ښکاره سو اوچوپ پاته سو . یوآن وروسته یې راته وویل، چې دی دژبوښوونه نسي کولای خکه ورسره بلدنه دئ خودغلا تدریس کولای سي اوبه ډاډه زړه یې راته وویل چې «په څو اوونیو کې به داسي غل درځخه جوړکړم چې هیڅوك به دې نیولای نسي» د اودخپلو قطعه یووخت دامیرله خوامنحل سوه اوهغوی سمدلاسه خپله پخوانۍ دنده پیل کړه . دغه وخت شکایتونه دومره زیات سول چې امیرمجبورسو ، قطعه بیرته له سره تنظیم کړي.

داردو دافسرانو لقبونه داسي دي : سپاره سالار (Commander-in-chief ) نایب سالار(۹ ) (دده مرستیال )، جرنیل( ۱۰ ) (General ) ، کرنیل(Colonel ) ، قومندان(Commandant )، کفتان(Captain )، صوبدار(Lieutenant of foot )، رساله دار(Lieutenant of horse )، حوالدار(Sergeant of foot ) اودافع دار(Sergeant of horse ) . داردوسترافسران دامیرله کورنۍ یادده له پلویانو Favourites څخه ټاکل کیږي اوترفیع درتبوله مخي نه، بلکي یوازي دده دخوښي له رویه ورکول کیږي . مرحوم امیربه دیوې قطعې دجوړېدو پروخت خپل مخ ته ټول سړي یوه لیکه ودرول اووروسته به یې په ډېرسطحي قضاوت سره هغه کسان، چې ده ته مناسب ښکاره سول، انتخابول اوهغه به یې بیاافسران کول.

دوی دموزیك یوشمېربانډونه(دستي ) لري ، چې ځیني یې تاري وسایل اوځیني یې ډولونه لري. دژیړي باجې موزیك باید په یادکړه سي خکه هره وسیله باید پرخپل ځای وساتل سي اوهرسړی ظاهرا خپله شخصي لاره(Tune ) ږغوي اوکوښښ کوي چې دده لاره ترنورولوړه واورېدله سي. که څوك نژدې ورته ناست وي دسرماغزه یې ورچپه کوي. دمشکي باجې (Bagpipe ) یوه دسته هم سته اوددوی دموسیقۍ له ږغــــه چاته داسي ښکاري چې ، دوی هغه

کوي سکاټلېنډ ی لاره ورغوي . ددغي دستې غړي دشمالي سکاټلېنډ دغرنیو سیمواوسېدونکوپه شان جامې اغوندي . دسکاټلېنډ ی لمني پرځای یې دشطرنج دتختې په شان کمیس اغوستی وي چي پرپتلانه دپاسه راځړېږي اوزیاتره له خیرن سپین چیت څخه جوړسوی وي. دغه دسته دشمالي سکاټلېنډیانودجنګي مهارتونوپه شان ستایل کیږي . اوافغانان یې پرنورویټولو دستوغوره ګڼي اووایي چي دوی په رښتیاسره شیطانان( Devils ) دي.

ماته یووخت یوچاوویل، چي دکابل ښارته څرمه ، دشېردروازې دغرونو په جګړه کي یوه ورځ انګرېزان مات سول اوده دمات لښکرپه منځ کي یوسکاټلینډی( Highlander ) ولید ، چي ترټولووروسته روان و ، توپك یې په لاس اودشاخواته په نخښه کړی و ، اودخغستاپه وخت کي یې کارتوس ویشتل اوپردښمن یې ډزي کولې . سړي راته وویل، چي دغه سکاټلېنډی دماتي پروخت لاهم زړه له لاسه نه و ورکړی. ددغي ورځي په جګړه کي زیاتروښاریانو برخه اخیستې وه اونوموړي شخص هم یوله دغوښاریانو څخه و.

افغانان لکه چي دموسیقی په باب قضاوت دهغې داواز دجګوالي له مخي کوي. څکه په یوه جشن کي زه دملکې سلطانې سلام ته ورغلی وم . موږته یې په باغچه کي کمپ جوړکړی و اودري باجې یې دږغولو لۀ پاره رالېږلي وې.دوی راغلل، دکمپ په دروکونجوکي ودرېدل اوبودم یې په لوړاواز سره بېلابېلي لاري(نغمې ) پیل کړې. دوی هیڅ نه ستړي کېدل، خوشا، خواخلك داسي ښکارېدل، چي دباجې دیومخیزی بندېدو په سوچ کي وو.

افغاني اردودعصري لښکروپه وړاندي دیوه جنګي ماشین په توګه دېراغېزمن نه ښکاري . افغان دیوه عسکرپه توګه پخپله خورابنه خاصیتونه لري،دی په یوڅولپوغنموباندي څوورځي ګوزاره کولای سي اوپه عین وخت کي پوره اندازه ستړیاګاللای سي، پخپل کوسي کي یې خان پېچلی وي اوآخ نه کاږي ، په غرونو کي نه ستړي کیږي ، زړه وردي ، ښه جنګېږي ، هروخت تیاروي اوپرخپلوافسرانو باورلري. دغه رازیې زړه ورتیاخوښېږي اوستایي یې. دډګرمن همیلټن ( Lieutenant Hamilton ) کیسې دیوه زړه وړېرنګي په توګه ترننه لاهم کیږي . نوموړي له کیوناري( Cauagnari ) سره ملګری اوله وژل سوو

کسانو څخه و (۱۱) . ددوی (افغانانو) افسران چي ترده زیات جنګي مهارت اوپوهه نه لري ، زیاتره یې ددوی له منځه پاکل سوي وي . هغوی دافسرانو په توګه ډېرلږصلاحیت لري اوکوم کسان چي پرخپلو خلکو یوڅه اغېزه لري اوپه یوه سترګه ورته کتل کیږي ، هغه ددوی دخپلي انفرادي وړتیا له امله ده .په دوی کي ډیسپلین ډېرلږدی اوترڅوافسردخپلو اوامرو دسرته رسولو له پاره خپل شخصیت په کاروانه چوي، خلك یې پروانه ساتي . څکه عسکردخپل آمرپه باب ډېرژرقضاوت کوي. دافسرانولخوانرمي اوښه وضعه له دووشیانوانګېري، یاداچي فکرکوي دخپل ځان له بېري نرمي کوي یاهم دبې عقل خیال پرکوي .

له جنرالانوڅخه یې هیڅ یودعصري جګړې په باب معلومات نلري څکه دوی یادهغوجګړوتجربې لري، چي په وروستیو کلونو کي دوی دسیمو له هغو وحشي قبایلو سره کړي دي، چي ترافغاني واکمنۍ لاندي راغلي دي ، یاهم له انګرېزانو سره دوروستی جګړې تجربه . هغه هم کوم محدود کسان چي ژوندي دي . کله چي دوی له یوه بهرني خواك سره دجګړې خبري کوي، دوی دخپلوعسکرواوغرنیو خلکو پرشمېراوپردې خبره تکیه کوي، چي دجهادتلقین اوتبلیغ دهیوادنۍ جګړې له پاره ډېره اغېزه لري. بل عامل داچي سیمه یې ډېره غرنۍ ده اولوړي وژوري لري اودیوه یرغلګرلښکردچټك اواغېزمن حرکت له پاره ډېري زیاتي ستونزي پېښوي . امیرچي پخپل هیوادکي له اورګاډي سره مخالفت کوي، عمده دلیل یې همداخبره ده، چي نه غواړي دیرغلګروله پاره سواني پیښه کړي.

افغانان منظمي جګړې ته ډېرنادرڅان نیسي ، زیاتره له ګوریلایي (چریکي) جګړې سره روږددي. اودیرغل په وخت کي بې له شکه له همدې جګړې څخه کاراخلي . په غرنیوکوتلونوکي داسي ځایونو سته چي یوڅومحدودمصمم وسله وال کسان کولای سي ، یوبشپړلښکرته ماته ورکړي .دیوه مهاجم لښکرله پاره به داډېره سخته وي ، چي ددغه هیواد زیاتوبرخوته درنه توپخانه ولېږي. ددې کارله پاره دغاترو (کچرو) بطریې لازمي دي خودکابل ، جلال آباد اوکندهار پرشاوخواپه هوارومیدانونوکي غټو توپونو ته اړتیا سته ، دومره غټ چي لږترلږه له افغاني توپوسره برابروي . دکابل میدانونو ته خود هغورسول ډېرسخت دي

مګرڅوك يې په دوه پلاوو ورسوي!

افغاني مقامات اوس دخپل لښکرپراغېزمنتوب باندي ډېرباوري دي. دوی فکرکوي چي دلارډرابرټس(Lord Roberts ) تروخت اوس ډېرتوپيرپکښې راغلی اوغوره سوی دي اوددې امکان ستنه، چي له هغوی سره ديوې بلې جګړې په صورت کي به ميدان وګټي ،خو که يې ورځ(بخت. م.هوتك ) وګرځېدله نوبيابه غالبا له ګوريلايي جګړې څخه چي دوی ورسره بلددي، کاروانخلي . دوی هرورخت چي ددښمن شهپرزيات ګڼلی دئ ، له همدې جګړې څخه يې کاراخيستی دئ . ددوی خپل منځي جګړې عموما منظم جنګ وي اوترهغو جنګيرې چي يوه خواماته سي، منډې ووهي اونورجنګ پرېږدي . دوی پخپلو منځوکي وايي ، چي مات لښکرتردريو ورځوپوري څغلي اونه درېږي .

دجګړې په وخت کي ښځي نارينه وو ته مهمات رسوي اود«پردې» قوانين نورپه منځ کي نه وي اودايوډول اړتياده. دوی ته اجازه ستنه ، بې له دې چي وشرميږي خپل مخونه لوڅ کړي . په دې خبره هرڅوك خبردي، چي له انګرېزانو سره په جګړوکي به ښځي ترجګړې وروسته په شپه کي دجنګ ډګرته ورتللې اوددښمن دمړيو لاس وپښې به يې غوڅولې اوټپي سوي کسان به يې پسې وژل . زياتره ښځي خوپه جګړه کي هم برخه اخلي. دافغانانو دکرکټرديوې برخي دبيان له پاره به زه يوه کيسه وکړم چي ماته ديوه سړي لخواسوې ده اودکندهارپه سيمه اړه لري . دده ترېورترکندهار څوميله دباندي يو کور درلود (ماداکورونه ليدلي دي جګ جګ دېوالونه پرراتاودي ) دشاوخوا قبيلو پر ضد د انګرېزانوله يوې جګړې وروسته له ډېرو انګرېزانو څخه لاروركه سوې اوپه اصلي لښکرپسې دکندهارپرلور روان وو. يوه ورځ دده ترېورته چا وويل، چي يوانګرېزترديوالونوهاخواته (ترکلادباندي ) ناري وهي. ترېورپې دکلابام ته خېژي اوګوري چي يوسکاټلينډی توپك پراوره ولاړدئ اومړی (ډوډۍ ) غواړي. ترېورپې خپلې کوټې ته په منډه خي،توپك رااخلي ، بام ته بيرته راخيژي دېوال ته ګونډه وهي، عسکرپه نخښه کوي او ډز پرکوي، سړی چپه کيږي خومړلانه دئ لرڅه ساه پکښې ښوري . ترېورپې دتوپك اخيستلو له پاره خکه زړه نسي کولای چي مبادا ټك وورباندي ونه کړي . دوې ورځي يې ورتـــه وکتل او ورسته

دتوپك اخيستلو له پاره وررهي سو. په دغو دوو ورځو کي عسکرداوبو له پاره زاری جګی کولې اوترخوچي ساه پکښې چونېدله، څوك له بېري نه ورنزدې کېدلی (۱۲)

# د دیارلسم څپرکي لمنلیکونه

(۱) لیکوال دلته په افغاني عسکروباندي په ملنډووهلو سره غواړي خپله انګرېزي برتري وښيي – خو همدي يې نظمو.خلکو دنړی له ډېرو منظمولښکروڅخه دجګړي میدانونه ګټلي دي(م.هوتك).

(۲) « لي میټفورډ » ټوپك دتورو باروتو داستعمال په وخت کي تر ټولو عصري ټوپك و. چي په انګلستان او تقریبا ټوله اروپا کي کار څني اخیستل کېدی . په جوړښت کي کلاسیکو ۳۰۳ بور انګرېزي ټوپکوته ورته و. (ژباړونکی)

(۳) هنري مارتینیس ټوپك اصلا د سوټزرلینډ داوسېدونکي فریدریك وون مارتیني لخوا اختراع سوی و او د انګلیسي تبعه الکساندر هینري لخوا انکشاف ورکړه سو. له دغه ټوپك څخه دانګلستان په پلي پوځ کي تر ۱۸۹۰ ع کال پوري کاراخیستل کېدی . څیني هینري مارتیني ټوپکونه ان تر شلمي پېړی پوري لامروج وو . (ژباړونکی)

(۴) سنایډر ټوپك هم دپلي پوځ وسله وه او دجېکب سنایډر امریکایي لخوا اختراع سوي اوپه انګلستان کي مروجه وه . (ژباړونکی)

(۵) ماکسیم ټوپك د هیرم ماکسیم لخوا اختراع په نونسمه پېړی کي اختراع سوی و او د میل په سرکي يې د ږغ ټيټولو آله ( Silencer ) درلوده . (ژباړونکی)

(۶) ګاټلینګ اصلا ماشیندار و، چي دامریکایي مخترع ډاکټر ریچارډ ګاټلینګ لخوا اختراع سوی و. (ژباړونکی)

(۷) په اصل کي جارجي(Jarji) دئ ، چي مولف په ناسمه توګه اوربدلی و . (ژباړونکی)

(۸) اردل دقوم یاسیمي نوم نه دی(م.هوتك)

(۹) لیکونکي دسپاه سالاراونایب سالارکلمات سم نه دي اوربدلي اودSupper Salah اوNaib Salah په شکل يې ثبت کړي دي

(۱۰) جرنیل يې هم دJinareal په بڼه ثبت کړی دئ ، چي سم نه دئ (ژباړونکی)

(۱۱) لیکونکی دلته هغي پېښي ته اشاره کوي چي ۱۸۷۹ع کال دسپتامبر پر دریمه دکابل په بالاحصار کي پېښه سوه او د امیر داردو اردل ټولی او هراتی ټولی په ډله ییزه توګه په کابل کي د انګلیسانودسفیر سر لویس کیوناري استوګنځي ته هجوم ورووړ اوپه نتیجه کي پخپله سفیر او دهغه ساتونکي ډله ټول ووژل سول (م.ه)

(۱۲) دا به غالبا دمیوند دجګړي دماتو لښکرو بیان وي. (پښتوژباړونکی)

# څوارلسم څپرکی

## سوداګري اوتجارت

**له تخنيکي وسايلو ، توپکواونورو دغه راز سامانونوسره داميردلچسپي ـ ورکشاپونه ـ دسونګ موادولګښت ـ استادان اوکاريګران ـ دخلکو تنخواه ـ سوداګري ـ هټي وال اوسوداګر ـ دهيوادتوليدات ـ صادرات اوواردات ـ دغلودانوخوړبول و اوداوبوپرسرجګړې ـ کاروانونه اودبارووړلودکرايې ډولونه ـ وزنونه اواندازې ـ ميرزايان اودفترونه ـ پورونه کښل ـ هندوان اودهغوی لخواپيسې په پوروړکول ـ دهيواد سکې وهل اوسکوک.**

---

اميرعبدالرحمن خان له ټولو تخنيکي چاروسره دزړه له کومې دلچسپي درلوده اوله سوداګرۍ اوسوداګرو سره يې بياخاصه مينه وه . دده په نظرديوه سوداګردريغ دده دحکومتي مامورينو له هريوه سره برابرو. دسوداګرشکايت اوعرض چې به ورته وسو ، هرومرو يې اورېدو. کله چې ده خپل ورکشاپونه پرانيستل، په دې کارکې يې څرګنده اراده يوزاې دانه وه چې توپونه اوټوپک دي جوړکړلای سي، بلکې مراديې دخپلو خلکو ښوونه اوروزنه هم وه . ده به ويل چې غواړي خلکوته دنوروهيوادو سوداګري ددې له پاره ورزده کړي چې هغوی دنوروملتونو سطحې ته ورلوړ کړي اوپه دې صورت کې به نونه يوازې هغوی اودهغوی هيواد داسې پرمخ ولاړسي لکه دانورچې تللي دي ، بلکې له کارسره دمينې لرلو له لارې به هغه عادتونه اوکمزورۍ هم له منځه ولاړې سي چې ، دبې قانونۍ اوغلطو کارونو خواته ددوی دتمايل سبب دي. ده به تل داشکايت کاوه له ټولو هڅوسره سره ، چې ده دخلکو له پاره کړي دي ، هغوی بياهم هماغه شان پاته دي اوسره له دې چې ده په زرګونو تنه وژلي دي، خونوروخلکو لکه څرنګه چې دده غوښتنه وه ، سبق څنې اخيستی نه دئ .

دده زوی، اوسنی اميرهم له ټولوتخنيکي شيانوسره ډېره زياته مينه لري اودخپل هلکتوب له وختـه راهيسې يې دحکومتي ورکشاپونو دمشرپه توګه کارکړی دئ . دی په اوونۍ کې يووارورکشاپونه ګوري اوهره څانګه اودهغې ټول توليدات تفتيشوي . په ماشينونو کې دده معلومات ترپلارډېرزيات دئ . سره له دې هم څېنې داسې مسايل سته، چې اميراو د ورکشاپـــــونو مربوط

مامورین هغه په سمه توگه درك کولای نه سي اوکله کله یې بنه فکرپه بند اوېکښې سرگردانه وي. دمثال په توگه دوی په دې هیڅ نه پوهیږي چي یوې ټاکلي اندازې بخاردتولید له پاره ټاکلې اندازه تودوخه په کارده اوڅرنگه چي دوی هره ورځ یوه زیاته اندازه لرگي په بېلرانو کي په همدې نیت سوځوي(دوی دډېروسکاره نلري ) څکه نوهروخت په دې لټه کي دي ، چي دغه مقداررالږکړي اودانجنانو په کارکي بایدکمبوت هم رانسي . یووخت یې فکرکاوه چي دوی دامسله حل کړې ده اوهغه داسي چي په بېلرانو کي یې دلرگیوغټې کوندې سوځولې غټې کوندې ترکوچنیو ټوټوورو ورو سوځي اوکله چي دلرگیو دغې ستري کوټې دبخاراندازه اوچته نه کړه ، بیانو داورپرکاریگروبدگومانه سول . هغوی یې ددغي ناکامي عاملین وگڼل اوبوشمېرېې بنه ودېبول اووټکول .
بل وخت دبېلرانو له پاره داور دلرگیو زېرمه تمامه سوه اوترڅو چي دیوې بلې ستري زېرمي دراغونډېدلو اوچېدلو له پاره بندوبست کېده، هره ورځ به یې تازه (لانده ) لرگي راوړل ، لرگي به لانده وه اوڅرگنده ده چي ورو ورو به سوځېدل . بخاربه اوچت نه ساتل کېده . سره له دې چي دلرگیو په اندازه کي کمښت نه راتلی ، خودانجنانو کارترېخوا بدترکېدی . دوی ددغه حالت دبدلون له پاره ډېري هلې خلې وکړې . ټولي لاري چاري یې وپلټلې خوسمه لاره یې ، چي دانجنانو دبنه کارنه کولوعلت و، ونه پلټله. دوی حتی سلنډران Cylinders خلاص کړل چي وگوري پستېان pistons سم دي که نه؟ اوکله چي دستونزې دحل له پاره ټولې پلټنې ناکامي سوې ، بیایې داورپرکاریگرانو راواچول اوبنه یې ودېبول . داورکاریگران یووخت په دې تورن سول، چي دسونگ دلرگو په اندازه ښوولو کي درواغ وایي . تراصلي اندازې یې زیات ښیي اوپاته برخه په بازارکي پلوري . له هغه وروسته یې بدگوماني دومره زیاته سوه ، چي دوی په قصدي توگه سم کارنه کوي اوشیان سره مرداروي . دموضوع اساسي علت دا و کله چي دیوه مامورفکرته دسونك دلرگیو په ورځنی اندازه کي دکمښت راوستلو خلانده نظریه ورغله، له هغې ورځي راهیسې دلرگیو کاریگران دموادو په تالاکولوتورن کېدل اوداسي ورځ به نه وه چي هغوی ته سزانه ورکول کېدله .
دهغه چادژوند مزه نه وي، چي دداسي ناپوهوکسانو ترلاس لاندي کارکوي.



دکابل ورکشاپونو نوې برخه ـ په منځ کې يې دسردارمانۍ اودفتر

زه که څه هم دنوروټولوببلابېلو کارونو په څنګ کي دبېلرانو اوانجنانو تش په نامه مشروم، خودمصرف سوومموادو داندازې مسول نه وم . داکارد یوه بل مامورپرغاړه و. دافغانانوذاتي بدګوماني اوپه کارباندي ناپوهي ددې سبب وې چي نوموړي دي په داراز موضوعاتو کي دچاپرخبره غوړونه نیسي . که څه هم زماسره به مشوره وسوه ، خوزمانظرته څکه دتعصب په سترګه کتل کېده، چي داورپرکاریګرانو مې پړه نه اچوله . کله چي مې دلرګیو دټوټه ټوټه کولو پښنهادورته وکړ، هغه یې داسي تعبیرکړ،چي ګوياژه غواړم حکومتي شتمني ضایع کړم . دحکومت دانجنیرپه توګه زمالپه ټاکلو لږوروسته ماته یوبل فرمان(دامیرلیکلی امر ) راورسېد، په هغه کي یې زه دنورو کارونوپه څنګ کي دبېلرانو اوانجنانو مسول ټاکلی وم. څرنګه چي انجنانو په ډېره بده توګه کارکاوه ، نوراته ویل سوي و، چي هغه بایدډېردقیق وازمویم . باید معلومه کړم،چي دادانجنانو اوبېلرانو نقص دي که داوردکاریګرانو، داسي فرمان نسته چي په دهغه دي بیاژرټول اړوند کسان خبرنه وي او کله چي زه په دابله ورخ بېلرهاوس ته ولاړم ، خلک ډېرخپه راته ښکاره سول . دوی به غالبا داسي فکرکاوه، چي دوی ټل پرکارحاضروو اودسونګ دلرګیو دمحدودیت په صورت کي د بخارپرزیاتېدو باندي له خپلو ټولو هلوځلوسره بریالی سوی نه دي څکه نوزمادبریالیتوب چانس هم لږدی . اوپه دې صورت کي به نوبې له شکه ټوله پړه پردوی واچوم. ددوی خپل عادت داسي دئ، چي دکاردناکامی پړه تل پرلاس لاندي کسانواچوي .بېلران مې وکتل .زمااژموینې وښوول چي په بېلرانوکي دننه داهاکو (چونې ) اوختیوپنډورغ(قشر )جوړسوی دئ . اوخلکو راته وویل چي له هماغې لومړۍ ورځي څخه چي دوی ایښوول سوي دي ، بیایې چادپاکېدلو هڅه نه ده کړې . تقریبا دوې اونۍ یې ونیوله چي کارونه ټول سم سي. له دې وروسته به، چي هروخت د اور پرکاریګرانوچاپړه اچول ، هغوی به تل ماته دیومسول شخص په توګه مراجعه کوله. دوی درک کړې وه ،چي زه یې په تکماریو پوه یم او ژمنه یې راسره وکړه ، چي که یې رپـــــوټ ورنه کړم، په

راتلونکي کي به کارونه په سمه توگه سرته رسوي. له ډېرو نورو خبروڅخه راته ثرگنده سوه ، چي ماته خلکو دکاریگرانو د ملاتړ کوونکي په سترگه کتل .

دداسي چاپه سترگه چي کاریگران له سزاورکولو څخه ژغورم اوزړه مي پرسوځي. ځکه ماپه ډاگه ثرگنده کړه ،چي دزیاتروکسانو تنخواه کافي نه ده اوهروخت چي موقع برابره سوې ده ، دزیاترو کسانو دمزد په زیاتولو کي مي تلاښ کړی دئ . اوداکاربه یوازي زماسره دمینې له امله کېدئ نه دبل څه په لحاظ. خودنورو کاریگرانو تنخواه هماغه دکاردپیل پرپخواني حال پاته وه.

بله نظریه چي دوی درلوده هغه دسایفونو(Syphones) په واسطه داوبودسطحي دلوړولو نظریه وه . یوه ورځ چي له پخواني امیرسره په دربارکي ناست وم، نوموړي داموضوع دهغومشرانو په وړاندي مطرح کړه، چي دهیواد له لیروسیموڅخه دده لیدلوته راغلي وو.ده هغوی ته داسي تشریح کړه ، چي که تاسي یوسایفون سرچپه ونیسئ اویه یوه ښانگه کي یې اوبه کښته تويي کړئ، په بله ښانگه کي یې اوبه لوړي خیژي. دومره لوړي چي سطحه یې دلومړۍ ښانگي ترسطحي نه لوړیږي . ده زیاته کړه چي غواړي ددغه شان یوشمېر سایفونو په واسطه دکابل شاوخواهغو سیمو ته ، اوبه ورسوي چي وچي دي ، اوبه نه لري ، اودجاري ویالو ترسطحي لوړي پرتې دي . ده ماته مخ راواړاوه اودخپلي خبري د حوالي په باب یې پوښتنه راڅخه وکړه ماخواب ورنکړځکه که مي مثبت ځواب ورکړی وای نوبیادا کار زما پر غاړه لوېدی او پــه

عام درباركي بل رازخواب وركول له ادبه ليري كارو، پــــه تېره بياچي خبره داميرله خواسوې وي . څه موده وروسته دورکشاپونو يوڅو تنه اصلي استادان( Foremen ) د امير لخوا ورغوښتل سول اوهمدغه نظريه يې ورته بيان کړه . دوی ورته وويل چي په هغه کي به فكروكړي اووبه گوري چي څوك داكاردسايفونونو په واسطه يادداسي پمپ په واسطه چي پخپله كاركوي ، سرته رسولاى سي. دوی پرموضوع کولو باندي دغورکولو له پاره څوورځي وخت وغوښت اوبېلابېلي تجربې يې وکړې . زه هم ددوی لخوا په موضوع خبرسوم څکه په يوه يادوو ورځو كي به دوی زمادنظر غوښتني له پاره راتلل.

داوسپني اوژېړوېه ريخته گرۍ كي ماته څرگنده سوه چي دسونگ موادو اندازه چي دقالبو په وچولو كي كارترې اخيستل كېدی،دومره لږده چي تقريبا نيمايي قالبونه يې بيخي خراب کړي دي . دادمسولو مامورينو دوهمه مساله وه چي دحكومت دپيسو سپمولو له امله يې رامنځ کړې اوپه دې ډول يې دخانونو تنخواه دحكومت دخيرغووښتونكو په توگه زياته کړې وه . دې موضوع دقالبونو يوه ستره فيصدي خرابه کړې وه اوله ماپرته بل چاپکښې ری هم نه وهلی.

دافغاني مامورينو كارونه چي دبېلابېلو څانگودشاپونو اوكارونو انتظام پرغاړه لري، دMP (دپارلمان دغړو.هوتك ) له هغومسافرتونو سره ډېر ورته والی لري، چي په ساړه موسم كي درې څلورمياشتې په هندوستان كي تېروي اوبياكوروونو ته دخپل حكومت دټولومسايلو دتشريح كولو اوچاري سنجولو له پاره څي.

دکابل په ورکشاپونوکي دماشینونودوه سترشاپونه سته، چي په هغه کي تقریبا سل داني راز راز ماشینونه پراته دي . دوه دکارتوس جوړولو شاپونه دي،چي په هغوکي دمارتیني اوسنایدرکارتوس دجوړولو ماشینونه سته ، دفلزي پټاکیوشاپ، دآهنګری شاپونه ، د بخاردسوټک شاپ ، داوسپني اوژیړو دریخته ګری ځانګي ، دسکې وهلوځانګه ، دګرځنده ژرندي شاپ اودبایلراوانجن خوني. ددې پرځنګ دتوپونو دارابواوبازوګانوجوړولو، دتوپکو دکارتوسو جوړولو، دکارتوسواوتولیو ډکولو ، دتوپخانې ، دکیزو، دکتاروزمو، بوټونو اونورشیانو جوړولو لاسي شاپونه ، دتوپورنګولو، دتوروباروتو دپټاکی دغوزې، دځرمنودآتش ورکولو اوتورلو، دصابون اوشمع جوړولو، دالکول تقطیرولو، دتیزاب جوړولو، دعکاسی چاپولو (Electro-plating ) دتورواوبرچوجوړولو ، داوروميدو، دمرمبو جوړولو ، دحلبی اومسی کارونو ، ترکاڼی، دنخشې جوړولو، رسامی ، دکوردفرنیچرجوړولو اونوري ځانګي . په دې ځانګوکي دڅلورو پنځوزروپه شاوخواکي خلك کارکوي.

افغاني کاریګران خیرك دي اوکه خپل مغزیوازي خپل کارته وقف کړي، دکورچاري یانورمسایل ورته دکارکولواجازه ورکړي، ډېرښه په زړه پوري اوله مهارته ډك کارکولای سي . داخبره دزیاتي ستاینې اوکریډیټ وړده . اوهمدا دافغاني کاریګرانو ښېګڼه ده . په هغوکارونو کي، چي ډېردقیق پيل اوپای لري، دوی معمولا بريالي نه دي . زیاتره یې سبب دادئ، چي دوی ته دمیچ جوړولو هنراوپه هغه برخه کي دکارکولو لارښوونه نه ده سوې . اوهمدا سبب دئ، چي خمکنی ماشینګني یې دډاډ وړنه دي.

په خینوموارودکي کاریګرداسې ښکاري چي ګویادیوې ناسمي (غلطی ) لاري په یقیني کولوکي خوراډېرفکرپه کاراچوي اودوام پسې ورکوي . البته په دې کي شك نسته، چي که یوه افغان ته سمه ښوونه اوروزنه میسره سي ، ډېرښه کاریګرځني جوړېدلای سي . زه زیاتره وینم ، یوکاریګر ددې پرځای چي خپل کارپه ښه توګه بشپړکړي، یومخ یې وران کړي . داځکه چي دکارپه دغه برخه کي یې پوهه لږوي. کله چي کارځني وران سي، زه عموما پخپله دکومك ړغ پرکوم . ددوی داخوښه وي، چي کارپخپله سرته ورسوي. پــه دې امید ، چي

دبشپړېدوپه صورت کې به يې له اميرڅخه کرېډيټ واخلي . داچې دوی دمرستي له پاره پرنورورېغ نه کوي، ترډېري اندازې ددوی دمامورينو گناه ده . څکه کله چې يوڅوک دکوم خاص کارله پاره اميرته ورولي، پرڅنگ يې دااد عا هم کوي، چې نومړي دکارپه دغه ياهغه برخه کې په ستونزو اخته و، ده مرسته ورسره وکړه اوپه دې ډول له سري څخه پخپله گټه دکارکرېډيټ واخلي . په خينوموارد وکي خولاماموربن په دې پلمه دټول کارامتيازخان کش کړي ، چې کاريگردده ترلارښوونې لاندې کارکاوه. په هرصورت ددغه شان حکومتي سيستم يوه نتيجه داده ، چې هرڅوک کوښښ کوي خان داميرترنظرښه وايسوي اوله دې لارې په لږڅه باندې دخپل زړه مراد حاصلوي.

په ټولوکارونوکې يواستاد (ښوونکی يافورمن ) اودهغه شاگردان (نوی خوان کاريگران ) وي. کله چې يوشاگردله استادڅخه ټول کارزده کړي، يافکروکړي چې زده يې کړ، بيانومعمولا په دې لټه کې سي . چې څه رازدخپل استاد لاس له کاره وباسي اودی ځای ونيسي . داکاردوی معمولا اميرته دخصوصي رپوټونو ورکولو له لارې کوي . ورته وايي چې استادې دکارترا ړتيا زيات مواد غواړي اوکوم مواد چې بالابودسي ، هغه بياپلوري اوخپل دژوند اړتياوې په پوره کوي. ټول گاونډيان يې دده دعوايدو دزياتوب شاهدان دي. داړپوټونه تل ځای ته نه رسيږي . په دې معنا چې استاددې خپل موقعيت له لاسه ورکړي اوشاگرد دې ځای ته ور ټوپ وهي . خودومره اغېزه وښندي چې استادبه بنايي بندي کړي، پښوته به يې زولنې ورواچوي ، دورځي له خوابه دمعمول په شان کارته ورځي اوپه شپه کې به بيرته بنديخانې ته بېول کيږي . ميرزايان به دده حسابونه ورتفتيشوي اودانو دکلونو کاردئ اواستاد زياتره دحساب ترتصفيې دمخه په حق ورسيږي اومړسي.

افغانان په هرهغه کارچي خطرورسره مل وي، لکه دباروتو جوړول اونور، ډېرېې احتياطه اودخان په غم کې نه دي. په نتيجه کې يې کله کله چاودنې پېښېږي سي ، ډېرکسان پکښې ووژل سي اونوريې مياشت ودوې په کارکې وارخطاوي. کله خولاعين بې احتياطي ترهغه وخته دوام وموومي چې بله حادثه پېښه سي او د يو څه مودې له پاره دوی له احتياطه کار اخيستلو تـــه اړکړي .



دکابل ورکشاپونوپه باغچه کي عسکر دپیرې او ډوډۍ خوړلوپه حال کي

( دمولف رسامي )

یووخت د پارې (سیمابو ) چاودني خوراډېرې حادثې پېښولې. خوکله چې ماورته دتیاریومعمولي لارې چارې ونیوولې، بیاکومه حادثه پېښه سوې نه ده . خیني حوادث دډکو سرپوښونودبېباکه پورته کولو له امله پېښېدل . یووخت دیوه فورمن (استاد ) دبې احتیاطی له امله شپېته زره پونډه وچاودل. یوځوېې دکتلو له پاره راواخیستل اوبیرته یې بکس ته ورغورځول. په دې پېښه کې څلورتنه مړه اویوځونوردتل له پاره معیوب سول . یوځوېې په سترګوړانده سول. سرپوښونه یې په سترګو ننوتل اونورټپي سوی نه و. دباروتو په یوه چاودنه کې شل تنه مړه اویوزیات شمېرټپیان سول . زیاتره یې له دې امله ژوبل سول ، چې دچاودني له امله پرخلکو باندي دخوني دروند چت راونړېدی اوخلک ترلاندي سول. دبې احتیاطی له امله نورحوادث هم پېښ سول ، چې هره یوه یې دیوه یادوو تنو دمرګ یاژوبلي سبب سوې ده . په پای کې امیرماته امروکړ، چې دمقرراتویوليست ورته جوړکړم اودخطردکمولو اوچاودنو دمخنیوی له پاره بشپړې ضروري لارښووني ورکړم . بندیزونه ولګېدل، ضروري کارونه سرته ورسېدل اومقررات عملي سول . له هغه وروسته حوادث هم ورسره ودرېدل.

دکاریګرانو مزدزیاتره دومره دئ چې له لوږې په راوګرزي. په داسي حال کې چې خینو کسانو بیا شخصا امیرته دخینو وړوکارونو په سرته رسولو سره خپل مزددومره زیات کړی دئ ، چې ورسره نه ښایي . ورکشاپونه تقریبا اتلس کاله وړاندي پیل سوی دي اودزیاترو کاریګرانو مزدچې دلومړي وارمقررېدلو پروخت هلکان وو ، لاپرهماغه اولني حال باته دئ. په داسي حال کې چې دوی په کارکې دتجربې موندلو له بابته حکومت ته ډېرسترارزښت لري. دخوراکي موادو دبیوحیرانوونکي جګوالي دوی ته لازیاتي ستونزي پېښي کړي دي .وچه ډوډۍ چې ددوی اصلي خوراك دئ، اوس ترپخوا څلورچنده ګرانه سوې ده . یوشمېر کسان سته، چې په خینو ټاکلو ماشینونو کې دشاپونو له هماغه پیل راهیسي کارکوي اوپه میاشت کې اته روپۍ( پنځه شلنګه وڅلورپنسه ) جوړوي . داخلك مېرمني اوکورنی لري . کله خوېې لانورښځینه خپلوان هم دغاړې وي . داچې دوی څه راز ژوندکوي ، پخپله یوه معماده . خوداخلك پرهلهوکو باندي لکه څرنګه چې ښایي، وازګه نه لري. نورکاریګر زیاتره هلکان دي چې نسویو کارونو

ته گومارل سوي دي اودمیاشتي یې په لسو روپیو (شپږشلینګه اواته پنسه ) کارپیل کړی دئ .زیاتره ماشین کاران اولاسي کاریګردمیاشتي شل دېرش روپی اخلي.استادان دمیاشتي له شلو څخه ترسلوروپیو پوري ګټي (دیارلس شلنګه وځلورپنسه ـ شپږشپېته شلنګه واته پنسه ).

له حکومتي ورکشاپونوپرته په هیوادکي یوشمېرمحدود کسبونه هم سته . دامحدود کسبونه چي په کوچني سطحه چلیږي، مسګري، حلبي سازي ، آهنګري، دسرواوسپینو زرګري ،ترکاني، دڅرمني کاریګران اونوردي. دهیواددسوداګری زیاته برخه وچه میوه ده، چي هندوستان اوروسیې ته صادرېږي . تازه انګورهم هندوستان ته لېږل کیږي ، په وړیو کي یې پیچي اودلرګیو په کوچنیو بکسوکي اچوي . کابل اودهغه شاوخوا سیمي په پرېمانه اندازه ډېرښه انګورلري چي دموسم پروخت یې اته پونډه تقریبا په یوه پنس پلورل کیږي . ډېرښه انګوریې یوپونډدپنس څلورمه برخه بیه لري . زه له دغوانګورو څخه شراب جوړوم . دوه دري ډوله سره ګډوم، چي دري کاله وروسته له ټولو هغوشرابو سره یوشان وي، چي په هندوستان کي عموما پلورل کیږي. څرنګه چي دادخالصو انګورجوس(شربت ) دي، ښایي ترزیاترو نوروښه وي. زردالوهم په زیاته اندازه ستله . زردالواوانګوردصادراتي وچي مېوې ستره برخه جوړوي. غلې داني هم صادرېږي خوپه زیاته اندازه نه. څرنګه چي وړل یې ارزانه دي څکه نودزیاتو موادو لوی تجارت خني جوړېدلای سي. په کابل کي زیاتره مېوې اوترکاری کیږي و دټولو هغومېوې له پاره چي دحاره سیمي لمرنه غواړي ، دکابل آب وهوا ورته په څانګړې توګه مساعده ده. دجلال آباد اوکندهار په سیموکي تودوخه دومره ده چي دحاره سیمي زیاتره مېوې پکښې شنې کېدلای سي . په جلال آباد کي په زیاته اندازه ګني تولیدیږي.

ورېښیم هم په پوره اندازه تولیدیږي . اوپه هیوادکي دورېښمودچنجي دروزني له پاره خورازیات امکانات سته . همدا اوس ورېښم په دریو سیمو کي تولیدیږي : بخارا ،هرات اوکوهستان . په کوهستان کي دنورو سیمو په نسبت په لږاندازه دي. غالی هم جوړیږي . دهرات اوترکستان دا، ایراني غالیو ته ورته اودکندهاراوهزاره ور دا، کراستي(نیمخی ) دي. دهیواد په بېلابېلو سیمو

كي په لاس باندي ډول ډول ټوکران اوپه غزني کي زيات شمېرپوستينونه دپسوله پوستکو څخه جوړېږي . دغه موادزياتره دهيواد دخپلو اړتياوو دپوره کولو له پاره توليديږي اوصادريږي نه. په بېلابېلو سيموکي زيات شمېر اوښان، اسونه ، غوايي اوپسونه روزل کيږي خوډېرلږيې صادريږي . له تېروڅوکلونو راهيسي اسونوته له هيواده بهردخرڅلاوله پاره دايستلواجازه ځکه نسته چي ويل کيږي، هغوی دهندوستان دلښکروله پاره رانيول کيدل. دترکستان ( ۱ ) سيمه داسونو او مواشيودروزلو له پاره دافغانستان ډېرښه سيمه ده . په دغه سيمه کي خورا زيات سمسورڅړځايونه سته اوله ترکستانيانو څخه چي څوك دهغوی دسيمي دکرني اودمنرالونو دشمتنيو په باب خبري واوري ، نوپه زړه کي بې Eldorado (۲) ور وګرزي، دجلال آباد له شاوخوا څخه دسيند داوبو په واسطه لږاندازه الوارونه(چارتراش لرګي ) هندوستان ته دخرڅلاو له پاره لېږل کيږي، خوداانداره ډېره کمه ده ، ځکه دافغانستان دزياترو سيمو غرونه اوشاګی ښخي لوڅي دي اوخال خال دلته وهلته محدودي درختي پکښې وي.

په هيواد کي ورياوي(بارانونه ) لږکيږي خوپه ژمي کي دواوروتوپانونه اکثره وي . په پسرلي اودوبي کي دکښتونو دخړوبولو له پاره داړتياوړ اوبه په غرونو کي دواورو دويلېدلو له لاري پوره کيږي . دااوبه ټاکلو سيموته دويالو له لاري رسيږي . دغه کانالونه هرکال په پسرلي کي پاکيږي . دويالې دپاکولوپه ټاکلې ورځ ټول هغه کسان چي له دغواوبو څخه کاراخلي ، دډول اوسورنا (يادې ته ورته وسايلو ) په واسطه سره راغونډيږي . دوی هره ورځ په نوبت سره کارکوي. له ويالې څخه ښکاره وابښه راټولوي . ويالہ ژوروي اوختہه يې ترپايه ځني باسي(۳ )کله کله دکروندګروترمنځ په فرعي ويالو کي داوبودلومړي واراستعمال پرسردعوي(شخړي ) پېښيږي . ځکه کوچنيوويالو ته زياتره هومره اوبه نه رسيږي ، چي دکروندګرو له پاره دی کافي وي . څرګنده ده چي جګړه لومړی پردې خبره پيل سي ، چي څوك بايد اول واراوبه ولګوي . له جګړه کوونکو سره عموما اورده يومان(ببلونه ) وي اوپه جګړه کي کار ورڅخه اخلي ، چي کله کله سړي هم پکښې ووژل سي . ديامه وراى ډېردروند دي اوژور ټپونه ځني پېښيږي.جګړې کله کله دې اندازې ته ورسيږي چي ځني کسان دنورو درمندونه

په غچ اخیستلو کي وسوځي اوکه پرد غه کارځوك شاهدي ورکړي، نوبیادواړه خواوي محمکې ته عرض کوي .

دغنمو داوړو کولو ژرندي دوبالو پرتاکلو مناسبو ځایونو باندي جوړي سوي وي اوپه اوبوباندي چلیږي ، چي دکارثمره یې ډېرلږ اودهغي قوې ځلورمه برخه وي، چي ژرندي ته ورکول کیږي . ژرندي یې ډېري پخوانۍ او زوړمادل دي. یوه ډبره (پل ) پرپله باندي پرته وي اوغنم دهغه سوري له لاري ورسیږي ، چي دپاسنۍ ډبري په منځ کي جوړسوی وي. لومړی واراوړه ډېرغاښچیچن (زیږه ) وي اوکه څوك غواړي ښه یې میده کړي ، باید دوه دري واره یې تر ژرندي وباسي .

په افغانستان کي دمالونو دلېږدونو (انتقال ) چټکوو سایلو ته ډېره زیاته اړتیاسته . په اوسني وخت کي دحیواناتو پرشادبارونو انتقال دټولو شیانو دوړولو راوړلو یوازنۍ وسیله ده . اوځرنګه چي دیوه لنډ واټن انتقال له پاره ډېرزیات وخت لګیږي ، ځکه نودکراهي سیستم ګران تماميږي اودسلو میلو واټن وهل ځواونۍ نیسي . ددغه رازکاربیه دهمدومره واټن له پاره پرسل سېره وزن باندي اتلس شلنګه ده . دابیه په داسي یوه هیواد کي ډېره لوړه ده، چي هرڅه پکښې ارزانه دي. دهرشي وزن اواندازه داسانوډااوښانو دبارووړلو په ظرفیت پوري محدوده ده .

کوچیان زیاتره له یوه ځایه بل ځای ته دمالونود انتقال دنده سرته رسوي . دایوه غښتلې اوسخت سرې قبیله ده اوهغو Gipsies ته ورته ده ، چي کورنه لري . دوی دپنځو سویاسلوځارویو له یوه کاروان سره خوځیږي ، چي اوښان ، اسونه، خره اوپسونه پکښې وي . دوریو کوچنۍ رمې هم وسره وي . له کاروان سره هرچیرته چي ځي، ښځي اوماشومان ، دکورلوښي اویولږشمېرچرګوړي چي پرخروباندي یې بارکړي وي ، ملګري وي. دچرګوړو پښې یې ورتړلي وي چي ونه تښتي . کوچني ماشومان که ولري ، هغوی یې هم په یوه کجاوه کي دچرګوروځنګ ته بارکړي وي. دوی اکثره دپسونو غټې رمې لري اوهغه کوچني وري چي سفرنسي کولای ، دهلکانو اونجونو په غېږکي انتقالیږي . کله چي پرهرځای باندي واړوي ، زیږې کوډلي دروي ، چي له لرګیو څخه جوړي سوي

اودپاسه يې بوريا وي اووابنه وي. (۴)خوكلمه كلمه بياد استوګنې ځاى دونو اوګاروپه منځ كې وي . دوى ښكلي خلك دي آزاد اودخوندمزلونه وهي. دوى په آزاده هواكي ژوند كوي اوپرله پسې مشق وتمرين هم ورسره كوي . بې له شكه په دغه راز ژوند كې ناروغ ماشومان نسي پايېدلاى. همدا سبب دئ چې ژوندي پاته سوى كسان دېرغښتلي اوپياوړي دي. يوه ورځ چې ماپه يوه دره كې ساختماني كاركاوه ، دغه راز كاروان مي څنګ ته تېرسو. يوچااحوال راووړ چې كوم تونده باد يوكوچنى اوښ اخيستى اودكاروان له يوې پيغلې نجلۍ سره يې جنګولى (ټكركړى) دئ . نجلۍ يې ښه دېره ليري غورځولې اوهورې يې په دېرشدت سره له تېروتېروسره ټكركړې ده. ماورمنډه كړه اوفكرمې كاوه چې نجلۍ به مړه سوې وي . خونجلۍ له يوڅوشېبو وروسته اوچته راوغورځېده ، جامې يې له دوړو ټك وهلې ( وڅنډلې ) اوبيرته بې پروا رهي سوه . دكوچيانو ښځي مخونه نه پټوي اوكه كوم انګريز يې مخې ته تېرسي، خپل مخونه په پوړني (څادر ) پټوي . ددرمندونو اخيستلو پروخت، كله چې دكښتوسيمو تودوخه د رمودڅارويو له پاره دېره جګه وي اوله دې امله نوركارونه نه وي، كوچيان له يوه ځايه بل ځاى ته دلوګرو (لوكوونكو ) په توګه ځي . كله چې ديوې سيمي كښتونه لوسول ، بيابلې ته ځي . دلووخت په بېلا بېلو سيموكي دمختلفو ارتفاعاتو له امله توپيرسره لري . هغه نارينه چې داوښانو څارنه كوي(چوپان ـ م، هوتك ) دشپې له خواخپل اوښان په يوه داسي حلقه كي سره تړي ، چې پزې يې ګويا دحلقې منځنى برخي ته متوجه وي . سړى( چوپان ) دحلقې په منځ كې داوښانو ترغاړو لاندي څملي اودهغوپه منځ كي بې خاره Unmolested بيديږي .

چاى دهندوستان له لاري وارديږي. كه څېره دعاموخلكو په باب وي نوهغوى يوازي شين چينايي چاى مصرفوي ، چې له چين څخه بمبى ته اوبياپه اورګاډي كي پېښورته اووروسته دكابل سوداګروته رسيږي. دكندهاراوهرات سوداګريې دكوټې له لاري ترلاسه كوي. له پېښوره كابل اوله كوټې څخه كندهارته پراوښانو باندي وړل كيږي . هركال يوه زياته اندازه چاى وارديږي . غريب خلك يوازي غرنى هندوستانى چاى كاروي . په نوروېې ، چې يوپونډ يې

له دریوشلنګو څخه ترپنځوشلنګو پوري دئ ، وس نه رسیږي . ما یو وخت هڅه وکړه په کابل کي دهندوستان شین چای رواج کړم . خوخوندیې چاخوښ نه کړ. دوی په نظردهندوستانیو چایو دزیاتي کړني سبب همدا (خوند ) دئ .

نورواردانې موادنخي مالونه، ټوکران ، وریښم اوبخمل دي. وروستي دوه مواد (وریښم اوبخمل ) په زیاته پیمانه دښځوله خواکاریږي . یووخت سړیواوهلکانو هم وریښمني جامې اغوستلې . ددرباراوسنی فیشني جامې دتورټوکره وي، ځکه نوپه نارینه وو کي دوریښمنو جامو تقاضالږسوې ده . داسانو زینونه اودڅرمنو نورمالونه ، مستعملي جامې ، بوره اودکوردارتیاوړ نورموادله هندوستان څخه دسوداګروپرلاس راوړل کیږي. خوددغو موادو تجارت دېرکم دئ .

په کابل کي دغلودانو، مایعاتو اونوروموادو له پاره مقیاسونه نسته . ټول شیان په وزن پلورل کیږي . وزنونه یې په هندوستان کي له مروجه وزنونو سره ترپیرلري اوله نخوده یې جوړکړي دي . نخودهغه مقدارته ویل کیږي چي دیوه نخود (چڼه ) په اندازه وي، که څه هم ټول نخود په یوه اندازه برابرنه دي. دهمدانخودوڅلېرویشت دانې یومثقال کیږي . شپږمثقاله له یوه اونس سره برابردي، شپږنوي مثقاله یوپاوکیږي چي ترانګلیسي پونډ لږڅه کم دئ . شپاړس پاوه یوسېراواتیاسېره یوخرواردئ . له حکومتي مغازو پرته په نوروځایو کي دقیق کاڼي (وزنونه ) نه کاریږي. په بازارکي خلك دوزنونو له پاره بېلابېلي ډبري کاروي اوالبته دډبرو اوحقیقي وزنونو ترمنځ توپیرددوکاندارپه ګټه وي.

داوږدوالي له پاره دوه مختلف یاردونه (Yards ) سته چي دوی یې ګزبولي . هغه چي دسروې کوونکو اوبنایانو (ختګرانو ) لخواکاریږي ،نږدې اته ویشت انچه کیږي اودابل ګز، چي ټوکران اونورمواد په اندازه کیږي، دوڅلویښت انچه دئ . کروه یامیل چي مایې تقریبا غیرمعینه اندازه وښووله ، معمولا له یونیم انګریزي میل (Mile ) سره برابره ده.

حکومتي دفترونه دمیرزایانواوکاتبانو لخواکنترولیږي اوهغوی کارپکښې کوي، میرزاته په هیوادکي دتعلیمیافته سړي په سترګه کتل کیږي خودده تعلیم په فارس ادب، یولږ څه زړه عربي اودریاضي په څلورو اصولو کي لاهـــم سم

مسلکي نه وي . که په جمع کي خبره وکسر (اعشاريه ) ته ورسيږي ، نو بيا دی لاس ترزني ورته ناست اوپکښې ورك وي . زه يووخت حاضروم چي ددوی اتلس تنه سره راغونډوواوغوښتل يې يوه داسي محاسبه حل کړي چي صرف ضرب پکښې و. دوی ټولو مختلفي نتيجې ځني راايستلي وې . کوم يوه چي ځواب يې حقيقي ځواب ته يوڅه نزدې و، خانته د لږ څه سم ځواب په خاطرډېرکربډيټ ورکاوه . ميرزايان که څه هم له ټولوطبقو څخه متشکل دي، خودوی پخپل ذات کي يوه طبقه ده اوله نورووګړو څخه ددوی دسخت اونرم چلند له مخي توپيرلري. البته ددغه چلند ترشايې پربل چاسخت زړی اوظالم طبيعت پروت دئ . ميرزايان ددفترونو دڅانګو مشرتوب ته، دخپلي پوهي اوپه کارکي دمهارت له امله نه رسيږي ، بلکه دې مقام ته هغه څوك رسيږي ، چي په چل وچلبازۍ کي ماهروي. ځوان ميرزايان کله ديوې قضيې په جوړولو کي دخپلو مشرانو خبروته غوږنيسي ، چي په هغه کي کلمات اومفاهيم په قصدي توګه داسي راوړل سوي وي ، چي ده ته دقضيې دناکامۍ په صورت کي دتېښتي لار خلاصه پاته وي . دغو اړخونوته زياته پاملرنه کيږي . ميرزايان له ټګمارېوډك دي اوعادي سړی ژربه دام کي اچولای سي . دوی حتی يودبل پرضدياهغو کسانوپرخلاف ، چي زياتې پيسې لري ، هم په دې خاطردسيسې کوي ، چئ په يوه يابله لاربې په خپله کړۍ کي راتاوکړي اوښه يې ونښتبخي.

کوم کارته چي دوی زيات ارزښت ورکوي هغه دادئ ، چي دهغومامورينو پرخلاف خپله خبره مدلله اوپه اثبات ورسوي ، چي اميرته يې رپوټ ورکړی وي اوپه هغه کي يې نوموړی شخص دلکونو سرکاري روپيوپه خوړلو متهم کړی وي ددغسي قضيو له رپوټ ورکولو وروسته دوی ته معمولا داتهام دثبوتولو کارپه غاړه کي ورلوېږي ، چي داکاردتورن شخص دصورت حساب دسپينولو اړتيا رامنځ ته کوي اوپه دې ډول نوبيادوی ترتفتيش لاندي کتابواوکاغذو کي دراغلو اعدادو او ارقاموپروانه ساتي ، بلکي پخپل فکرکي په هغه څه پسې ګرزي چي څه راز داسي واړه اتهامات پيداکړي اوتورن په متهم کړي، چي ردول يې سخت وي. بيانو ددغو کوچنيو اتهاماتوله پاره، چي ښه يې رنګ ورروغن کړي اوپېسولي وي. په کاغذونوکي ګوري . ځرنګه چي هيڅ يومامور د خپلـــو



دکابلي میرزایانو یوه ډله

وظايفو په برخه کي له ډګماري اوچل ول ځخه خلاص نه دئ ، ځکه يې پرضد د دځوناوړو قضيو جوړېدل عموما ګرانه خبره نه ده . تردې وروسته نودوی ارقاموته مراجعه کوي اوزه داسي کسان پېژنم ، چي دهغې اندازې په دوه چنده پيسو خوړلو تورن سوي و ، چي په واقعيت کي ددوی په لاس کي وې. داکارډېرساده دئ ، ځکه دميرزايانو پرشاوخواځومحدود تنه داسي کسان وي ، چي ترشلوپوري يې حساب زده وي . دميرزاکاغذونه د خورا ستر مقدار د تروښولو (لوټولو ) ثبوت ښيي . وروسته داټول کاغذونه اوثبوتونه ! د امير حضور ته وړاندي اوبه پای کي نوتورن شخص اوکورنۍ يې جېل ته اچول کيږي .ټوله پيسې اونورجايدادې ضبطيږي، چي رشتيا سي ، ټول جايداد يې نه ضبط کيږي، ځکه دتفتيش کوونکو ميرزايانو لاسونوته بياپه دې خاطرچي دسزادلغوه کولوياليرترليره دهغې دکمولو له پاره زياروباسي ، ښه پوره اندازه پيسې رسېدلي وي. ميرزايان ترهغوچي پيسې يې ترلاسه کړي نه وي په چابلاورنه کوي . ځکه دوی پوهيږي چي داسي لوبه يې پيل کړې ده چي يابايدسری له منځه پکښې ولاړسي ، يايې له خطره وژغوري اويابه ترځان زيات فعال دښمن ورته په انتظارکي وي . په هرصورت عوض ومعاوضه تل روانه وي . ځکه هيڅ ميرزا پرځپله چوکۍ دزياتي مودې له پاره نه پاته کيږي اوداسي يوه ورځ راځي، چي له دسيسه جوړوونکي سره پخپله دده په شان معامله وسي . ياجېل ته ولويږي اوياووژل سي . په لوړودفترونوکي ديوه ميرزادکارکولو موده معمولا دوه درې کاله وي . ځکه دپيسو موندلو لارې چارې چي ده ځان ته غوره کړي وي، دنوروميرزايانو لخواکشف سي . دځانونو له پاره يې ددغې چوکۍ دترلاسه کولو رخه په زړه کي پيداسي اوبه دې ارمان، چي که يې په ژوندکي دلږوخت له پاره يوواربخت بيدارسي ، بايد يوڅه وکړي . ددعوېه جوړولو کي ميرزايان هغه څه کوي چي نوريې کوي . ناحقه شاهدي ورکوي اوداکارکله دومره پرمخ ولاړسي چي اميرلاپکښې ورك سي اونه پوهيږي ، چي کومه خواحق په جانب ده . ددې له پاره چي حقيقت ځان ته معلوم کړي، امروکړي چي ټولوته دې د قانه ورکولو سزاورکړه سي (٥) . مادوه تنه ميرزايان يوه ورځ په بازارکي وليدل چي دناحقه شاهدۍ په توردخلکو په وړاندي قانه سوي وو اودقانه ورکولو

په لړفشاريې دبرژر اقرار وکړ. دوی د هيواد ترنورو خلکو لړ درد زغملای سي . داخکه چي گرده عمرپرځای ناست اوپرله پسې چلم څکوي. داسي کوم ميرزابه ونه وينې چي څنگ ته يې چلم پروت نه وي.

ميرزايان دپيسوجوړولو بېلابېلي لاري چاري لري ، چي يوه يې دگمرکي محصول اونورو ماليـاتو دراټولولو وظيـفه ده اودوی له دې لاري چي څومره کولای سي ، له خلکو څخه پيسې اخلي . که يوڅوك وغواړي چي دخپلو تاديه سويو پيسوياما لونو رسيد ترلاسه کړي، اوميرزاته پيسې ورنکړي بايد چي ټوله ورځ ورته منتظرپاته سي . کله لاهم څوورځي ورته انتظاروباسي . له هغه چاڅخه ، چي بېوزله وي ، يادوی پوه سي ، چي نورڅه نه په بوديږي ، ديوه پنس معادل لاهم دمنلو وړ ده . که يوڅوك ميرزاته دڅو انو له ورکولو څخه ډډه وکړي بايدچي کابل ته ددې له پاره ددو دريو ورځو له پاره سفرپرځان ومني ، چي هلته تريوې روپۍ لړماليه تحويل کړي اوڅوورځي لاورته انتظارهم وباسي . څکه نوخلكويني ، چي ميرزا ته يې دڅوپيسو په ورکولو کي گټه ده . که دميرزا له لاسه کوم لوړمقام ته شکايت وسي ، دده ددفترټول کسان قسم وقران اخلي چي نوموړي شخص کورټ ورته راغلی نه دئ . دغه راز که له حکومتي خزانې څخه يوچاته پيسې ورکول کيږي ، هم بايد ټاکلو ميرزايانو ته يوڅه ورکولي سي اوداپيسې څکه اخيستل کيږي ، چي ميرزا معمولا دپيسو په شمېرلو کي يوه يازياتي روپۍ باقي (short) وي اوپه دې ډول دخپل باقي توب سرپه پوره کوي.

اميرمرحوم دحکومت په کارکي څومحدودو گومارل سويو ميرزايانو ته تنخواه ورکوله. ده ويل چي هغوی که تنخواه ولري اوکه يې ونلري، له خلکو څخه پيسې اخلي اوڅرنگه چي خلك شکايت نه کوي، نوبايد دميرزايانو غم وخوري . دادچارو اقتصادي اړخ ته دپام اړولو يوه لاره ده . دحکومت مغازه داران ټول ميرزايان دي اوداسي ښکاري چي دپرښه شيان ترې راباسي . څکه ښې جامې اغوندي ، پرښواسونو سپريږي اوپه کورکي ډېري مانديني گاني اوښخي لري. په داسي حال کي چي ددوی کلنی معاش به په ندرت سره ترلسو پونډو زيات وي. په هرصورت څرنگه چي دگودامـــــــداری کوم سيستم نسته

اوهيڅوك نه پوهيږي ، چي په مغازوكي كوم شی سته اوكـــوم شی نسته ، ښكه نوبه داسي يوه وظيفه كي دپيسو غونډولو كاردېره اسانه خبره ده . خوبه دفتركي ددوی دكارموده معمولا ډېره لنډه وي . ښكه ترلاس لاندي كسان يې غالبا په دې خاطردموادو دكمبوت رپوټ كوي، چي هغوی ته دپيسو لېږونډه وررسېدلې وي.

كه يووخت افغان ته څوك پوروركړي ، بيرته تري اخيستل يې گويا له ډېري څخه وينې ايستل دي. كه بيخي زيات فشارېږي ونه لوېږي ، ددواړو خبرو (له افغان څخه پوركښل اوله ډېري څخه وينه ايستل.م.هوتك ) سختي سره يوشانته ده . زياترو ته دپيسو بيرته وركول داسي سخت ښكاري لكه زړونه چي يې ورسره ايستل كيږي . دتاديې په وخت كي مخ دومره بدونيسي اودومره عصبي سي، چي فقط ته واڅوك په زوراوبېرحمۍ سره غلا ترې كوي . اميرمرحوم دپورونو دحصول له پاره يوه لاره راايستلې وه اوهغه داچي دپورروړي كورته به يې عسكروروليږل. كه به په پورروړي څه نه بودېدل ، عسكروبه يې پركور واړول اودكورښه برخه به يې ختني ونيوله . كه به يې په كوركي كوم څه نه درلوده ، سړی به مجبور و هرڅومره ژرچي كولای سي ، ورته برابري يې كړي كنه دتوپك كنداغ ته بايدخان تينگ كړي . په داسي شرايطو كي پوروړي ښكه سمدستي قانع كېدی چي خان دنابللو مېلمنو څخه ورغوري. هغه مېلمانه چي كوربه يې پردابله ورته راااړاوه اوهره ورځ به يې په ډوډۍ اوچلم باندي زياتي روپۍ لگولې . هرڅوك ددغوعسكرو ياماسلانو له لاسه( دوی په همدې نامه ياديږي ) حكومت ته عرض كولای سي. خودا عسكركافي اندازه تجربه لري اوكولای سي دغه شان مراجعې پخپله گټه وڅرخوي.

په كابل كي دهندوانو يوه گالوني سته چي څونسله يې هلته تېركړي دي. دوی هغه شان خلكو ته پيسې په پورروكوي ، لكه په نورو هيوادو كي چي يې يهودوركوي.دوی دغه راز دزرو اوقيمتي ډبروتقريبا ټول كاروباربه لاس كي لري اوپه ورروستيو كلونو كي اكثره كورنی له دې امله چي دژوندداړتيا وو دقيمتونو جگېدوله امله له لوړي څخه خانونه وژغوري ، مجبورسوي دي خپل زيورات وپلوري . هندوكه پريوه شي باندي كومه بيه كښېښنوله، هغه بايد دنوموړي شي

دارزښت له دوه پردرې برخي څخه هيڅکله زياته ونه ګڼل سي . خلك چي کله يوپربل باندي کوم شی خرڅوي ، په خپلو منځوکي وايي، چي هندوانوپه دومره پيسو غوښت. معنا داچي ددوی له خواايښوول سوې بيه يومناسب قيمت دئ . ځيني هندوان دخزانې په دفتروکي مقرر سوي دي اوترميرزايانو هم زيات معتمد خلك اوهم ښه محاسبين دي.

دهيوادپيسي دکابل په هغوضرابخانو کي وهل کيږي چي په عصري ماشينونو سمبال اوپه ورکشاپونو کي موقعيت لري. اوکله چي زياتو پيسوته په عاجله توګه اړتياولېدله سي، شپه وورځ کارکوي . اميرمرحوم دپيسوزيات شوقي و. کله چي يې ليدل ، عوايد کال په کال لږيږي ، نودداسي وسايلو په لټه کي سو چي پيسې په زياتي ګڼای سي . هغه و، چي يوه ورځ له دې لاري دپيسو دزياتولو نظريه ورپيداسوه . دکابل روپۍ دشکل له مخي يوه غيرمنظمه سکه وه اوپه لاس وهل کېدله . خوله سوچه سپينوزرو څخه جوړه سوې وه . اميرمجبورسو داټولي روپۍ راغونډي کړي اوترراغونډلووروسته يې ويلي کړي . ترويلي کولووروسته يې په زياته فيصدي باندي مس ورسره ګډکړل. دغه مخلوط سپين زرېې په نوې ضرابخانه کي له سره بياضرب کړله اوداسي روپۍ يې ځني جوړي کړې چي څنډي يې ښوی او په ښکلي توګه حك سوي دي. په دې ډول اميردسوچه سپينوزرودپخوانيو روپيودويلولو اوبياسکه وهلو دمخه ورسره دمسودګډولو له لاري خورازياته ګټه وکړه اوکله چي دده دخپل هيواد پخواني روپۍ خلاصي سوې بيا يې ايراني روپۍ راغونډي کړې، مس يې ورسره ګډکړل . له بده مرغه دايران ديوشاه په وخت کي عين همداکارسوی و اوپه افغاني روپيوکي دمسوبرخه دنوروهيوادو دسکه وهلو ترمعمول ستنډرډ دوه چنده لاهم زياته سوه. ځکه نواميرحکم وکړچي هغه ايراني روپۍ دي راټولي سي چي دنوروشاهانو په وخت کي ضرب سوي وي. دکابل په خزانه کي يوه ايراني روپۍ په يوه کابلۍ تبادله کېدله . اميرددې له پاره چي زياته ګټه وکړي ، امريې وکړ، چي دهري ايراني روپۍ په تبادله کي دي ترکابلۍ روپۍ يوPice (۶) لږورکړه سي.شاه ددې خبري په اورېدوسره دده په هيوادکي دټولوافغاني پيسو په وړاندي دعين تخفيف راوستلو حکم وکړ، په روپۍ کي د غيرمعمولي اندازې

مسوزیاتوب اویولړ نور عوامل ددې سبب سول ، چې پــــه هندوستان کې دهغې ارزښت راټیټ سي اوپنځه کابلی روپۍ له څلوروهندوستانی روپیو سره تبادله سي. اوس یوه هندی روپۍ په دوو کابلیو روپیو تبادله کیږي.

## دځورلسم څپرکي لمنليکونه

( ۱ ) له ترکستان څخه دمولف مراددافغانستان شمالي سيمي دي چي پخواپه همدغه نامه يادېدلي(پښتوژباړونکی )

( ۲ ) دغي انگليسي کلمي ته يې په قاموسونوکي په(ودانه سيمه ، له زروړکه سيمه، شتمن هيواد ) ترجمه کېنلي ده (پښتوژباړونکی)

(۳ ) دي ډله ييز کارته په اولسي اصطلاح (اشر ) وايي(پښتوژباړونکی )

(۴ ) دارازکوډلي په کوچيانو کي رواج نه دي ـ کوچيان توري کږدی لري(پښتوژباړونکی )

(۵ ) « فانه» تورن شخص ته د شکنجي ورکولويو راز سزا ده . دلاس دگوتوپه پيوستونو کي به يي لرگي ورايښوول او د لرگيو پر سرو باندي به يي سخت فشار راووست . دفاني په سزا کي دزياترو متهمينو دلاسو گوتي ماتېدلي او پسي وچېدلي . (پښتوژباړونکی)

( ۶ ) دپيسو ډېر کوچنی واحد ، چي غالبا به دپول معادل وي ( م.و )

# پنځلسم څپرکی

## د هیواد جیولوجیکي حالات

دکابل وادي یووخت اورغورځوونکي خوله وه ـ کابل یووخت یوسترجهیل و ـ دسروزرو، مسو، سرپو ـ دډبروسکرواونوروکانونو رګونه ـ سیندونه اوپه هغوکي سره رزـ په جنجال کي دلوېدوله وهمه دحال نه ویلودود ـ دترکستان کانونه ـ دکابل ورکشاپوله پاره دسونګ موادو مساله ـ دداخلي زېرمي ختمېدل ـ دکابل په وادي کي دډبروسکاره .

---

لیري نه ده چي کابل وادي دي دیوه لرغوني اورغورځوونکي غره خوله وي، ځکه دنورو دلایلوترڅنګ دکابل شاوخواغرونو کي دېرداسي ځایونه سته ، چي په هغوکي دلاوا موادو (Lava Cones) له مخي دیوه ولکانیك عمل نخښي لیدل کیږي. دغه رازپه زیاترو ځایوکي دسترو کانګریټي بلاکونو په بڼه دکوچنیوډبرواولاوا دګډېدو بسترونه سته ، چي سمدلاسه دکانګرېټي بلاکونه خیال پرکیدلای سي. یوځودغه شان بسترونه خوځوسوه متره اوږدوالی اوپسورلړي اوزیاتره دغرو په بېخوکي پراته وي ، چي دیوې داسي ستري کلایامانۍ د تاداوونو په شان معلومیږي چي اصلي ساختمان یې نړېدلی اوله منځه تللی وي اودپېړیو پېړیو اوربښتونو یې شاوخواخاوره پریولې اویوازي یې دکانګریټي بسترونو نښاني پاته سوې دي . داسي ښکاري چي ویلې سوې لاوادغرونو بېخوته رابهېدلې اوله ځان سره یې کوچنۍ ډبري اخیستي اودمځکي سطحي ته له رسېدو سره سم یې ټینګ غوړېدلې اوپرمځکه باندي سره سوې اوکلکي ګاري ځني جوړي سوي دي.

دکابل دشاوخوا مځکي قشرونه په ډېرګډوډحالت کي دي دځینو شاوخواغرونه اوشاګیو قشرونه جګ جګ ولاړدي . داسي ښکاري چي دهواري سیمي خاوره دي یې یومخي ایسته سوې اوپای ته غورځول سوي وي اوبې له شکه همداسي سوې ده .

زلزلې ډېري عامي کیږي اوډېري سختي اوزیات شمېرزلزلې معمولا په اکتوبراو نومبرکي کیږي. یوه زلزله چي زه پوهېږم یې شاهدوم اوترټولو سخته وه

، دډسمبرپه پای کي وسوه . څرنګه چي دکابل کوررونو دېوالونه له اوموخښتو څخه جوړاوباموونه يې د بردرانه دي، زياتره کورونه دزلزلې

ې وروسته

دبادسخت توپان راوالووت . د ونو غټې ښاخونه يې مات کړل اونږدې وچي کړکي له ببخه وکاړي . دغه باد ديوه ساعت ياڅه زياتي مودې له پاره چلېدی چي ورسره سم زلزله هم شروع سوه . تقريبا دشپې لس بجې وې، چي زلزله پيل سوه . زه دمېلمستون يوې کړکۍ ته ولاړوم ، چي له نبکه مرغه دېره ټينګه جوړه سوې وه . کله چي دکړکيوښوربدل اوزنګېدل شروع سول ، مافکرکاوه چي دباد له امله دي .دخوني نورکسانوته مي وويل چي که بادپه همداسي شدت سره روان وي، دبرژربه کړکۍ له ببخه وباسي . په همدې خبروکي وم ، چي دخوني غولی ( فرش ) له يوه سره وبل ته په زنګېدوسو. مادخوني دروازې ته يوڅه چوله ورکړه اوبکښې ودرېدم . ترهغوپوري هورې ولاړوم ، چي مصيبت ختم سو. دزلزلې په جريان کي د خوني دروازه ترنوروځايومحفوظه وي اوکه چت راشبوه سي په دغه ځای دخوندي پاته کېدوچانس سته. ددغي زلزلې دوخت داوردوالي به باب قضاوت مشکل دئ . څکه سړی زياتره دراتلونکواحتمالاتو په سوچ کي وي . خوداسي ښکارېده چي څلوربنځه دقيقې روانه وه اوبالاخره ودرېده. وروسته ماوليده چي دخوني په دېوالونو کي ، سره له دې چي بنځه شپږفوټه پلن دی ، بياهم غټ درزونه جوړسوي دي . په دابله ورځ مي واورېدل چي زيات کورونه يومخيزه چپه سوي اواوسېدونکي يې مړه سوي وو.

اميرمرحوم چي په دغه وخت کي دنقرس له امله ناروغ اوپه درباركي ناست و. کله چي زلزله شروع سوه، له ده سره ناستو کسانو ټولوبهرته منډه کړه اودی يې، چي د ښور نه و، هورې پرېښوو. اميرله زلزلو څخه دېرېه وېره کي واوپه دغه وخت کي څوك دده احساس ، چي ځان يې يوازي ومومند ، اټكلولای سي . دی دډېروخت له پاره پرې نښوول سو. څکه درې څلورغلام بچه ګانو دتکانونوله لړځه ورروکېدو سره سم ورمنډه کړه اودی يې باغچې ته ...راويويست . تکانونو اميردومره وارخطاکړی وچي له خطره څخه دبچ کېدو په شکرانه کي يې په دابله ورځ دددريو څلوروسوتنو بنديانو دخوشي کولو امروکړ. زما هندوستاني نوکران

په دغه وخت کې پخپلو خونو کې بيده وو اوپه تکانونو باندې له خوبه راوغورځېدل.په علت يې نه پوهېدل ځکه دالومړی وارو چې زلزله يې ليدله . بهرته په منډوسول ، په داسي حال کې، چې نازکې جامې يې په تن وې، په واوروکي پرګونډوسول اوپه لوړآواز يې له دغه مصيبت څخه دژغورني له پاره دوعاوې کولې . په دابله ورځ ټول دتبي له امله پراته وو داځکه چې بدنونه يې لوڅ اوعصبي شاکونه يې خوړلې وو.

کابل ته څرمه په کوهستان کي دغه رازسختې زلزلې کله کله کيږي اوداسونو اخوړونه راپېښه کوي . دغه اخوړونه چې له ډبرو او خټوڅخه جوړسوي وي اوخني يې صرف درې فوټه جګ اوپه کافي اندازه پلن وي . دزلزلې دتکانونو شدت ددغو اخوړونو له چپه کېدلوڅخه تصورکېدلای سي . په ۱۸۹۹ کال فال کتونکو پېشګويي کړې وه چي ددغه کال په هغه مياشت کي به ، چې له نومبرسره برابره دي ، زلزلې وسي . تر ټولوسخته زلزله به په يوه ټاکلې ورځ وي چي دوی مشخصه کړې وه . ددې زلزلې شدت به دومره زيات وي چې ټول کابل په وران کړي . دحيرانتيا خبره داده چي دهمدغې مياشتې په پای کي ددوو اوونو له پاره سرپرسرزلزلې کېدلې اوداسي ورځ به نه وه چې لږترلږه يوتکان دې پېښ نسي .په ځينوورځو کي خوبه لازياتې وې اوشپه وورځ به کېدلې . په هرصورت زلزلې دکال په پای کي معمول دي خوپرله پسې دوام يې دپراستشنايي وي اودفال کتونکو پېشګويي پرخلکو زياته اغېزه کړې وه . کوموکسانو چې خيمې درلودې دښارترډېرالو دباندې يې ووهلې اوپکښې اوسېدل . ځکه دوی بشپړباوردرلود چي دپېشګويي يوه برخه رشتيا سوه، نوره برخه يې هم رشتيا کيږي . په داسي کوروونو کي ژوندکول ورته حماقت ايسېدی چي په يوه ټاکلې ورځ يې چپه کېدل اوددوی ترلاندې کېدل اټکل سوي و . په هرصورت امير،چي له خپلو فال کتونکو سره يې مشوره کړې وه، امروکړهرهغه څوك به بندي کړي، که دده دحکم ترورځي وروسته ترښاربهرپه خېموکي اوسېده . په دې ډول يې ټول خلك مجبورکړل چي خپلو کورونوته په زورسره ستانه سي.

خودامیرله ډاډ سره سره زياتروخلکودکابل دورانېدوټاکلې ورځ په ډېره اوواهمه کي تېره کړه اوپرکراره نه وو ، ځکه هماغه ورځ په يوه سترتکان سره پيل سوه او

ټول ښارپې ولړزاوه . په هرصورت نورتکانونه پېښ نه سول اوپه څومیاشتو کې داورروستی تکان و.

ځینې زلزلې چې هروخت کیږي ، یوتکانیزي وي خونوري یې بیالړزانده اوښورونکي وي. داورروستی ډول یې یودوه واري دشپې له خواسوي ده . په دغه شپه ټول بیده وو، زه په کټ کې غزېدلی وم ، لابیده سوی نه وم اوراته څرګنده سوه چې ددې ډول زلزلوړغ دمخه تردې چې کورته دې راورسېږي اوریې ښوروي ، اوربدل کېدی چې دجنوب لویدیځ څخه دشمال ختیځ پرلورروان وه . داډول زلزلې یوې ډېرې درنې بګۍ ته ورته دي چې په سرعت سره ترکورلاندي تېره سي، کوروښوروي اوترهغو یې ږغ اوربدل کیږي ترڅوېې فاصله ډېرېږي اونوریې نوروږغ ورك سي.

ترمځکي لاندي داسي نخښې نښانې سته اوڅرګندوي چې کابل په یووخت کي ډېرسترجهیل و. دغه وادي یوواري نه بلکي څوواري په اوبوکي ډوبه سوې ده . خلکو ته هم داکیسه نسل پرنسل رارسېدلې ده ، چې دغه سیمه چې اوس کابل دئ ، یووخت یوډېرسترجهیل وااومحیط یې څومیله پراخ و. له احتماله لیري نه ده چې په دغه برخه کي چې سیند دکابل دشاوخوا غرونو دیوه تنګي له منځه مخ پرهندوستان بهېږي ، یووخت مځکه ښویېدلې اودسیند مخه یې بنده کړې وي، دابوسطح دې یې دومره لوړه کړې وي ، چې شاوخواټوله سیمه دې پکښې ډوبه سوې وي . دغه راز دې داوبو دسطحي جګېدلو دومره دوام کړی وي چې دمځکي دښویېدو له امله په منځ ته راغلي ډم کي نوري دخایېدلو نه وي . وروسته دې یې موانع ټول ورسره وړي ، وادي دې له اوبو تشه سوې، اوترهغودي وچه پاته سوې وي ، چې دمځکي بل وارښویېدلو دروړ دپرمختیا مخه بیانیولې وي . له هغو علایمو څخه چې دمځکي ترقشرلاندي دحفریاتو له امله موندل سوي دي، زه دې نتیجې ته رسېدلی یم، چې دامځکه څوواره ډوبه سوې ده اوبېلابېلو یوپربل اېښوول سویو برخوضخامت ښیي ، چې سېلابونه دزمانې په مختلفوپړاوونوکي کښېښستلي دي. دکابل دشاوخواغرونو په څنډوکي هم داسي نښانې سته چې ښیي ، یووخت دې دغه سخري اوګاري په اوبوپربولل سوي وي . په ځینو ځایوکي ددغوګارواوګړنګونوپه لاندنۍ برخه کي

داوبوجریان ښوی سوري جوړکړي دي . داګړنګونه (لاښونه) دساحل لاښوته ورته دي اوځرنګه چي په ډېروجګوسطحوکي لاهم ځني دغه راز سوري لیدل کیږي، سړی دې فرضیې ته رهنمایي کوي ، چي دکابل ناوه یووخت ډېره زیاته پراخه وه اوترمځکي لاندي زلزلو دي ورو ورو دمځکي ځیني برخي ، چي پخواتراوبو لاندي وې ، راپورته کړي وي. د رودمسیرته ځرمه داسمایي غره پرګاروباندي دسیندله سطحي څخه تقریبا پنځوس متره لوړداوبو نښانې سته . دابه غالبا داوبو دځینو جریانونو ارتفاع وي.

له کابله څخه دېرش میله لیري ، دخوردکابل په غرونو کي دډېرو د سکرونوی نرې رګونه موندل سوي دي. دارګونه یوپربل پراته دي اوپنډوالی یې تو پیرلري . په ځینو ځایوکي دانچ له شپاړسمې برخي څخه بیاتراتو، نهوانچوپوري رسیږي . دارګونه دخاورودنریو ورغونو په واسطه یوله بله بېل سوي دي . دسکروپنډه برخه ترنری کښته پرته ده . په ځینو ځایوکي دمځکي دقشرپه درې انچه ضخامت کي دکاربوني موادو تقریبا دوولس بېلابېل ډولونه لیدل کیږي اودانبیي، چي دلته په بېلابېلو لنډوپړاوو کي تراوبولاندي کېدو څټمک تداوم پېښ سوی دئ .

په افغانستان کي دمځکي قشرډېرزیات سره متفاوت دئ اوپه بې شمېره ځایوکي دکاني ډېرورګونه سته ، چي دفلزبرخه یې غني ده . دارګونه دغروپه بغلوکي راپیداسوي دي . دمسو، سرپو، سپینوزرو، جستو، زربرقو، نیکلو اونوروم‌عدني ډېرو کانونه په زیاته اندازه سته . سره زردیوشمېرشمالي سیندونو په ریګوکي پیداکیږي اوویل کیږي ، چي اکسوس سیندهم له دې بابته شتمن دئ . له کندهاره دوه میله لیري دسروزرو ځلانده ډبري (Quartz) موندل سوي وې . خوهغه ډبري ایستل سوي دي . دډبرو په منځ کي دسرو زرو دهغونمونو له مخي چي ساتل سوي دي ، داسي ښکاري چي دایو ډېرغني کان و. ویل کیږي چي پخوانیو امیرانو ددغه کان ډېره ستره برخه وړې وه (۱) . دمسوډبري چي ماته یې دازمویلوله پاره رالېږلي وې، دمسوله لحاظه ډېري غني وې اوپه سلوکي دېرش، څلوېښت مس لرونکي نمونې خویې ډېري وې. ځینو یې لاپه سل کي شپېته مس درلودل او د معدني ډېرو په ځینو رګـونوکي محلي مس هم

موجودو. دسرپوډبري په سلوکي تراويازيات سرپ لري اوله دې څخه دګوليو جوړولو له پاره داړتياوړسرپ لاس ته راځي . دسرپوخينوډبروچي ماته يې دازمويلوله پاره رالېږلي وې، په سلوکي لس سپين زردرلودل. دشپږدروازې په غروکي دمسورګونه چي دلته وهلته دغروله اوړدو سره سم غزېدلي دي ، پيداکيږي . خوداډېرنري رګونه دي اودنوروخايودرګونو په پرتله يې فلز هم لږدي. خوفيصدي يې دومره ده چي په کارکولوارزي . دکابل په شاوخواکي غرونوکي، په هرصورت ، دمسودومره بډاى رګونه سته ، چي دزياتوکلونو له پاره دي داروپااړتيا وربوره کړي . اوکه دهيواد کانونه په بشپړتوګه وپلټل سي، امکان سته چي دنورو زياتو زېرمو موجوديت دي برملا کړي.

دهيوادخلك په خپلوسيموکي دکاني ډبروموجوديت په باب په خبرورکولو کي ډېرمحتاط دي اوبېريږي ، چي که داشيان وموندل سي ، اميربه يې درااېستلو کارپيل کړي . په دې صورت کي به دشاوخوا سيموخلك وکارکولو ته مجبوراوډېرلږمزد په بدل کي به دسخت اوپرله پسې کارپه نتيجه کي دخپلو کروندو اوغلودانو له کارڅخه ګوښه کړل سي . څکه يې نوکانونه نه خوښيږي . اميربايد دخپل هيواد له منرالي ثروت څخه دګټې اخيستلو په باب فيصله وکړي اوپيوخت به يې بې له شکه وکړي . خودخينو ناڅرګندو دليلو له امله ، اميرغوره ګڼي چي دغه کانونه دي ، چي په ثروت يې پوه هم دئ ، پرخپل حال لاس ناوهلي پاته وي . سره له دې چي ده يوزيات شمېرمعدني کاريګران دټول هيواد دکانونو پلټنلواو د ټولو ډبرو او نورو موادو دنمونو راوړلو له پاره ګومارلي دي اوڅرګنده سوې ده ، چي داډبري ارزښتناکي دي اودمخکي له معمولوډبروسره په وزن اورنګ کي توپيرلري . داکاريګرزما ترلاس لاندي وو اوماته امر سوى و، چي لاس ته راغلي نمونې وازمويم او رپوټ ورکړم، چي کوم کوم فلزونه پکښې سته . له دې څخه ماته داسي فکرراولېدى، چي اميربالاخره په کانونو کي دکارکولو اراده لري . خوترهغه وخته چي زه له هيواده راوتم ، په دې برخه کي يې هيڅ ونه ويل اوکوم اقدام يې ونه کړ. دمسوله ډبرو څخه په حکومتي چاروکي کاراخيستل کيږي . اميرته ثابته سوې ده ، چي دده خلك ډېرځيرك دي او هرکار چي وربښوول سوى دئ ، هغه يې زده کړى او پـــرمخ يې

ببولی دیٔ . ده زماپرهغه رپوټ بشپړیاوردرلود ، چې پکښې توصیه سوې وه، هروخت چې یې زاړه کارونه بشپړسي ، باید د سرپو ویلولو خلک نورخایوته دکارله پاره ولېږل سي . خوبه دې خبره پوهېدل سخت دي، چې ولې له کانونو څخه داستفادې کارترلاس لاندې نه نیول کیږي. ماته کله کله داسې چورت راولېږي چې امیرښایي دخپلو پیاړو گاونډیو له سرابنتوب څخه ببرېږي، چې که دخپل هیواد پرکانونو کاروکړي، په لوی لاس به دهیواد دثروت عملي شواهد برابرکړي اوهیوادبه له لاسه ورکړي.

دترکستان خلک چې کله دخپلې سیمې دمعدني ثروت په باب رغېږي ، ادعاکوي، چې ددوی سیمه ترنورافغانستان ډېره زیاته بډایه ده . خوددغې سیمې کانې ډېرې ماته دازمویلو له پاره رالېږل سوي نه دي. یوترکستانې مشرله امیرسره دکتنې پروخت له خان سره یوه ډېره راوړې وه اوویل یې ، چې سره زرلري . خوهغه اوسپنه وختله. دامشریوازنی کس نه و چې دغه راز غلطي یې کړې وه . اوسپنه لرونکې ډېرې هغه پخوانې مقوله رښتیاکوي چې وایي «هرځلېدونکی شی ، سره زرنه دي». دترکستان په دره یوسف کې دډېرو دسکرو یو رگ ښکاره سوی دیٔ . خوداډېرې نوې سکاره یا لیگنایټ( Lignite ) دي. دغه رگ ماته تقریبا شپږفوټه پنډ او ښه ډېراوږدښکاره سو.له دې سکروڅخه په زیاتو مواردوکې کاراخیستل کېدلای سي . کابل ته یې څوټنه راوړل سول چې دلرگو پرځای یې په بایلرهاوس کې دسونگ موادو له پاره وازمویي. داازمویښت بریالی و.خو دغړونو په سختو دروکې داوښانو پرشادسکرو راچلولو اوددریو اوونیو مزل وهلو یې مخه نیوله .

دکابل په ورکشاپوکې دبایلرانو له پاره دسونگ موادو دپیداکولو مسله په وروستیو وختوکې اساسي اهمیت وموند. خکه له کابل څخه دڅو ورځو مزله په واټن دهیوادټولې ونې مصرف سوي دي . دسونگ نورمواد په سختۍ سره موندل کیږي. په داسې حال کې چې کوم نوي نیټالگي دسونگ موادو دراتلونکې زېرمې له پاره ابنوول سوي دي ، په اتویاترهغوزیاتو کلونو کې دپرې کولو له پاره نه آماده کیږي . اوسنې امیردموضوع دحل له پاره دخپلو هلوځلو په لړکې یوکل یاځه زیاته موده وړاندې یواعلان خپورکړاو په هغه کې یې هرهغه

چاته دزیات انعام ورکولوپېشنهاد کړی و، چې کابل ته نزدې دډېروسکاره پیداکړي. هغه چاته چې دښارپه پنځه میلي کې دډېروسکاره پیداکړي ، دېرش زره روپۍ انعام، هغه چاته چې په لس میلي کې یې ومومي ، شل زره روپۍ اوپه دې ډول نورانعامونه اعلان سوي وو. خوپوشرط پکښې واوهغه داچې موندل سوي سکاره به په داسي ځای کې وي چې دارابه لرونکو وسایلو له پاره دیوه میل په اندازه سړك جوړول وغواړي. که داسي نه وي نودانعام اندازه به دکان دفاصلې په تناسب راټيسي . داعلان په نتیجه کې خلکو دځومیلو په شاوخواکې په ډېردقت سره پلټنې وکړې ډېرلږکسان حتی دسکرو پرلیدلو بریالي نه سول. دوی ځای ځای په ځینونړیورګونو باندي پښس سول چې دمځکي ترقشرلاندي ترتحت الارضي زلزلودمخه موجوده . زه یې دغوسیموته دپلټنې اورپوټ راوړولو له پاره ولېږلم اوومي موندل ، چې داډډېرو نوي سکاره اودومره نري دي چې مصرف کول وربانديي نه ارزي . ترکومه ځایه چې ژوري کیندنې وسوې ، دپنډو رګونو موجودیت یې ځرګند نه کړ. زمادکاریګرانو یوې ډلې چې، دنورتحقیق له پاره ګومارل سوي وه ، دهزاره وو په خواکې له کابل ځخه دشپږو ورځومزله په واټن دشیخ علي په سیمه کې دډېرو دنویوسکرو رګونه وموندل اودغرونو په همدې لړیو کې نورځایونه هم رګونه کشف سول . خوپه دې ځایوکې هم دغرونو موانع وو اوداوښانو پرشاراچلول یې حکومت ته ډېرګران تمامېدل. امیرپیادېرام یاکوچنې اورګاډي په برخه کې دهراقدام په وړاندي سخت تعصب لري اودادسکرودانتقالولو یوازنۍ ارزانه لار ده.

ډېراحتمال سته چې دکابل ورکشاپونه دي دماشینونو دچلولو له پاره دسونګ موادو داړتیا له امله ډېرژروتړل سي . له کابل ځخه زماله راوتلو لېږوړاندي امیرراته وویل ، چې دلرګیو داخلي زېرمه تمامه سوي ده اوډېره لږاندازه دډېرو سکاره نزدې پیداسوي دي ، چې زیات ارزښت به ولري . په آخري ژمي چې ماپه کابل کې تېرکړ، لرګي لږپیداکېدل اوترپنځو کالووړاندي یې بیه دري چنده لوړه سوي وه . په دغه بیه لاهم ډېرلږ موندل کېدل.

له هغه ځرګندونوځخه چې وسوې ، داسي ښکاري چې دکابل ترواديي لاندي به غالبا دډېرو ښه سکاره پراته وي . خوامیرمرحوم دډېرو دسکرو کارچې ماپیل

کړی و، لېونتوب وباله اوغوښتل یې پوه سي ، چي دمځکي ترسطحي څوسوه فوټه لاندي دښکرو دموجودیت دمعلومولو ګټه په څه کي ده اوڅوك به وکولای سي دمځکي له ګېډي څخه ، چي له اوبو ډکه ده اوخاګاني یې ښه ثبوت دئ ، سکاره راوباسي . داهغه څه و، چي ده په دربارکي ویلي وخوماته یې نه و ویلي ، څکه نوماته په دې برخه کي زمادکارددفاع کولو موقع میسره نه سوه . ده ماته صرف لیکلي و، هیله لري هغه کاریګرچي ددغه کارله پاره استخدام سوي وو، شاوخوا سیمو ته ولېږل سي ، چي که کولای سي په غرنیو سیمو کي دډبروسکاره پیداکړي . په ترکستان کي همداسي وسوه . خودازما وظیفه نه وه ، چي ددغه شان یومبهم امرپه باب بحث وکړم اونه امیرداسی سړی و ، چي زما دغه شان کارته دې یې غوږنیولی وای . ده چي به کله یونظرورکړ. په هیڅ ډول یې غلطی منلوته غاړه نه ایښووله.

دپنځلسم ځپرکي لمنلیکونه

( ۱ ) داګان دکندهاربنارشمال ته په هغوغرونوکي ، چي توري نوميږي ، واقع و. زماديادوخبره ده چي دغه ځای خلکو «کان طلا » باله اوشاه مقصود ته نزدي و ( م.هوتك )

# شپاړسم څپرکی

## دین

سني اوشیعه ـ ملایان اوپرخلکو باندي دهغوی اغېزه ـ جهادیامقدسه جګړه ـ پرملایانو باندي دامیر مرحوم ناباوري ـ مقدس خلك ـ فقیران اوزیارتونه ـ لېونیانوته دخدای تتلو په توګه درناوی کول ـ سیدان اوحافظان ـ ګدایان اوخیراتونه ـ ددیني سزاپه توګه په ډبرووژل (سنګسارول) ـ عبادتونه ـ په عبادتوباندي دنه پوهېدلو سزاګاني ـ مسجدونه ـ رمضان اوروژې ـ حج ـ په استرالیا کي افغاني کالوني ـ حلال اوحرام خواړه ـ دماندینو تعدد.

---

دافغانانو دین اسلام (۱) یامحمدي دین دئ ، چي په عیسوي هیوادو کي زیاتره په دغه نامه یادیږي . که خلك دخپل دین له اصولو سره سم ، هغسي چي په قران کي یې ښوونه سوې ده ، عمل وکړي ، نوښه مسلمان به یوښه سړی وي . څکه دایوقانون دئ، چي دخلکواعتبار اونه اعتبار دهغوی ددیني اعمالو له مخي ټاکل کیږي . په هیوادکي ددغه دین دوې څانګي سته، شیعه اوسني . په وروستی څانګه کي یې شاهي کورنی اودخلکو ستراکثریت شامل دئ .په داسي حال کي چي شیعه څانګه یې په اساسي توګه له قزلباشو څخه چي دایرانیانو اخلاف دي ، جوړه سوې ده . دغه قزلباش دکابل په جنوب لوېدیځه سیمه کي ، چي چنداول نومیږي، اوسي . دوی خپله یوه کوچنی کالوني جوړه کړې ده ، خوددوی زیات شمېر په کندهار اوهرات کي اودغه رازدایران پولي ته نږدې ژوند کوي . ددغودووڅانګو ترمنځ توپیرزیاتره ددوی دمذهبي مناسکو په شکل کي لیدل کیږي . په عقایدو کي یې کوم اساسي توپیرنسته . اوداتوپیر کله کله دزیاتي وینې توېدني سبب سوی دئ لکه څرنګه چي په پخوانیو وختو کي درومن کلیسا اوپروتستانتو ترمنځ دود و.

ملایان یااخوندان Priests هغه کسان دي ، چي په مسجدو کي روزل سوي، په قرآن باندي پوهیږي یا لږترلږه پخوانی عربي لوستلای سي ، په هغه یوازنی ژبه چي دلیکلو اجازه یې سته . دوی په روحاني توګه ژوند کوي ، چي له ټاکلو عبادتونو اوروژو څخه متشکل دئ . ددوی تسبیح(۲) Rosary ته ورته دي اوتل

يې په لاسوکي وي . دتګ ، ناستي اوحتی خبروپه وخت کي يې په ګوتو کي سره اړوي اوپرهره اړول سوي دانه باندي دخدای نوم تکراروي .
کافراوهرنامسلمان ته کتل ناروا دي اودومره ناوړه کارګڼل کيږي، چي که په کوڅه کي يې له څنګ سره تېرسي،کښته مخکي ته وګوري . ددوی په نظردکافروژل دستايني وړعمل دئ . دخلکو اکثريت ټول يوشان متعصبين دي . دوی دغه راز درواغ ويل اودکافرخطاايستل (غولول) ګناه نه بولي (۳).
په خلکوکي دملايانو نفوذبېخي زيات دئ اوجهادياددوی ددښمنانوپرضد مقدسي جګړې ته دهغوی په رابللو کي هيڅ ستونزه نلري. دوی استدلال کوي چي ددوی ددين دښمن دخدای دښمن دئ اوله دي امله دکرکي ونفرت وړموجودګڼل کيږي.قران ددغه راز خلکودوژلو امرکړی اوکه دوی په دغه رازعمل کي پخپله ووژل سي ، خدای وعده کړې ، چي سيده به جنت ته ځي . که څوك دکافرپه وژلوکي ناکام سي اوپه دغه تلاښ کي پخپله ومري، په جنت کي به يې مرتبه ترهغه چالږڅه کمه وي چي بريالی سوی وي.
ملايان دغه رازښوونه کوي، چي په جنت کي به ښه مسلمانان دداسي ونوترسيوري لاندي پراته وي ، چي پاڼې به يې د سرو زرواوسپينوزرو وي ـ مېوې به يې قيمتي ډبري وي. شاوخوا به ښکلي حوزې پرې راتاووي اودده ټولي غوښتني به ترسره کوي . دشيدو اوعسلو رودونه به يې څنګ ته بهيږي.
په دغه جنت کي که دوی هرهغه ښکلی مرغه وغواړي چي په شاوخوا ونو کي ناست اورېزکوي ، مرغه په سمدلاسه ورته پوخ سوی اوحاضرکړه سي اوترخوړولو وروسته به مرغه بيرته په پخوانی بڼه سي اوښاخوته به والوزي ، داځکه چي په جنت کي مرګ نسته . څرنګه چي دافغان ژوند په عمومي توګه د ژوندي پاته کېدوله پاره يوه اوږده مبارزه ده ، ځکه نوپه دغه تصويرکي ديوه عادي افغان دغوښتنو دترسره کولوله پاره دراتلونکوخوشاليو په باب کافي اندازه موادسته .

قران تل په ډېري درناوی سره ساتل اولاس پرلاس کیږي . دلوستلو له وخته پرته نورروخت په څوتوکرانو کي پېچل سوی وي اوکه څوك غواړي ويې ولولي، له پوښ څخه تررااېستلوورانديي بايد خپل لاسونه ومينځي (اودس تازه کړي. ژباړونکی ) . قران يوازي په عربي ليکل سوی دئ . ماتعجب کاوه چي ولي دلا يقوملايانو لخواپه فارسي ژباړل سوی نه دئ . خکه ټول به يې لوستلای اوپېري پوهېدلای سي . راته ووېل سول چي دقران ژبه داسي ده چي هيڅوك يې کاپي اوتقليدنسي کولای . په ژباړه کي به هرومرو زياتي تېروتني پېښي سي اودخدای له کلام سره به بې پروايي وسي(۴) . له همدې امله دئ چي څوك غواړي و يې لولي ، دهرلغت تلفظ ورته په عين بڼه ښوول کيږي . په ليکلي عربي کي لنډ واولونه نسته اومتّېدي به هرومرو يولغت په ناسمه توګه تلفظ کړي . ډېرزيات لغتونه سته ، چي په ليکلو کي سره ورته دي اوتوپير يې يوازي دناليکلو لنډو واولونو په تلفظ کي څرګنديږي. له همدې امله يې په معنا کي ګډوډي پيښيږي اودخدای دکلام ترغلط تعبيرولو بلمه لويه ګناه نسته . له ملايانو پرته، ډېرمحدود کسان قران لوستلای سي . ملايان يې هم ظاهرا هغه راز آزاده ترجمه کوي ، چي ددوی له مقاصدو سره برابره وي . دمثال په توګه دلامذهبو خلکوژل چي دجهاديامقدسي جګړې اساسي پرنسيب دئ اواميردهغه په باب يوه رساله چاپ کړې اوپه دې وروستيو وختوکي يې په هيواد کي توزيع کړې ده ( ۵ ). ماته دنورهيوادمسلمانانو په يقين سره ويلي ، چي په دغه ځای کي دقران مطلب اړول سوی دئ .خکه په قران کي ريښتني مسلمانان هڅول سوي دي چي له غيردين خلکو سره دي دګاونډيتوب ژوند په داسي ډول وکړي ، چي هغوی ټول يې دښوخلکو په توګه وپېژني . که دهغوی پرضد دجګړې وخت راسي نوبيادي په خپل ټول قوت ورسره وجنګيږي.

اميرمرحوم چي پرملايانو بې باوره و، دليل يې درلود. هغوی څوځله دده پرضد خلك راپارولي وو او ادعايې کوله چي دی له خپل دين سره سم عمل نه کوي ، خکه نوکافردئ . له ده سره يې هروخت داسي چلند کاوه ، چي دخپلو خلکوترنظرېې سپك وښيي، نه داچي احترام يې وسي اونفوذ يې ورزيات کړي . ده چي بياهم غوښتي دي ، دنوروخلکوپه څېرېې هغوته په سزاورکولوکي صرفه

نه ده کړي . دغه شان يوه پښه هغه وخت وسوه چي ديوه زيارت ملايانو ده ته يوليک راوليږه اوپه هغه کي يې دزيارت ددپوالونو اوخونو دترميم له پاره چي دنړېدلوپه حالت کي وو، دنغدي مرستي غوښتنه کړي وه. پرمقدسو قبرونو باندي معمولا شاوخواودانی اوخوني راتاوسوي وي اودزيارت محافظ اخوندپکښې ژوندکوي . اميرپوهېدی ، چي دغه ځای ته ښځي ترنوروخايوزياتي ورځي. په ښکاره يې عبادت مطلب وي خوپه حقيقت کي له خپلو مينه والو سره وعدې پرځای کوي . زياتره ښځي لاپخپله په ملايانو کي هم مينان لري . دښځوعبادتونه معمولا خپلي خاصي ښکلي لري دوی بايدپه زيارتوکي ډېري زياتي سپېڅلي واوسي .خوپه ځينوشرايطو کي ښايي ددغي نظريې پرخلاف نتيجه ورکړي . ځکه نواميردغوملايانو ته چي په کېډه ښه ماړه اوښوي ښالاك خلك وو، احوال وليږه اوورته يې وويل چي دی ددوی په ښيلتوب پوهيږي. دوی يې وښکنځل اوامريې وکړ، چي دغه ځای دي وتړل سي اوملايان دي تيت وپرك سي.

اوسنی اميرچي تراوسه لادخپل پلارپه شان پرځان ويساندلري، له تولوملايانو سره په ډېره درناوي چلندکوي. کله چي دی اميرسو، دوی ټول يې راوغوښتل، پيسې يې ورکړې ، عزت يې وکړ اوپه ښه سترګه يې ورته وکتل . دسياست غوښتنه يې له شکه همداوه ځکه حالات ډېرنازك وو. خودوی زياتره دوه مخه وسله ده اودی به يووخت ووېني ، چي که يې خپه کړل،نوبيا دوا ړي خواوي غوځولای سي .

په هيوادکي زيات شمېرمقدس کسان اوفقيران سته چي خلك يې زيات درناوی کوي . دوی دناروغی دعلاج کولوقدرت لري اوپرناروغانو باندي دقران ځيني برخي لولي يااوبه ورته دم کوي اوپه چښي يې . خومعمولا دقران يوآيت پرکوچنی ټوټه کاغذ ليکي اوناروغ ته يې ورکوي چي ترستوني يې تېرکړي. په زيارتونو (مقدسوقبرونو ) کي هم دناروغيو علاج کيږي اوناروغ بايد صرف په زيارت کي دروغبدوتروختـه پاته سي . زمايونوکرددي پرځای چي انګلېسی دواوخوري ، دابل علاج يې غوره وباله خوپه دريمه ورځ هوري مړسو.

د لبونيانو په باب ويل کيږي چي دا دخدای لخوا خوړول سـوي کسان دي .

خکه نوهیخوك ددوی داعمالودکنترولولو لپاره نه کوي اونه یې په هیڅ ډول په کاروکي مداخله کوي. پرځای یې ورسره په ډېراحتیاط چلند کیږي . دستونزو اومشکلاتو په وخت کي دوعاوي اوتوصیې خني غوښتل کیږي . هرڅه خواړه اوپیسې چي اخلي ، ورکول کیږي اوهرځای چي یې زړه غواړي ، تللای سي .هیڅوك یې ممانعت نه کوي ، ان تردي چي که وغواړي دامیردربارته هم تللای سي . دغه رازیوسړی چي په ټول کابل کي مشهوراوپېژندل سوی و، له اوږده کمیس پرته یې بل څه نه اغوستل اودکمیس گرېوان به یې هم خلاص و، دژمي په سختی کي به یې یوازي پوستین دکمیس دپاسه اغوستی و. مادغه سړی دژمي په ډېروسړوورځوکي لیدی ، چي پروڅه مخکه به په خلاصه هواکي، سرتورسراولوڅي پښې پروت و. ددغه سړي مقاومت باید استثنایي وي، چي په دغه رازنیستي کي ژوندکولای سي . دی به کله کله حکومتي مغازو ته تللی چي سپایان به پیره پرولاړه وو، ددروازې تمبه به یې لیري کړه ، مغازې ته به ننوت اوهورې به پرېوت . هیچا ورته دڅه ویلو جرات نه درلود . دی به کله کله دامیرمرحوم دربارته تللی اودامیردکرکترپه باب به یې خپل نظرڅرگنداوه . داهغه څه وچي بل هیچاپه ژونداسي غوري(لاپې ) کولای نسوای. کله چي به امیرپیسې ورکړې ، ده به هیسته وغورځولې اوخوابدی به سو. که به یې چاپخلاکېدو هڅه وکړه ، نتېه به یې کوله . ده به دغه رازعمل دهغوسوغاتونو اوخواړو په باب هم کاوه چي خلکو به وراستول. ده ډېرپیروان درلودل اودغوغړرو اوپنډو خلکو به دی راوغوښت اودده دکارونو پېښې به یې هم کولې اوهڅه به یې کوله ، څانونه پې بشپړتوگه دده په شان کړي ، چي دوی هم دعزت څښتنان سي اوداسي یوه ورځ راسي، چي دوی دخپل باداریرپښوبوټونه وراصل اودنورو خلکو له شره څانونه خلاص کړي .

په هیوادکي زیات شمېرسیدان سته . ویل کیږي چي سید د پیغمبر (ص) مستقیمه اولاده ده . دوی ته دمهمواشخاصو په سترگه کتل کیږي اوډېر[illegible] ورنلوي کوي. خوداکاردژوندکولو له پاره ددوی دهلو خلوخنډنه گرزي. یوشمېرسیدانو زښاترلاس لاندي کارکاوه دوی مې ترزیات شمېرهغوکسانو ،چي زه ورسره په تماس کي وم . غوره ومونډل. عموما ډېرخبرك وو، چي دا به بنایي پرنورو باندي دبرتری له پاره دپیریو پیریو هلوخلو نتیجه وه.

حافظ هغه څوك دئ، چي ټول قرآن په يادتلاوت کولای سي.دوی دروژي په مياشت کي گومارل کيږي، چي هرماښام په جوماتونوکي دقرآن يوه برخه تلاوت اوپه دې ډول ټول قرآن ختم کړي. داکارډېري ورځي په برکي نيسي اوتلاوت يې پروختونوداسي ويشلی وي، چي دروژي ترپايه پوري يې ختم کړای سي.

فقيران يامقدس گدايي کرېه هيوادکي يوه ستره موسسه ده، چي په حقيقت کي په ټول ختيځ کي سته . دوی( نارينه، ښځي اوماشومان ) لوزکړی وي، چي کاربه نه کوي اوورځني غوښتني به دگدايي له لاري پوره کوي . دوی دغه راز ژمنه کړې وي، چي دسباپه غم کي به نه وي اوکوم څه چي ورکول سوي وي، بلي ورځي ته به يې نه ساتي . هرهغه څه چي دخيرات له لاري وررسيږي په هماغه ورځ به يې مصرفوي . دوی دسړك پرڅنډواوبازارکي ليدل کيږي، چي دگدايي لرگيني ياميسني کاسې(کچکولونه ) پې په تارترلي اوپه غاړويې ځړولي اومخ ته يې نيولي وي . لارويانو ته دخيرات ورکولوپرله پسې نارې وهي . په ژمي اودوبي ټولـه ورځ پـريـوه ځـای ولاړ وي. خـوپـه ژمـي کـي يـې ترپوستينونولاندي يوه کوچنی اوسپنيزه کاسه نيولې اوپه هغې کي يې دځان تودولو له پاره دسکرولږڅه اوراچولي وي. اوسني اميرددغو خلکو د ژوندکولو دلارو چاروسخت مخالف دئ . دی دغه هلکان، چي پرسړکونو باندي دگدايي کولوپه حال کي ويني ،مجبوروي يې ،چي ورکشاپوته دکارله پاره ولاړسي اوهورې دکارکولوامرورته کيږي . دمزدپرځای هغوته دورځي دوه واره ډوډی اوپه کال کي يوه جوړه جامې ورکوي. دوی په ورکشاپونوکي عملا دبنديانوپه توگه ساتل کيږي. خکه چي دورځي ياشپې له خواورته دبهروتلواجازه نسته . ترکومه ځايه چي دحکومت دگټي خبره ده . نودوی کوم کټورکسان نه دي . دوی ټوله ورځ بې له لوبوبل کارنلري اوښه بل دي. زوراوتشدد پردوی اغېزه نه کوي اودشاپونو زياترو استادانوچي دوی ته دکارزده کولو هڅه کړې ده ،زړه توري سوی اوناميڼده سوي دي. ترکومه ځايه چي مادوی کتلي دي، دښومواد و له ضايع کېدوپرته بل کارنلري . کله يې چي استادان کارته مجبورکړي ، دوی حتی په ساده کاروکي لاهم ښان ضايع کوي . په څرگنده توگه داسي ښکاري، چي دوی له دې هيله من دي ،بالاخره به د بې فايدې کسانو پـــه توگه خوشي

پرېښوول سي.

مذهبي جنايات اوجرمونه دملايانو ديوه حکم هيت له خواچي له خپل منځه يې يوتن دمشرپه توګه ټاکلى وي، څېړل کيږي. ملايان دمذهبي اعدام په خاطريوځوک دډبرو ويشتلو په مرګ محکوموي. خوداجزابايد داميرله خوا منظورسي .کله چي جزامنظوره سوه ، محکوم تن په داسي حال کي چي لاسونه يې ترشاتړلي اوپه پښوکي يې زولنې وراچولې وي، دښارپه جادوکي ګرزوي . څوملايان په پسې وي اوپه يوه ټاکلي ځاى کي لومړى ډبره دمشرملاله خوا ورباندي وارکيږي . دخلکوجميعت چي له غونډي سره ملګري اوځانونه يې په ډبروسله وال کړي وي ، دمشرملاوارته منتظروي .کله چي هغه ډبري وار وکړ، دوى ورروسته دډبروويشتل پيل کړي . محکوم شخص دډبرو ترباران لاندي وي، چي دتيږو د دوام په صورت کي وارپه وار اغېزمن کيږي . دډبرو مسلسله اغېزه اودرد يې ورو ورو بې سېکه کړي ، ترڅو هغه ځاى راورسيږي، چي سياه سنګ نوميږي . داځاى دتورو ډبرويوه کوچنى غونډۍ ده چي له ښارڅخه تقريبا دوه ميله ليري پرته ده . دډبرو دېوال پرراتاوسوى دئ . په دغه ځاى کي دويشتلو له پاره غټي ډبري اخيستل کيږي اوډېرژرمحکوم شخص له کمزورۍ څخه پرمخ لوېږي اوپوه سي ، چي ژوندېې مخ پرتماميدودئ .يوڅه موده لانورهم واري پرکيږي . په پاى کي نوردښوره لوېږي اويوه يادوې غټي ډبري يې پرګونډو اوورروسته يې اورد وغځوي . ورپسې نو دډبروباران پسې توندسي .ځينو خو داسي ګاري ورسره راوړي وي، چي په سختى سره يې پورته کړي اودسرى پربدن يې وروغورځوي . داکارترهغوروان وي، چي پرسرى باندي دډبرويوه غونډۍ جوړه سي اونورنوهورې دډبروترکوټي لاندي پرېښوول سي. شخص که څه هم ښهوښه سي، خوتل سمدلاسه نه مري. داسي واقعې پېښي سوي دي، چي سړى دڅوساعتو له پاره لاژوندي وي اوپه پاى کي په ډېرکړاو مړسي.

خلک دملايانو لخواتعقيبيږي ،چي وګوري آيادوي خپل دين پالي که يا ؟ رخت پروخت پوښتني ځني کوي، چي آياددوى خپل عبادتونه زده دي . ددې هدف له پاره دمشرملالخوايوه ډله ټاکل سوې وي، چي کلمه کلمه په بازارو، ورکشاپونو اوعامه باغچوکي ګرزي ، په دغوموارد وکي چي هـــرڅوک په مخه

ورسي، باید خپل لمونځونه ورته تکرارکړي ، بکه یې په صحیح ډول تکرار کړل ، اجازه ورکوي چې پرخپله تېره ولاړسي . دده لارمعمولا دملایانو تر نظر ښکته لاندي وي ، چې خلکو ته دتعقیب خبرداری ورنکړي . ټول هغه کسان چې تردغه ازموینښت بریالي ووزي ، غواړي ووینې چې وروسته سړي ته څه پېښیږي . هرڅوک چې پخپلولمونځوکي غلطي وکړي یایې یوه برخه ښي هېره سي، په لرګیووهل کیږي . څوکه یې موضوع لانجمنه وي اوسړی پخپلولمونځوباندي قطعًا ونه پوهیږي یایې له هغه چاسره لج کړی وي، چې له ده څخه پوښتنه کوي اوهغوی پردې خبره شاهدي ورکړي، چې ده دهري ورځي دټاکلوو ختونو په باب هیڅ نه دي ویلي ، بیانودغه شخص نیول کیږي ، مخ یې ورتوروي ، لاسونه یې ترشاورتړي اوبیرخره باندي یې چپه سپروي . په داسي حال کي چې ملاپه پسې وي دښارپه عمده بازاروکي یې ګرزوي . البته دخلکو لویه ډله په پسې وي اوګستاخانه ملنډي په وهي . ویل کیږي چې ددغه جریان شرم اوخجالت پرسړي باندي خورازیاته اغېزه ښندي اوپه راتلونکي کي شخص دمذهبي مناسبکو پرپابندی باندي ټینګ سي . دده ملګري اودوستان دڅوکلونو له پاره پرده باندي ټوکي کوي اوبې باکه ملنډي پرې وهي . مایووخت یوڅوک ولید چې پریوه موضوع باندي یې خپله نظریه په جدیت اومباهات سره بیانوله .په دې وخت کي یې دڅنګ سړی ورو پوښتنه ښي وکړه چې آیاپخپلولمونځو پوهیږي .سړی غریب سره راګیرسو ،غوښتل یې یوه شبېه ځان زړه ووروښیي، خوناڅاپه اوپه چټکی سره له خوني ووت اوملګرویې دسپکاوی په خندا بدرګه کړ. زیاتره افغانان له ریشخندوهلوسره سخت حساس دي اوکه ریشخندتراندازې زیات سي ، خوراسخت هیجاني کیږي . ټول ښه مسلمانان بایدد ورځي پنځه وخته لمونځ وکړي اوترلمانځه دمخه بایدلاسونه ویښې ښکه ومینځي (اودس وکړي ) چې ځانونه دخدای په مخ کي په ښه توګه حاضرکړي اته وویل سول چې په قرآن کي دشرابواوالکولو دمنعه کېدلوسبب دادئ، چې څوک دشرابوچښلو تراغېزې لاندي نشه وي، په ځان نه پوهیږي ، چې څه کوي؟ اوڅه وایي؟ اوپه دغه رازحالت کي به یې لمونځونه ددین سپکاوی وي.

دکابل مسجدونه زیاتره کوچني وي. معمولا یې داسي جـــوړکړي وي، چې

درې خواوې يې بندې اوځلورمه يې خلاصه وي اوپرداسې موقعيت بايدودان سوی وي، چې داورډوالي لورې يې مکې شريفې ته، چې دپيغمبر (ص) زيارت پکښې دئ (٥) مخامخ وي. داځکه چې مسلمانان ټول دلمونځواداکولو په وخت کې مخ دمکې پرلورکوي. يوډېرسترمسجدچې جمعه مسجدنوميږي(٦)، د امیرمرحوم په واسطه جوړسوی و. اميراعلان خپورکړچې ټول ښه مسلمانان بايد لږترلږه يوه ډېره له غروځخه ددغه مسجدپه ودانۍ کې داينبوولوله پاره دخپلې ونډې په توګه راوړي. په دې ډول يوزياته اندازه ډېرې راغونډې سوي وې، خوودانۍ دومره لويه وه، چې دارتياوړموادودانداز ې بشپړولو له پاره لاسې ګاډی اوجواليان په کاررو. په همدې مسجدکې خلك داخترونولمونځونه اداکوي اوپه هروارشل دېرش زره تنه حاضرېږي .مسجداوشاوخوا غولۍ يې ټول په سړيوډك سي چې څوك ولاړ،څوك پرركوع اوټول يودبل ترشا په اوږدوکتارونو کې ولاړوي. په همدې ځای کې دکولرا (وبا) اونورو آفتونوپه خاطرلمونځونه هم کېږي .داناروغۍ اوآفتونه چې په کابل کې پېښ سي او زياته موده دوام وکړي، خلك هيله من وي، چې ددوی ګډې دوعاوې به دآفت پرلېرې کېدواغېزه وکړي.

درمضان ياروژې په مياشت کې پرټولو خلکوباندې ددېرشوورځوله پاره له لمرختوڅخه ترلمرلوېدو پورې روژه نيول لازمه وي. په دغه وخت کې بايدهيڅ شی ترشونډوتېرنسي .هيڅوك بايدنصوارياچلم ونه څکوي. ډېروړاړه ماشومان اوهغه کسان چې جدې ناروغې ولري ،له دې کاره مستثنی دي، په ورروستي برخه کې زياتره پېښيږي، چې ناروغ شخص که څه هم ددغه ازموينست قدرت ونلري ، بياهم پر روژه نيولوټينګارکوي اوله ستومانۍ څخه مري. په هرصورت ناروغ، چې روژه ونه نيسي ، بايدعوض يې ورکړي اوددې کارله پاره بايديومبلغ تاديه کړي . دغه رازبايد له خپل وس سره سم خوتنه غريبان ماړه کړي. ملابايد له شرعي قانون سره سم ددغه شخص دحالت تصديق وکړي چې دروژې نيولو څخه معاف دئ . دلمرلوېدو اولمرختوترمنځ بايدخلك که وغواړي يوڅه وخوري اواندازه يې محدوده نه ده . معمول داسې دئ، چې له لمرلوېدوسره سم يوغټ توپ ويشتل کېږي او دا خلکو ته دروژې ماتې اشاره ده . زياتـــروکسانوخواړه

اوچلمان تیارایښي وي اوهغې اشارې ته منتظروي چي دوی ته دروژې ماتولو اویودم چلم کشولو اجازه ورکوي ځکه دورخې بندیزېې اشتهاخوراورزیاته کړې وي.ترلمرختیویوساعت یاڅه زیات دمخه بیاتوپ ویشتل کیږي او دا هغو کسانو ته خبرداری دئ ،چي په دا سبا یې کارکوي . دوی بایدراوپاڅي اویوڅه وخوري، ولي چي دبلي ورځې روژې نیولو لپاره ځان سمبالولوته لایوڅه وخت پاته وي . دهغوکسانوله پاره چي وس ولري ، عام رواج دادئ، چي شپه اوورځ سره واړوي . دورځې بیده سي اودشپې خوراك اوکاروکړي. په حکومتي دفترواوکارخانوکي دکارساعتونه کمیږي اوخلك کاردورځې ناوخته پیلوي اووختي یې پای ته رسوي . دمیاشتي په لومړۍ برخه کي خلك داسي ښکاري چي روژه خوراپه شوق نیسي. خو وروسته دورځې له خواداوږدې فاقې اغېزه زیاته سي اوورپسې یې دخورك دپرېښت دهاضمې خرابوالی اوبدهضمي پیدا کړي ، مقاومت مخ پرکمېدواوجګړې زیاتي سي. اکثره خلك دپرناورغه سي اویوڅه خولامره سي. ځکه خلك دروژې په میاشت کي دبلي هري میاشتي په پرتله زیات خورك کوي اوچي وس یې وي بجټ ورته کوي . له خپلوټولوغوښتنوڅخه ترڅوساعتو محرومیت وروسته ترېزي پوري خورك وچښنګ وکړي او چلم وڅکوي . په تشه ګېډه درانه خواړه خودښه هضم له پاره ګټورنه دي . هغه کسان چي دزیات چلم څکولواونصوارو عادت لري، هغوی دزیات محرومیت احساس کوي . پردوی باندي دنوروخلکو په نسبت وخت دېرورو ورو تېرېږي . زیاتروخلکو ماته ویلي، چي دلمرلوېدو دتوپ تروخته پوري دانتظارساعتونه دپرستومانوونکي دي . زه فکرکوم ټول چلم کښان به له دوی سره هم نظره وي . میرزایان (کاتبان) هغه کسان دي چي چلم اونصواروته یې ډېره هواکیږي . دوی تقریبا بې له استثنا څخه دچلم اونصواروزاړه عملیان دي. دمسلمانانوکال له قمري میاشتوسره سم ټاکل سوی دئ اودروژې میاشت هرکال ژر راځي .کله چي په دوبي کي راسي او ورځې اوږدې اوهواتوده وي ، تنده هم پرنورو تکلیفونو ورزیاته سي . دکابل خلك دورځې په اوږدوکي دزیاتواوبوچښلو عادت لري ، ځکه نوتنده له زغملوووزي . دوی وایي چي په روژه کي دغه حالت ترټولوحالتودېرزوروغواړي. درمضان تراخترچي دروژې دمیاشتي دپای ته رسېدو د ورځې اخترد‌ئ، شپږ

اونی وروسته لوی اختریا عید قربان یادقربانی مذهبي میله راځي . په دغه ورځ ټول خلك، غریبان وي که ماړه ، نوی کالي اغوندي . هغه څوك چي د نویو کالیو وس ونلري ، په کورکي ورځ یوازي تېروي اونه غواړي چي له خپلوملګروسره مخامخ اوخجالت سي. په هرصورت د ېرلږپېښیږي، چي یوڅوك دي دومره لږېدلی وي څکه دایو دود دئ اوخلك ددغې ورځي له پاره تیاری نیسي .که ببخي سخته وي، نوبیازاړه کالي مینځي اودومره یې پاکوي چي ښه وایسي اومراسم په تېرکېږه سي . ټول خلك ددې وس نلري، چي نوی نزي (لومړی لاس ) کالي دي رانیسي . په دغه اخترپه لوی مسجدکي ترلمانځه وروسته ،چي امیرله شهزاده ګانواونوروماموریِنواوداردو له افسرانوسره یوځای پکښې برخه اخلي ، مسجدته مخامخ په لوی میدان کي دعسکرومعاینه هم کیږي . دمعاینې دګرته دامیراودهغه دډلي دراتګ هرکلي ته دخلوښتوتوپو ویشتلوپه سلامی سره کیږي اوورپسې معاینه پیل سي . خو هغه ډېره ساده وي. امیرد ټولوقطعاتو مخي ته سپورتېرسي اوبوه لنډه وېناوکړي اوژړبای ته ورسیږي . وروسته نوقطعات بیرته خپلوبارکونو ته مارش وکړي په داسي حال کي، چي دمارش په مسیرکي خلك ورته راغونډسوي وي اوتماشاکوي . نه یوازي دامیراودهغه دباډي ګارډانو تماشا ، بلکی دهغودڼلتي پیلانوتماشاکوي، چي جل وبل ګاډي وریوري تړل سوي وي . تردې وروسته خلك ورځ دخپلو دوستانو په لیدلواو یوبل ته په مبارکی ورکولو تېروي . په داسي ورځوکي دا دود دئ ،چي مېلمنوته باید چای اوشربت ورکړه سي . ددغومراسمولګښت پرزیاترو کسانو باندي دروند تمامیږي. خوهغه باید هرومرو سرته ورسیږي. که یوڅوك غواړي چي دخپلوملګروپه منځ کي ددرناوی ورواوسي، ددې له پاره که حتی پورهم کوي بایدویې کړي.

دبرات په شپه (شب برات ) زمورږد (all Souls)(۷) په شان دشپې لخواآتش بازي(اورلوبه ) کیږي . خلك خپل دوستان مېلمانه کوي اوبیانوداورلوبي تماشه کوي . دشتمنوخلکو په کوروکي تردغومراسمووروسته موسیقي اودنجونونڅاهم کیږي .دغه مراسم دشپې ترناوخته پوري دوام کوي . که یوڅوك نورخلك مېلمستیانه راوبولي ، پـــــوهیږي چي مېلمانه باید دشپې پاته سي . یوازي په

خاصومواقعوکي دغه رازمېلمانه رابلل کيږي .په نوروکي يې تل دشپې تر ناوخته پورې ساتي . دبرات په شپه دخلکو عقيده داسي ده چي ملايکي له اروااو ( ارواحو ) سره ددې لپاره ګوري، چي دهغوی د پاتې کېدلو موده وازموېي . دکومو ارواوو چي وخت پوره وي ، اخلي يې او جنت ته يې وړي .

دمکې زيارت چي دوی يې حج بولي ، دهغوکسانوله خوا ترسره کيږي، چي په مذهبي لحاظ آماده اودلګښتونو له پاره وخت اووس ولري . دافغانو له پاره حج يوستره ذمه واري ده .له دغه رازخطرناك سفرڅخه دراستنېدو چانسونه هم ډېرلږښکاري . هغه کسان چي ددغه زيارت ذمه پرځان اخلي ، لږياډېرياورلري چي بيرته به راستانه نسي، خکه نوخپل کارونه هغه شان فيصله کوي لکه مرګ ته چي دنزدې کېدوپروخت يې غم خوړل کيږي . په دې سفرکي بايد تر هغو بهرنيوهيوادوتېرسي، چي ددوی ددين اودخپل خان دښمنان يې پکښې اوسي . دا چي دوی به تردغه سخت ازموېښت سالم راووزي که يه؟ اوپرڅنګ يې لادسمندراودهغه داوسېدونکو په باب ډېري ډاروونکي افسانې لري، داسي چي که پرچا پېښ سي ، درسته بېړی يوه ګوله کولای اوترستوني يې تېرولای سي . سړی ته دحج کولودارزوپرڅنګ دومره زياته ذهني آمادګي هم ضرورده ،چي له دغوټولو خطرونو سره دمخامخ کېدلوجرات وکړي .په هرصورت د سفر ددغو ټولوخطرونو ترتېرولو ورروسته که يوڅوك بالاخره راستون سي، نودعمرترپايه پوري د «حاجي» لقب اخيستلوامتياز ګټي . خپلوان اودوستان يې په راتګ سره وياړي اوخوشالي په کوي . ترڅومياشتوپوري دی بل کارنه لري بې له دې چي داورېدونکويوې مشتاقي ډلي ته دخپلوسفرونو اوماجراوواوهغومنظرو ،چي ده ليدلي وي، بيانونه وکړي . په بيان يې اورېدونکي هيڅکله نه ستومانيږي . ما ددوی خيني اړوندي کيسې اورېدلي دي اوبايد ووايم، چي دغه کيسې په ويلو ازري .

افغانان ډېرسفرونه نه کوي .واکمنان يې ورته دنورو هيواداودکتني امکانات نه برابروي اونه ببګانه خلك هيوادته دورتګ له پاره هڅوي. دوی غوره بولي چي خلك يې سره تيت اوله نوري نړۍ سره تماس ونه لري . دوی ډاريږي، چي پوهه اوروښانتيابه پرحالاتوباندي ددوی قبضه کمزوري کړي. که دا خلك د نورو

هیوادو دخلکوپه قوانینواورسم ورواج سره دپوهېدلو اوخانونه له هغوی سره دېرتله کولو له لاري دخپل دین په نامه راوپارېدل، نوبیابه واکمنانوته دهغوی له غوښتني سره سم حکومت کول اسانه نه وي.

په لوېدیځه استرالیاکي دافغانانویوکوچني ټولنه ستنه ،چي له زیاتو کلونو راهیسي په یوه کالوني کي دي .هوري په ریګي بیابانونوکي پراوښانوباندي سوداګري کوي. څوکاله وړاندي ددوی یوتن افغانستان ته راستون سو.له ځان سره خپله انګلیسي یاپه بله ژبه استرالیایي مېرمن، چي خپل دین یې پرې ایښی و، راوستله. دې تعلیم نه وکړی اولیك لوست یې نسوکولای . دې چې دخپلوافکاروا وهغوبیابانونو په باب خبري کولې، چي دایې په عمل کي دنوي دین منلوته هڅولې وه ، نوسږي ته دافکرورلوېدی، چي ددې ماغزه ګویا ګډوډ سوي وه. سړی خپل هیواد ته راستون سوی و اوغوښتل یې چي دېرش کاله وروسته یې بیاوویني اودخپلوپلرونو په خاوره کي ښخ کړه سي .له ځان سره یې یوځه پانګه هم راوړې وه . خوپه کندهارکي دده دوستان دومره پوروړي اونېستمن وو، چي ده ته بیخي لږڅه ورپاته سوې وه . له دې امله یې خپله مېنه پرې ایښې اوکابل ته دامیرلیدوته راغلی و ،چي ګوندي هغه ورسره مرسته وکړي. دی په یوه دېرکوچني کورکي صرف له یوه نوکرسره اوسېدی . مېرمني ته یې دحکومت له خواپه کال کي یولږڅه مبلغ ورکول کېدی اوبس په همدې یې ګوزاره کوله . دی زمادېرممنون و ،څکه کله کله به مي پایپ اوتمباکوورکول . زیاتره به یې له استرالیاڅخه پرراوتلوافسوس کاوه. خودبېرته ستنېدووس یې نه درلود .ده داستېرالیایانوپه شان انګرېزي خبري کولې اوپه خبروکي زیات قسمونه خوړل، چي دسوچه افغان له شونډوڅخه نادره اورېدل کیږي . دی ترخپل راتګ دوه دري کاله وروسته دزړه له ناروغی څخه مړسواومېرمن یې دهغي کولراپه قربانیانوکي وه، چي دده ترمړیني یوڅواونۍ وروسته پېښه سوه. دمخه تردې چي دامړه سي، لېوروزي یې دېرتلاښ وکړ ،چي واده ورسره وکړي اوپه دې ډول یې په معاش کي ورسره شریك سي.

په استېرالیاکي افغاني کالونی امیرمرحوم ته د «ضیادالملت والدین» لقب اخیستلو له امله دمبارکی یولیك راولېږه . له هغه سره یې پــــه عین حال کي د

استرالیادحکومت دفرمان یوکاپي هم مل کړې وه . په هغه کي يې دغه هیوادته دشرقیانومهاجرت هغه وخت منلی و،چي هریوه سړي سربېره دروندټاکس(مالیه ) ورکړی وي . دوی له امیرڅخه په دې لارکي مرسته غوښتې وه، چي د هند پرحکومت باندي سپارښتنه وکړي، چي افغانان له دغه ټاکس څخه مستثنی سي . امیرچي هروخت يې بزنیس ته پام وي اوپوهېدی، چي داخلك شتمن دي، په خواب کي ځني وغوښتل، چي ددوی دريې څلورتنه مشران دي پردغه موضوع باندي دخبرواترولپاره ورته حاضرسي. خومشران دزمري غارته په ننوتلوکي زړه نازړه وه اوبېرېدل، چي غالبا به بیرته ځني راونه وزي. ځکه يې موضوع همداسي پرېښووله .

دافغانانوپه منځ کي مرغان اوحیوانات په پراخه توګه پردوو ډلو «حلال اوحرام» وېشل سوي دي . هغه چي دخوړلووړدي اوهغه چي نه دي . عموما داسي ويل کيږي، هغه مرغان اوحیوانات چي د غوښواومرداريوپه خوړلو ژوند کوي ، خورك يې روانه دئ . هغه مرغان یاحیوانات چي دخورك اراده يې وکړي، دغاړي پرې کولوپه واسطه وژل کيږي . پردغه کاربايددخدای نوم په مکررډول وويل سي. له دې پرته يې غوښه حرامه اوخوړل يې ګناه ده. که یومرغه وېشتل کيږي، مسلمان چي دوېشتلوپه نیت پرهغه دټوپك ډزکوي ، بایدله ډزسره سم دخدای نوم تکرارکړي. که په دې ډول له وېشتلوسره جوخت مړ سي، خوړل يې روا دي . ماچي به پخپله ښکارکاوه، ملګروبه مې هرمرغه چي رالوېدی ،سمدلاسه به يې غاړه وربرې کوله اوپه عین وخت کي به يې پورتنی فارمول تکراراوه . ويل به يې چي یولږڅه ساه ورپکښې پاته وه ځکه يې نو«حلال» کړ. خوکه کوم مرغه به درااخیستلوپه وخت کي مړو، هیچاپه نه خوړ. که سپي اوبل هر«حرام» حیوان خوله خوراکي موادوته وروړي ، خواړه مردار دي او بايدونه خوړل سي. که يې ولیدل چي حیوان يې يوې برخي ته خوله ورووړله، هماغه برخه يې بايدپرې اوپاته يې وخوړل سي.سپیوته دغه رازدناپاکه حیوان په سترګه کتل کيږي اوداسي بايدتناوسي چي خوله يې له شی څخه ونه نښلي. بايدله هغه چاڅخه هم ونه نښلي،چي تناوکړی يې دئ . خوکه لاس یاکالي دسپي له خولې څخه ونښلي ، بايدککړه سوې برخه پرېولل سي .

ځني عسکراوغريب خلك چي سپی ساتي اوډېرېرګران وي، هغوی يې په ناولتوب کي ری نه وي .په ځني مواردو کي خوسپی دخپل خاوندپه بسترکي څملي اوپه ډېره مهرباني سره سلوك ورسره کيږي . ځيني دغه خلك خپلوسپيوته دځيني چلونوله ښوولوسره مينه لري. يوسپی به چي ديوسپاهي ملکيت و، ځان پرمړينه واچاوه، ګدايي به يې کوله ، دمخ پرپښوبه يې تګ کاوه اوپه بازارکي به يې دتمباکودوکان ته دلاس دسمال اوبوه ايکي وروړله اوبيرته به يې تمباکو راوړل . نورډول ډول چلونه به يې هم کول. دې سپي ته يې دغه رازورښوولي وه چي په خوله کي يولنډلرګی ونيسي . دلرګي په دواړوسرونوکي به دوه کوچني الکين ځراغونه ځړېدل اودی به دشپې دخپل خاوند په مخ کي روان واولاربه يې ورته روښانه کوله .

خلك دغوښي درواکولوپرځنګ دخدای نوم پرټولونوروشيانوباندي وايي . کاريګران دکارترشروع وړاندي يادماشين دنوي چالانولواوپه قالب کي دويلي سويوفلزاتوترتويلودمخه دخدای نوم وايي . په دې ډول دوعا به کارسم اوموفق کړي. دوی دغه رازترخوړولو وړاندي او وروسته همداکارکوي اوکله چي پرماشوم نوم ږدي، لومړی يې په غوږکي دخدای نوم ورته وايي (۸) اووروسته نوبياماشوم په هماغه نوم ياديږي .

کله چي يومامورته خپله مېرمن دماشوم شېريني راوړي، نومړی هماغه شيريني اوسوغات اميرته وړي اودموضوع په باب خبرورکوي . روسته ځني غواړي، چي دماشوم له پاره يونوم ورټاکي . داميرله پاره دايودود ګرځېدلی، چي دخپلومامورينواو شاوخواکسانوپرماشومانو نومونه کښېږدي.خوکه نجلۍ پيداسي ، ملکه سلطانه نوم وربانند ږدي . دزوی زېږېدو پروخت اميردزوی وپلارته که پرګران وي ، اوغواړي عزت يې وکړي، سوغاتونه ورکوي. ځکه دزوی زېږېدل دډېري خوښی خبره ده. دنجلۍ په مورد کي خبره په پټه خوله تېرېږي ځکه په افغانستان کي ښځي لېرارزښت لري اوکله کله خودنجلۍ پلاردخوورخوله پاره خپلي مېرمني ته ځکه نه ورنږدې کيږي، چي په دې ډول خپله ناخوښي وښيي اوښځي ته له دې امله، چي دده له ارزوګانواوغوښتنوسره سم يې عمل نه دئ کړی ، خپل خپګان ځرګندکړي.

کله چي دامیریوه ماندینه امیندواره سي ، دتوپودویشتلو ،آتش بازی ( اورلوبي ) مېلمستیااونوربټول ټك وټوك له پاره تیاری ونیول سي . دهلك په صورت کي داټول شیان منځ ته راځي. خوکه نجلی سي نوبیادخوشالی هیڅ کوم کارنه پېښيږي اوښځه خوشي پرېښووله سي، چي پرخپلونامېنديوباندي یوازي وژاړي . له دې امله ټوله ښځي دهلك هیله لري اودوعاوي کوي، چي په دې صورت کي به دماشوم پلار له دې سره وګوري اوددې به ډېرمراعات کیږي ،هرڅوك به مبارکی ورکوي اودابه له دغه کوچني جشن څخه خونداخلي.

په افغانانو کي دماندینوتعدد عام دئ . ځني چي یوازي یوه ماندینه لري ، له دې امله وي، چي دنورو وس نلري. یابه يې ماندینه په مصممه توګه باندي «غاوره» وي اوکورته به دبلي مېرمنې دراتګ ممانعت کوي. ماته ویل سوي دي ، چي په ټولو حرمونوکي دبېلابیلو مېرمنوترمنځ دبرتری له پاره یوه نه تمامېدونکې مبارزه روانه وي . همدغه سبب دئ، چي ښځه پرخان باندي دسړي دمیني ټینګولو په خاطرکوږو، دمیني څانښتونو اونوروجادویي هنرونو ته مراجعه کوي. همدغه دبرتری له پاره جګړه اوورسره سم حسادت ددې کار اساسي علت دئ، چي ولي زهري موادوته چي کشف کېدلای نسي ، دومره زیاته تقاضاسته . زماځخه پخپله غوښتنه سوې، چي که داسي زهررامعلوم وي، یايې لرم، چي عادي ناروغي اودهغې اغېزې لیري کولای سي . یووخت خو لا د داسي کوږو اوتعویذپوښتنه هم راځخه وسوه، چي دیوچامینه زیاتولای سي. خو ما يې یوشی لاهم نه درلود. که څه هم دهغوله پاره زیاتي پیسې راکول کېدلې . غربي جادوګره به بې له شکه په کابل کي ډېرزیات مراجعین ولري اوښه بیزنس به وکړي . وایي چي قرآن نارینه ته دڅوښځودلرلوواك ورکړی دئ. خوداسي کسان سته چي په قرآن باندي دپوهېدلوادعالري، اووايي په قرآن کي لیکل سوي، چي یو سړی هغه وخت له څلورو ماندینوسره واده کولای سي چي «له ټولو سره په مساوي توګه مینه ولري » اوځرنګه چي داممکنه نه ده ، ځکه يې واقعي معنادیوې ماندینې سپارښتنه ده . دپیغمبر (ص) په باب ویل کیږي، چي دی مجبورسوتریوې زیاتي ښځي وکړي .دده په موردکي ویل کېږي، چي دخپلي ګراني مېرمني پرته يې نورې داسي ښځي وې، چي هیڅ رازحمایه يې نه

درلوده اوده په دې خاطرخانته واده کړي، چې کور ورته برابرکړي.

افغانان ټوله مذهبي متعصبین Fanaticsدي. که څه هم فاناټیسیزم بې تل ښکاره نه وي. خوخاص مواردغواړي، چې یودم راڅرګندسي. دوی په دې عقیده دي، چې ددوی دین دعیسویت پرځای راغی اوعیسویت دیهودي دین جانشین سوی دئ. خدای دانسان دغوښتنوله پرمختیاسره سم په بېلابیلووختوکي نوی دین منځ ته راوړی دئ. ددوی دین چې ترټولو وروستی دین دئ، هروهرو بایدربښتینی دین وي. داداسي یوهیوادنه دئ، چې عیسوي مبلغین دې زیاته اغېزه پروکړي.

## دشپاړسم څپرکي لمنلیکونه

( ۱ ) په اصل کي د « اسلام » پرځای « مسلمان » راغلی دئ . دافغانانودین اسلام دئ اوداسلام دین پیرو« مسلمان » بلل کیږي . ( پښتو ژباړونکی )

( ۲ ) دا یو راز تسبیح ته ورته داني دي . ( م.ع )

( ۳ ) مولف په دې برخه کي له مبالغې کاراخیستی دئ . داکاریې له ځینومتعصبوکسانوڅخه لیدلی وي ، خو عام مسلمانان داسي نه دي . ( پښتو ژباړونکی )

( ۴ ) دقرآن کریم فارسي تفاسیر ( ترجمې ) دمولف تر ژوند څو پېړۍ وړاندي څپاره سوي اوپه افغانستان کي موجود وو . ( ژباړونکی )

(۵ ) دحضرت پیغمبر (ص ) مبارك مرقدپه مکه شریفه کي نه ،بلکي په مدینه منوره کي دئ ( م.ع ) .

(۶ ) دامسجدعیدگاه مسجدجامع ده چي د ودانولو کار یې د ۱۳۱۱ ق کال دشوال پر شپاړسمه داستاد محمد اکبر په معمارۍ شروع سو او د ۱۳۱۵ ق کال دجمادی الاول پر نهمه پای ته ورسېدی . دغه مسجد جامع ۷۷ گومبتي ، مناري او ۴۴ رواقه لري چي ټول مساحت یې ۴۳۰۶۸۰ فوټه کیږي . (دافغانستان ښېنلیك ـ ۲۱۶ مخ ) .

( ۷ )د رومن کاتولیکانو یوه مذهبي ورځ ده ، چي دنومبر له دوهمي سره برابره ده . په هغو کلونوکي ، چي دنومبر دوهمه دیکشنبې ورځ وي ، دا ورځ دنومبر په دریمه نمانځل کیږي . زیاتره کاتولیکان عقیده لري ، چي په دغه شپه د مړو ارواح خپلو کورونوته حاضرېږي او له ژوندو سره په ډوډۍ خوړلو کي برخه اخلي . په انگلستان کي عوام خلك په دغه شپه هدیرو ته ځي . پر قبرونو باندي شیدې پاشي او په نیمه شپه کي دماخستن ډوډۍ مړیو ته پرېږدي . مسلمانان د میاني ( ذوالحجې ) اتمه د مړیو شپه بولي او په دغه شپه مړیو ته دوعاوي کوي ( م.ع ) .

( ۱ ) اول په غوږکي دخدای نوم یادول یاآذان کول له نامه ایښوولوسره متصل نه وي . په غوږکي آذان له زېږېدلوسره سم کیږي اونوم کېدلای سي څوورځي ورووسته پرکښېښول سي ( م. ع ) .

# اوولسم څپرکی

## سیاسي اوضاع

**دهیواد دمشرانو په وژلو سره دخپل زوی دواکمنی په تامینولو کي دامیر پالیسي - بې سبکه عایدات - ولي امیرله لارډکرزن سره په هندکي ونه کتل - پرپوله باندي دروسانو تیری - په افغانستان کي دروسانو نفوذ - دافغانستان او هند پرلوردروسانو د پرمختګ خطره - افغاني واکمني ، دبې نظمو قبایلو د تنظیمولو ډېره ارزانه وسیله - دافغانستان دښه وسله وال کولو پالیسي - له انګرېزي حکومت اوعدالت سره مینه - پرخلکو باندي دانګرېزي اجتهانو اغېزه - ولي په افغانستان کي ریلوې نه خوښېږي - ولي غني کانونه لاس نه وهلي پاته دي - دبلوچستان په ساحل کي دامیرله خوا دسمندربندرغوښتل - دامیرعبدالرحمن کورنی سیاست**

---

دامیرعبدالرحمن سیاست دخپلي پاچهۍ له هماغه پیل څخه داو،چي د هغو کسانو له شره څخه په یوه یابله لارخان وژغوري چي په هیواد کي زیات نفوذ لري اوکولای سي په راتلونکي کي دده ګټوته خطرپېښ کړي . داسیاست داسي نه و ، چي په څرګنده ول او په یوه وخت کي پر ډېروکسانو عملي کېدی ، بلکی ورو ورو یې ټول هغه کسان، چي ده ته دستونزوسبب وو ، له منځه وړل . په هیوادکي وروستی متنفذ شخص عمومي قوماندان غلام حیدر(۱) وچي دامیردپاچهۍ په وروستیووختوکي یې هرکله کابل ته راباله. خوهغه به دابلنه تل په یوه یابله پلمه تېروله . نوموړي په پای کي دهندوستان پولي ته نږدې پخپله پوسته کي مړسو. هغه وخت یولړ کرکجني نخښي نښانې څرګندي سوې اوهغه دا چي دده شخص حکیم[طبیب] چي یوسیمه ییزډاکتراودده دوروستی ناروغی پروخت ورته حاضرو ، کابل ته راوغوښتل سو .امیرډګروالی رتبه، پیسې اوسوغاتونه ورکړل اوعموما یې زیات نازاوه . دهغوکسانودله منځه وړلوپه برخه کي، چي دامیراندېښني ورګرځېدل، یوه طریقه داتره دداسي شخص له خوابیان سوه ،چي څوواره دغه کارته موظف سوی و . داسړی مسلمان نه و اویوه شپه یې وروسته له هغه چي زماشراب په پېخروڅېښل، خپل تجارب راته بیان کړل . دی سخت نشه واوماګومان نه کاوه چي بل وخت دي یې ددغسي مسایلو په باب د څه ویلو جرات کړی وای . زه به دی د خپل اصلي نامه پرځای

«ی» وبولم ( ۲ ) . ی» وویل، چي امیریوه شپه ناوخته وروغوښتلم او د یو چا پوښتنه یې راځخه وکړه . دغه سړی دلوړي رتبې څښتن اوده پېژانده. «ی» ته وویل سوه چې دګارډکـ ـان ته ورسي . په هغه حکم کي لیکل سوي و چي له خان سره دوولس تنه عسکربوزي اوددغه شخص کورته ولاړسي . په دې پلمه یې له کوره راوباسي، چي امیرغواړي یوه عاجل کار لپاره په خصوصي توګه ورسره وګوري . بیایې نودزاړه ښارویوې ټاکلې کنډوالې ته بوزي . کله چي یې سړی نوموړي ځای ته ورساوه ، بیانودیوبل کاغذله لارښووني سره سم عمل وکړي، چي امیرده ته ورکړی و . «ی» له امرسره سم دسړي کورته ولاړ . دوولس تنه عسکریې ترکوردباندي ودرول اودی دننه په دروازه کي ورته معطله سو. دروازه وان دکورخاوندته وویل، چي «ی» دي کوم عاجل کارله پاره غواړي . تراجازې ورکولو ورروسته ، دی له نوکرسره هغې خونې ته ورخوت ، چي نوموړي شخص پکښې له خپلوملګرواوخپلوانوسره یوځای ناست واوچای یې چښلې . کله چي یې«ی» ولید ، څنګ ته یې وروغوښت اوچای یې ورسره وچښلې. «ی» له امرسره سم سړي ته په غوږکي ورو وویل، چي امیرصاحب غواړي دېرمهم کارله پاره درسره وګوري اوښه به داوي، چي امیرپه انتظارکي پرې نښودل سي . سړی ورته وویل، چي دی به حرم ته ولاړسي اوخپلي کورنۍ ته به دوتلوخبرورکړي اودېرپه خنډېږي نه . خو«ی» ورته وویل، چي همدومره معطلي هم په کارنه ده . امیرسمدستي غوښتی یې اودوی ژریوځای سره راووتل . کله چي دوی تردروازې بهرراووتل ، عسکرپرراتاوسول .سړي د عسکرو د راتاوېدو پوښتنه وکړه . «ی» ورته وویل، چي امیردده دعزت له پاره ځکه ګارډ رالېږلی دئ، ځکه چي شپه ناوخته ده . دوی رارهي سول .عسکریې پردواړو خواوو روان وو.درود پله ته راورسېدل ، پله ته ورتاوسول ځکه دښارزړه کنډواله چي«ی» ته یې دسړي دبېولوحکم سوی و ، پرهابله غاړه پرته وه . سړی په خان کي بدګومانه سو اوپوښتنه یې وکړه ،چي ولي له قصرځخه لیري ځي .غوښتل یې لارچپه کړي خوعسکرورته رانږدې سول او«ی» معذرت ځني وغوښت، چي امیرله همدې لاري حکم کړی دئ اودی هم قصرته له تللوپرته بله کومه اراده نلري . دوی باید ګښته بیرته تر رود راواوړي اوخپل هدف ته ورسیږي .سړي نو

څه ونه ویل اودوی هماغسې روان وو . کله چې لارله قصرڅخه نوره هم لیرې سوه ، سړی له وړاندې تګه انکاروکړ.خوکله چې «ی» ورته وویل ،داامیرحکم دئ اومقاومت ګټه نلري .وروسته نودی هم ورسره رهې سو. په پای کې دوی هغه کنډوالې ته، چې یو زوړ څاه پکښې و، ورسېدل . اوعسکروته دسړي د نیولو اشاره وسوه.سړي ته ددوی اراده معلومه سوه اوسخت مقاومت یې وکړ . خو بالاخره له ښونولوېد اوپرمخکه غوځارسو. افسراوسړي یې راغلل، چې نورنوبایدڅه په وسي .«ی» دامیرکاغذراویوست ، اورلګیت یې ولګاوه او تر لوستلو وروسته یې افسرته وویل، چې دسړي سربایډ له تنه بېل سي . افسردسړي خواته ورغی ، توره یې کش کړه ، سړی یې پرمغزی وواهه اوپه پای کې یې خپله وظیفه سرته ورسوله .دسړي شدیدمقاومت دامرپه اجراکیدوکې ستونزې پېښې کړې. خوپه غاړه کې دېې له لاري دوینې ضایع کولو بېهوښه کړ.سراوتن یې وروسته زاړه څاه ته وروغورځاوه اودومره خاوره یې پرواړوله چې ټولې نښانې یې پټې کړلې . دوی قصرته ستانه سول اوله رسېدوسره سم «ی» امیرته دامرداجراکولوریوټ ورکړ. امیرورویل «ښه کاروسو» اوده ته یې کورته دتګ اجازه ورکړه .

«ی» وویل په هماغه شپه، چې به یې په بسترکې هزوارسترګې پټې کړې، دنوموړي سړي سرېه یې، چې له تنه بېل سوی و، سترګوته جګ ودرېداوڅوشپې یې ترخوب وړلودمخه عین څه لیدل . تردې پېښې څواوونی وروسته دوژل سوي شخص زوړی امیرته ورغی اوورته یې وویل، چې «ی» یوه شپه ناوخته دده پلار ددې لپاره چې امیرصاحب غوښتی دئ ، له کوره ویوست اوترننه پوري یې درک نسته . امیرورویل، چې دارشتیادي.خوددې له پاره چې زړه یې ښېغمه کړي،ورته یې زیاته کړه چې پلاریې دیومخصوص مقصدله پاره یوه اوږده سفرته استول سوی دئ . خدای خبرچې بیرته به راستون سي. دسړي خپلوان یې په دې ډول ترخان تېرکړل. خوهغوی ژړدنوموړي دورکېدوپه سرنوشت پوه سول اودخان ساتنې په خاطرېې څه ونه ویل. څکه داربدل چې دوی به هم واستول سي اوبیابه راستانه نه سي .

دهغوکسانوپه له منځه وړلوکې چې امیر ته به د ستونزو پېښولو سبب سي ،

دده هدف یوازي دانه و، چي دخپلي پاچهی په بهیرکي دستونزومخه ونیسي، بلکې مقصدیې تخت ته دخپل زوی دسوله ییزرسېدلوله پاره لاراوارول هم و. اوددغوټولو کاروپه ترسره کولوکي یې له احتیاطه کاراخیست خکه ډاربدی، چي ایوب خان یایعقوب خان به بیرته هیواد ته راستانه نسي اوپه راتلونکي کي به دزیات شمېراغېزمنوکسانوپه راغونډولوسره دخپنوجدي ستونزوپېښوولو سبب نسي . داچي امیرخپل ټول زامن په کابل کي ساتلي اوددې پرخای، چي دپخوانیوامیرانوپه شان یې په بېلابیلوولایتوکي والیان کړي وي ، هغوی یې دمختلفوسرکاري دفترونو په سرکي مقررکړي وو، دامیرمطلب داو،چي ترخپلي مړیني وروسته یې دګډوډیومخه نیولې وي . خکه دپلارترمړیني وروسته د واکمنی اوبرتری له پاره دزامنوپه منځ کي دپخوانیوجګړویوعلت داو،چي هرزوي دیوه ولایت دوالي په توګه پیسې اولښکرپه واك کي لرل ، چي تخت ته یې د رسېدو په مبارزه کي مرسته ورسرکوله .څرنګه چي هروروردتخت شوقي وخکه نوتل جګړې پېښېدلې اووخت په وخت په هیواد کي دزیاتو وینو تویېدلو او بدمرغیو سبب کېده.

دافغانستان تاریخ ښیي، چي څرنګه ورور له وروسره جګړه کړې،زامنوله پلارسره ، یوه هابل دواکمنی له پاره دشدیدي غوښتني په حکم وژلی یاړوندکړی دئ . دامیردوربیني دده دمړیني پروخت ددغه راز وحشتونو د بیا تکرارېدو مخه نیولې وه .کله چي دی مړسو،دتخت له پاره دکاندید په توګه له سردارحبیب الله پرته بل هیڅ چانس نه درلود، خکه له ډېروکلونوراهیسي مشرسردارو او په زیاتوسرکاري مواردوکي یې دپلارپرخای، چي زیاتره به ناروغ و، نمایندګي هم کړې وه. ده ته دهیوادمخکښوکسانودداسي کس په سترګه کتل، چي تخت ته مناسب دئ اوپه نتیجه کي یې دهغوملاتړکاوه . دې کاراوپرځنګ یې دپلارله مړیني سره جوخت دده له خوادارګ مانی سملاسي نیول، دی پرحالاتوکابوکړ.خکه په ارګ کي یې دخزانې اوعصري وسلواومهماتودزېرمو کنټرول ترلاسه کړاودخپل دوولس کلن ناسکه ورور محمدعمرخان له مورملکه سلطانې پرته نورداسي څوك نه و، چي ده ته ستونزي پیښي کړي. دا یې سمدلاسه د ارګ له حــــــرامسرایه ، چي امیرخپلي ګراني

ماندينې له پاره جوړکړی اودابه معمولا پکښې اوسېدله، وايستله اومجبوره يې کړه، چې پخپله خصوصي ماڼۍ ګستان سرای کې چې دښارپه څنګ ده افغانانوکي واقع و، ژوند وکړي . دلته يې داپه ښکاره دامېرمرحوم دګراني ماندينې په توګه په ډېرعزت سره خوندي کړې وه، خوپه واقعيت کې بندي وه. څکه ټول غټ اوباوري نوکران يې ځنې اخيستي اوپرځای يې نورکسان دامېرپه خوښه ورته ټاکلي وو. هيچاته اجازه نه وه، چې له دې سره وګوري .له اساسي دروازې پرته يې دماڼۍ ټولې لارې په ښښتوتړلې وې . اميراوسردارنصرالله خان پخپلو مخصوصو اوعاجلواوامروکي مېرمن ډالي Mrs.Daly ته، چې په کابل کي ښځه ډاکټره وه ، يادونه کړې چې له ملکې سلطانې سره بايدونه ګوري اونه بايد ورسره اړيکي وساتي . دوی ظاهرا له دې بابته ډارېدل ،چې دابه ملکه ولمسوي چې دهندحکومت ته ليك وليږي اوپه هغه کې به پرتخت باندې ددې دخپل زوی کښېنولو له پاره دهغومرسته وغواړي . که دهندحکومت ددې ليك ته کومه خاصه پاملرنه هم ونه کړي ، بياېه هم دغه شان عمل نوې اميرته دهغوی له نظره زيانمن تمام سي . دغه رازټول هغه مامورين اوداردو افسران چې دنفوذ څښتنان اودملکې سلطانې لوري ته متمايل کسان وو ، دنوي اميرلخواپېرودل سوي اورتبې يې ورلوړې سوې .

سره له دې هم لښکرله ناخوښيه سره خوټېدی اوداوېره وه چې هرومروپاخون پېښيږي .خودتنخواه دزياتوالي ژمني ټول شاوخواکسان له څرګندي سرغړوني څخه وساتل . که څه هم دزيات وخت له پاره ښه پوره ګونګسی موجوداو عسکروپه خلاصه خوله ويل، چې دوی له حکمرانۍ کورنی پرته دبل هرچا حکومت مني. دخلکو په منځ کي پرحکومت باندي دنه ويساغوښتنه دهيواد په ببلابيلوبرخوکي له تشدد سره يوځای له برملا لوټماری څخه څرګندېده . دارازکارونه خوراډېرکلونه چانه پېژندل اودقانوني اداري په وړاندي يې دخلکوبې تفاوتي څرګندوله . دموجودحکومت پرضد اعتراض دهيواد پراوسېدونکو اروپايانو باندي په حملوکولوسره ښکاره کېدی . يوتن دخپل ساتونکي ګارډ په واسطه دشاله خواوويشتل اووژل سو. داکاردومره بې ارزښته تلقي سو، چې سړي ته شك پيداکېدی چې آياداکار به دګارډ خپل ابتکارو ، که

به دهغو کسانو لخوا په دې نیت لمسول سوی و، چې له خپل حکومت سره یې دښمني درلوده او په دې هیله و چې له اله گوله کوونکو سره دیوځای کېدو له لاري دگډوډۍ عامل سي .

له کابل څخه زمادراوتلوپه وخت کې دهیوادعایدات ایله دومره و، چې دلښکردتنخواه له پاره دي کفایت وکړي . له دپروکلونوراهیسې د لښکرو لگښتونه ورو ورو زیاتېدله اواميرپیسوته زښته زیاته اړتیادرلوده . دهندوستان له حکومت سره هم دهغې مرستې د دوام په باب کوم انتظام نه ونیول سوی، چې پخواني امیراواوسني واکمن ته ورکول کېده . نوی واکمن دده له پلارسره دجوړسوي تړون دموادو دتنظیم غوښتلو جرات له دې وېري نه کاوه چې مبادا پرې پښېمانه نه سي . لارډکرزن له امیرسره په پښوروکې دکتلو له پاره پر خپلو غوښتنو ټینگ ولاړو چې په دې ډول ټول مسایل په شخصي خبروکې حل کړي. خوپه هغه وخت کې امیرته داسترخطرو، چې له کابل څخه په داسې حالت کې ووزي چې خلك یې ناآرامه اوپه هیواد کې دننه په حکومت کې خوراډېرومهمو مسایلودسملاسي حل غوښتنه کوله . روسي حکومت ورته دډېرومخکنیوتړونو، توپکواوسهماتو ورکولو وړاندیزکړی و، خوبیرته واخیستل سو. ځکه روسان بېرېدل اوبې باوره سوي وو اوپرافغاني خاوره باندې دهغوی ټېري خلك دډېرخښمولي وو. خینې ماموروین له دې سره سره دروسانو دمرستې پلوي ښکارېدل . دوی ویل، چې که انگرېزي حکومت ددوی له هیوادسره مرسته ونه کړي ، نورسته چې ویې کړي . دغوکسانودروسي مرستې منلوته دامیر د هڅولو تلاښ کاوه .

په همدې وخت کې و، چې یوافغاني جنرال له روسي سرحدڅخه راغی اوویل یې چې له ځان سره یې دوه تنه روسان دمخوري افغاني کورنۍ دغلام بچه گانوپه جاموکې راوستلي دي . ددې خبري نوردرك په مشخصه توگه معلوم نه سوخوپه دغه وخت کې ویل کېده، چې امیرپه هندکی کې خپلي ددوبي ماڼۍ ته، چې دښاردجنوب په شپږمیلي کې پرته ده، دیودوو اوونیو تېرولو له پاره تللی دی اوله ځان سره یې له یوځو باوري مامورینواوملگروپرته نورهیڅوك نه دي بېولي. ده غوښ امرکړی و، چې هورې به هیڅوك دده نه مزاحم کیږي او نه به بل

څوک ورلېږل کېږي . دغه جنرال وروسته په ښارکي خورازياته اندازه روسي پيسې تسعيرکړې اوله دغه وخت وروسته په بازارکي روسي نوټونه رانيول کېدلای سوای .تخت ته له رسېدوراهيسي دالومړی وار و، چي اميردارګ له کلاپرته په هندکی یاکوم بل ځای کي اوسېږي اوهيڅوک دي په مشخص ډول نه پوهيږي چي څه پېښه ده؟ په رښتياسره هم هيڅوک نه پوهېدل، چي اميرپه هندکی کي څه کول؟ دايوغيرمعمول کارو، ځکه چي له خپل حرم سره له اوسېدو پرته، دامير پرنورو ټولو کارو باندي په عام ډول خبري کيږي اوخلك ښه په خبروي، چي دی څه کوي ؟

څرګنده وه چي داميرموقعيت تخت ته تررسېدلووروسته دځه مودې له پاره ډېرسخت و .اوس لاهم دخطرځيني عناصرسته، چي بايدليري کړل سي . دی د خپل پلارپه شان نه تجربه لري اونه هم پرځان ويسا . داچي دی به په بحراني حالاتوکي څه وکړي ،اوس يې اټکل نسي کېدلای .خوپه هيوادکي دانارشي اوبغاوت جوړونکوسره ملاترنسته اوزمانه به غالبادې پوښتني ته خواب ورکړي .

افغانستان په مکرر ډول د روسيې او هندوستان ترمنځ بې طرفه هيواد Buffer State په توګه ګڼل سوی دئ. خودا داسي نااپېيلتوب دئ، چي دهرلورواکمن يې په چټکی سره له منځه وړلای سي . زياتره خلك دمځکوله لوري ماليې څخه دناراضی په حالت کي دي اوډېنډيانو په توګه دکارتلاښ کوي. خوراکي موادکال په کال ګرانيږي ، ناروغی عامي دي اوخلك داسي ښکاري، چي دهربدلون په تېره بيادبهتربدلون هرکلی به وکړي . ترڅو،چي امير دخپل پلارپه شان درك ونلري، يرغلګرخواګونه به داميرله خوا د جهاد درسالوله پراخي وېشني سره سره پخپل ورانډي يوموټی افغانستان ونه مومي.

اميراوشاوخواکسان يې پرجهاد (مقدسه جګړه ) باندي زياته تکيه کوي، چي هيوادته ديرغلګرلښکردراتګ په وخت کي دملايانو له خوا تبليغيږي .په دې باب چاپ سوي رسالې په ټول هيواد کي وېشل سوي دي . خوله اوسنيو اوضاعو څخه ښکاري، چي خلك دي سره له دې چي په زياته اندازه متعصب Fanatic دي، جګړې ته زړه ښه کړي اوداوږدې مودې له پاره دي وجنګيږي . لښکرپه عصري مخکنيوتوپونو، توپکو او مهماتو سمبال دئ ، خوعصري نځښي

نښانې ډېرې محدودې دي اوپه دقت وسرښتـه کې له نوروهېوادوسره سيالي نسي کولای . لښکردغه راز دهغودووخواکونو په پرتله چې دواړو خواوو ته يې پراته دي ، (روسيه اوهند ـــ م.هـ ) په بشپړه توګه روزل سوي هم نه دي ، او افسران يې له کوايت Rank -and- file پرته نوره عصري پوهنه هم نلري .
دهرېرغلګرلښکرپه وړاندې دجدي مقابلې له پاره يوازنۍ هيله چې له اميرسره سته.هغه داده ، چې دهيواد غرني موقعيت به دلښکرودخوځښدو اودرنوتوپونو د لېږدولو په مقابل کې طبيعي مشکلات پېښ کړي اومهاجم لښکرته به دااشونې وي، چې ترلومړي خنډورستـه دې دنوري جګړې خطرپرخان ومني . دابه هم ممکنه وي له چريکي لاروچارو دي، چې په دوی کې رواج لري کارواخيستل سي . يعني کوچني قطعات سره پرې کول اودشاله خوايې دارتباط مزي ور مغشوشول. څومره چې لښکرغټيږي ددغې لارې اغېزمنتوب هم ورسره کميږي .
دبې نظمه قبايلودتنظيمولو ډېره ښه وسيله داده، چې افغانان خپل سرته پرېښوول سي چې ، پرخپلوخانو پخپله حکومت وکړي . دبغاوتونو اوبې نظميو دارامولو له پاره ددوی خپلې لارې چارې ډېرې بې رحمانه دي. ځکه نوزياتې اغېزمنې اوغوځې دي . له خلکو سره ددوی چلند دنورو اولسونو له بشري لاروچارو سره توپيرلري. اميرعبدالرحمن دخپلې اداري پرضددبغاوتونوله امله دخپل ملت دزيات شمېرنارينه وو ، ښځواوماشومانو تروژلوورستـه پاته کسان د هيواد ډېروليروبرخوته په لېږدولوباندي مجبورکړل، پخواني تشکيلات، يې له منځه يووړل اوله نوروخلکوسره دمناکحت له لارې يې ددوی زاړه دودونه ور محوه کړل او ورو ورو يې په چاروکي نوي نظم راووست . که انګرېزان ( يا نور خواکونه ) غواړي دغه هيواد اشغال کړي اوداشغال په لښکرکښيږيې وارزوي ، نودې کارته غالبا دهند دلښکرپه شان اردو په کاردئ اوضروري ده چې خلك بايد ترهغه وختـه.په نظم کې وساتي، چې نوی نسل رالوی سي اودچارو دنوي حالت له منلو سره خانونه عيارکړي .
که په پام کې وي چې له افغانانوڅخه دروسيې تېري ددفع کولو دوسيلو په توګه کارواخيستل سي نوبه بې له شکه دابهتره وي، چې هغوی په نويوسلوښه تراسمبال کړه سي. خوله بلې خوا د انګرېزانو پرضدددغوسلودکارولوامکان هر

وخت سته . څکه افغانان هرهغه چاته، چي ددوی دخپل هيواد اودين نه وي ، ددښمن په سترګه ګوري او دااحتمال سته، چي هيڅ رازترون دي په پام کي ونه نيسي اوله هري مناسبي موقع څخه دي دخپل هيواد اوخپلوخانونه په ګټه استفاده وکړي . کله چي سرحدي قبايل راوپاڅېدل اوتيراه کمپاين ته اړتيا پيدا سوله ، اميرمرحوم کابل ته نزدي دغرونو ترشا دترانسپورټ له پاره څوزره څاروي راغونډ کړل. که څه هم دده په پوله کي پاڅون بې له شکه دده خپلو ګټوته دخطرې په صورت کي دلازمي احتياطي تدابيروغوښتنه کوله ، خو ده تر اندوس هاخواته دانګرېزانوشړلو هيله لرله اوترپاڅون ډېرلږوروسته په بازارکي د پېښور دبيانيولو اوازه خپره سوه . پېښور په ښايي يوه پيا وړي سيمه وي. څکه دغه سيمه تل دافغاني قلمرو يوه برخه ګڼل سوې اوادعا کېږي، چي انګرېزانوله دوی څخه غلاکړې ده .

په عمومي توګه دانګرېزي واکمنۍ له عدالت اومساوات سره دخلکو مينه سته .دامينه زياتره له هغوقضيوسره ارتباط لري، چي په هندکي داوسېدونکوله خواددغه خای دژوند اوآزادۍ په باره کي ويل کېږي . خومقامات له هغوکسانو سره ډېرسخت چلندکوي، چي له انګرېزانو يې ښه راخي . دوی ښېرېږي چي انګرېزي حکومت ته ددوی داعمالو په باب اطلاعات ونه رسيږي اوهرهغه څوک که په رښتياياد رواغوسره انګرېزانو ته ددغه راز رپوټ په ورکولو تورن سو، مجرم ګڼل کېږي اوبالاخره دمجرم په شان چلند ورسره کېږي .

په کابل کي برتانوي استازي اوورسره کسان تربنديانو لږڅه ښه دي . څکه دوی له هيچاسره نه ګوري ، له خلکو سره خانونه ګډولای نسي او مجبوردي دکابل شاوخواته خپل مسافرتونه محدودکړي. ټول هغه کسان، چي له برتانوي استازيوسره يې کتلي وي ، بنديان سوي اوپه سلګونو تنه صرف په دې تورورژل سوي، چي دحکومت داعمالو رپوټ يې کړی دئ . داستازي دکور ددروازې مخامخ دسړک پرهابله غاړه يې ورته افغاني جاسوس ظاهرا دسماوارچي په شکل ورته کښېنولی وي (کورترسړک لږڅه شاته واقع دئ ) . که څه هم يوڅوک به دغه خای ته په ورتګ سره کوم مقصد ونلري. خوکه يو څوک حتی څومتره نزدې هم دغې دروازې ته تېر سي ، دی يې کوتوال ته رپوټ ورکوي . او خلك اوس دغه

کور ته له نږدې کېدلوڅخه دومره ډاربدلي دي، چي له ډېري فاصلې څخه لیري ځني تېرېږي . اوهرچاته که خپل ژوند ارزښت ونلري ، نوپه بازارکي دي د استازي له اړوندوسرپوسره خبري وکړي .

دغوټولوشیانو ته، چي په زیاته اندازه پېښېږي اودانګرېزي حکومت دګټوپرخلاف دي، باید اشاره وسي اوهغوی بایددافغاني واکمن په واهموپوه سي . خوله کوموشیانو څخه، چي ماپه دغه هیوادکي ولیدل یامي واورېدل ، ډېرلږ به داسي څه وي، چي هغه دي دانګرېزي حکومت په ګټه وي .که وي هم ،هغه به یوازي یولږڅه وي . همدغه سبب به وي چي بهرته دځینو پېښودخپرېدو مخه نیول کیږي او افغاني واکمنان لازمه بولي خلك دخپل هیواد دښمنانو ته د هرراز خبرونو له رسولو څخه وډاروي . ځکه نو دوی هرهغه څه، چي ددوی نه وي ، په پام کي نیسي.

دوی یقینا حق لري چي دخپلي بندیخانې دسیستم له رسواکېدو څخه وبیرېږي . ځکه په هغه کي د شکنجې له پاره دوحشت ټول انواع شامل دي . یوه بندیخانه تصورکړئ، چي له انسانانو څخه پرې سوي اندامونه دي ، دمړیو له ټوټه ټوټه سویو بدنونو سره یوځای شاوخوا پکښې پراته وي . دهغه کړاو تصوروکړئ، چي پردوی به تېرسوی وي .بدبوی اوخوړسکوټوله سیمه اخیستې وي اوبیانودهغو سلګونو تنو دماغي حالت تصورکړئ، چي بې له محاکمې بندیان دي اونه پوهیږي، چي ددوی جزابه څه وي اوټوله ورځ ددغوروحشتونو په منځ کي تېروي . که دکابل دبندیخانوحقیقت په عمومي توګه افشاسي ، نور هیوادونه به غالبا ددغه رازبربریت پرېندولو باندي فشارراوړي.

عامه خلك بیاهرڅه ته له خپل خاص نظره ګوري. هغوی په بندیخانوکي له کوم څرګند دلیل پرته ددومره سترشمېروژنو نسبت له برتانوي حکومت سره تړي . دوی وایي، چي انګرېزانوونسوکولای دجګړې له لاري دوی فتح کړي ـ اوس غواړي امیرته دمیاشتي په زیاتوپیسوورکولوسره هغوی په بل راز ووژني . خلك دغه راز په کابل کي دبالاحصار خبري کوي، چي لار رابرټس په ۱۸۸۰ کال کي دکیوناري اودهغه دملګرو له وژلووروسته له خاورو سره برابرکړ. کنډوالې یې تراوسه لاپاتي دي اوامیرته د تخت ورکولو د یوشرط په توګه بـــرتانوي حکومت

امرکړی و، چي دوباره یې ودان نه کړي . ددغو خلکو نظرکه څه هم غولوونکي دئ ، خو بیاهم داولس دزیات اکثریت نظردئ اودوی که څه هم ناپوه اوبې خبره دي، خو نظریې باید یومخیزه ردنسي.

امیرعبدالرحمن، چي یووخت زماسره پرسیاسي چارو بړغېدی ، راته وویل ده په روسیه کي دخپلو جاسوسانو پرلاس یولیك ترلاسه کړی چي راته وبه یې لولي. په دې کي دده هدف البته دانه و، چي زه دامعلومات له خان سره وساتم بلکي زه په داسبا هندوستان ته روان وم اوامیرته تردې بله ښه موقع میسره نه وه، چي دهند حکومت ته ددغه لیك په باب خبرورکړي . جاسوس لیکلي وچي ده دروسیې له یوه لوړرتبه مامورڅخه اورېدلي، چي دده حکومت په پام کي لري افغانستان ترهغو پوري پرخپل حال پرېږدي، ترڅو امیرعبدالرحمن ژوندی وي . خودده ترمړیني وروسته به یې ونیسي . کله چي امیرهغه لیك راته ولووست ، زیاته یې کړه چي که داخبره رشتیاوي لکه څرنګه چي دوی خیال لري ، رشتیابه نوهم دی مړوي، چي دوی دده دهیواد دنیولو هڅه کوي. سره له دې هم ده ته دااهمیت وړخبره نه وه. خکه ده له زیاتوکلونو راهیسي هڅه کړې، چي خپل هیواد یوموټی اوداسي پوړته یې وخېژوي، چي خان دملتونو په منځ کي وساتلای‌سي او تل دیوه خپلواك سلطنت په توګه پاته‌سي . که دده دمړیني تروخته دده هدف بشپړنه سي ، بیابه هم دده کارونه یوداسي تاداو وګرزي، چي پرهغه باندي به دده زامن اولمسیان لکه څرنګه چي دده ستره ازرو ده ، یوداسي دېوال راوګرزوي، چي هیواد دبهرني تېري دمخنیوي په وړاندي خوندي کړلای سي.

په ټولوماردوکي چي امیرعبدالرحمن زماسره پردغه شان مسایلوخبري کړي دي ، تل یې څرګنده کړې ده، چي دی په زړه کي دخپل هیواد ښېګڼه لري اوپه خینوو ختو کي به یې کله چي خپلو خلکوته دخپلولوړو ارزوګانوپه انتقالولوکي دخان ناکامي بیانوله اوداچي دده له ټولوهڅو حتی له ترټني اووژلو سره سره بیاهم دهغوعادتونو په له منځه وړولوکي ناکامه سوی دئ، چي دیووالي اوپیاوړتیا په لارکي یې خنډ ګرزېدلي ـ نوترسترګوبه یې اوښکي جاري سوې.

په دغه موقع کي چي پــــورته یې یادونه وسوه ، امیرپه افغانستان کي له

اورګاډي سره پرخپل مخالفت لږڅه روښانه کړلو چوله . ده وويل چې دى پردواړو خواوو دوه پيياوړي ګاونډيان لري . دواړه خواګونه دده هيواد ته داورګاډي له غزولو سره ډېره مينه لري اودی يې هروخت دخپلوخلکو دمفاد اوپرمختيا له امله د هغې دجوړولو په لارکي هڅولی دئ ، خوناکامه سوي دي. داسي فرض کړئ، ده لکه څرنګه چي هغوی غوښتل په خپل هيواد کي اورګاډی غزولې وای، نوبيا به يې ورته ويلي وای، چي دغه سيستم ترهغوپوري ګټورنه تماميږي ، ترڅو چي ددوی له سيستم سره ونه تړل سي. اوس نوکه دی خپل اورګاډی له يوه خواک سره وصل کړي ، بل به هم دغه شان ورته غوښتنه وکړي اودی به په دې صورت دجګړې خطرميسرکړي اوانګلستان اودهغه متحدين به له ده څخه يوازي دهغه څه انتظارولري، چي ددوی خوښ وي . له دې امله نوده وويل بهتره داده، چي هيواد هيڅ اورګاډی ونلري. که څه هم په دې کارسره به پخپل تجارت او انکشاف کي زيات تاوان وکړي.

اميرعبدالرحمن هيڅکله زماسره په دې باب خپل نظريات شريک نه کړل، چي هغه دي ظاهرا دده په هيوادکي دغني معدنونو درااېستلو پرممانعت لږڅه روښانه کړلو چوي .پرځای يې تل په دغوکانونوکي دکارکولوله بابته دخپل هيواد منفعت ته اشاره کوله اوزماترڅاکلولږوروسته يې ماته ليکلی امروکړ،چي د مسودهغوډبرودويلولو له پاره لازم کارونه پيل کړم چي دکابل په شاوخواکي موندل سوي وې . کله چي کارنيمايي ته ورسېد ، ده راته ترامرثاني پوري د کار دمعطل کېدولارښووني راوليږلې اووروسته يې موضوع همداسي معطله پرېښووله چي کار يې ترننه لاهم نيمګړی پاته دئ . ده ماته دهغه کاردبندولو له دليل څرګندولوڅخه ډډه کړې چي په سرکي يې له پيل کېدو سره زياته مينه درلوده .سړی صرف دومره اټکل کولای سي چي دی به ددې کارپه کولوسره دخپلوګاونډيو له لاسوهنې څخه ډارېدلی وي، چي ګوياا دده هيواد دومره شتمني لري.

اميرحبيب الله چي په ټولو شيانوکي دخپل پلارپاليسي تعقيبوي ، دهيواد دمنابعود انکشاف پرلوردهغه دپلاپلو منرالي زېرمو دموقعيت اوارزښت معلومولو په هاخوانورهيڅ نه دي کړي . په هرصورت اميرحبيب الله دافغانستان

په لویدیځ کي دبلوچستان دساحل پرځنګ دهیواد دیوې بیلې سوې برخې له بیرته لرلوسره زیاته مینه لري، چي په دې ډول سمندري بندرولري اودهغه له لاري له نورو هیوادوسره بې له دې چي دګاونډیو قلمروته دي اړسي ، دمستقیمي معاملې کولوس وموسي . دده ګاونډیان تل هغه وخت دخپل قلمرو څخه داستفادې اجازه ورکوي، چي په معامله کي ددوی خپله ګټه وي . دغه شان بندربه دوی مستقل کړي، خپل هیواد ته به انکشاف ورکړای سي ، د خپلو کانونو محصولات اونورصادرات به په مستقیم ډول وپلورلای سي اوددغه رازتجارت په دوام سره به وکولای سي، هرڅومره جنګي مواد اونورمالونه چي غواړي یې، وارداودخپلو ګاونډیوله خبرېدو اولاسوهني پرته به خپل ځانونه پیاوړي کړای سي .

افغان واکمنان په هندوستان اودغه راز نورو اروپایي هیوادوکي خپل جاسوسان لري اوهغوی دټولو هغوموضوعګانو په باب، چي پرافغانستان باندي په مستقیمه یاغیرمستقیمه توګه اغېزه ښندي، اطلاعات ورکوي. امیراودهغه صمیمي ملګري چي دنورو ملتونو پرسرواکمني چلوي ، له دغوا طلاعاتو څخه حداکثر ګټه اخلي اوټول هغه څه ښاري چي دبېلابیلو خواګونوترمنځ روان وي . خوله دغوڅومحدودو مقاماتو پرته نورخلك دبهرني نړۍ له خبرونو څخه بندسوي دي. خکه په هیوادکي کومه ورځپاڼه نسته اودنوروهیوادوورځپاڼي اواخبارونه دوی لوستلای نسي. ددوی حکومت هیوادته دبهرنیانو پر راتګ باندي اعتراض کوي اوهیچاته له سوداګروپرته اجازه نه ورکوي . یوازي څومحدود کسان هغه هم دده خپل خلك دامیرلخوا دمخصوصو اجازو له لاري کولای سي ترپولي هاخواتجارتي سفروکړي . نورافغانان له یوه مخه بې له هغومسایلو، چي ددوی په محدوده ساحه کي پېښیږي، دبل هرڅه په باب بې خبره دي.

افغان واکمنان دغه راز دخپل هیواد دکورنیو چاروادارہ دنورو ښاوخوا هیوادوسره له تماس پرته پخپله تنظیموي. هغه برتانوي مامورین چي په ناپامي یانوروعلتونو ترپولي رااوړي ، بندیان کیږي اودامیردحکم تررسېدو پوري ساتل کیږي. له نورو ملتونو سره دخلکو راشه درشه به بې له شکه خلك دتمدن لورته مایل کړي او د نظر پراخوالی به یې اوسنی فناتیك تعصب له منځه یوسي، چي

دنوروټولوخلکو پرضد یې لري اواساسا دهغه لنډ وتنګ ژوند محصول دئ، چي پردوی باندي په زور تپل سوی دئ اوپه عمل کي یې دوی له نوري نړۍ څخه رابېل کړي دي . همداافکاردي چي ددوی دواکمنانو دتجرید سیاست رهبري کوي .څکه دخلکو پرناپوهی اومذهبي افسانو باندي عملي کارکولو دوی ته وس ورکړی دئ، پرهرلورچي یې زړه وي ، کارتري اخلي.

## د اوولسم څپرکي لمنليکونه

( ۱ ) دغلام حيدرخان په نامه په دغه عصر کي موږ دوه تنه مشهور پوځي افسران پيژنو. يو غلام حيدرخان څرخی دئ . چي دعصمت الله خان څرخي زوی او دلښکرو عمومي قوماندان و . دی له اميرعبدالرحمان خان سره د ۱۸۸۰ ع کال په جولای کي پوځای سو او د تخت نيولوپه کار کي يې ډېره مرسته ورسره وکړه . له اميرسره دراولپنډی په سفرکي ملګری و . بل غلام حيدرخان اورکزی دئ . چي دسرهنګ سکندرخان اورکزي زوی و . دی په ۱۸۸۳ ع کال د څرخي غلام حيدرخان پرځای مقرر سو . په زرمت . شينوارو . منګلو او غلجيو په ټکولو کي يې اميرته زيات خدمتونه وکړل . امير دسروزرواو جواهرو مډالونه ورکړل .

زما ګومان دئ . چي د مولف مراد به دلته دا دوهم غلام حيدرخان وي . ( ژباړونکی )

( ۲ ) مولف دده نوم«ی» بللی اوما«ی»توری ورته وڼاکه .

# اتلسم خپرکی

## دکابل پېښورلار

افغانستان ته دننوتلو اووتلو داجازې اخستلو ستونزې ـ دهغه سیمویان چې په مخه راځي ـ رباتونه اودلارې داوږدوخایونه او فاصلې ـ دجلال آباد ښاربیان ـ دازبکانو د «بزبازي» لوبه ـ په جلال آباد اوشاوخواکي دکابل سیند ـ مشك ـ ددربې اهاړ ـ دسفروروستی ورځ.

---

په کابل کي له څوکالو تېرېدلووروسته یوه تجربه راته داوه، چې دراوتلو پروخت مي دیوڅه وړیا احساس کاوه . بیرته مدنیت ته دستنېدلو، دخپلو دوستانواوخپل هیواد دخلکو په منځ کي داوسېدلو فکرپه سري کي دومره تلوسه پیداکړي، چې دتیاري نیولو اوپه لاره کي دوخت تېرولو موده وربانديې ډېره اوږده سي . کله چې څوك په کابل کي وي ،په فکرکي يې دکوراوانګلستان فاصله ببخي زیاته وي او داسې ورته ښکاري لکه دبلې سیارې له مخکې اوخلکوسره چې دچاسروکاروي .که څوك بوديستې (دبوداددین پیرو ـ ژباړونکی ) وي، په اساني سره به احساس کړي، چې له بهرنۍ نړۍ څخه دومره بېل سوی اوټول شیان دومره مختلف دي، چې دعلیحده هستۍ په شان ښکاري.

افغانستان یوداسې هیواددئ، چې ورتګ ورته سخت دئ. نه یوازې په دې دلیل چې دامیرلیکلې اجازه ورته لازمه ده ، بلکې دهندحکومت هم بایداجازه ورکړي . هیڅ اروپایي نسې کولای له اجازې پرته دخیبرله غاښي تېراوترپولې ولوړي اوداکاریوازې دامیردفرمان ترلاسه کول تضمینوي اوان ترهغه وروسته هم له افغان سرحدڅخه دتېرېدواجازه ترهغوپورې نه ورکوله کیږي، چې په یوه ټاکلې ورځ له مسافرسره دبدرګې دبندوبست په باب خبري سوي نه وي . له هیواده راوتل هم مشکل دي. خکه امیرهغوکسانوته په رخصت ورکولو کي محتاط دئ، چې به هیوادکي يې څه موده تېره کړې وي . همدغه سبب و چې ماپرله پسې اته کاله هورې تېرکړل اوسره له دې چې په مکررډول مي درخصت اخیستلو غوښتنه کړې وه . بياهم تل په یوه اوبله پلمه ځنډول کېدلم . کله چې چاته اجازه ورکړه هم سي بياهم پورې درې درې اونۍ ځنډپه کښېوزي . په دغه مـــــوده کي د بارونو له پاره اسونه اود بدرګې لپاره سواره (Cavalry) چې

دسفردحفاظت له امله لازم دي، خيمې، غالى اونورڅه برابريږي. دهرڅه ژرحرکت له پاره ارزو، دخلکو دنن اوسبا مزمن عادت چي ځوك لږ وډېر ورسره عادي کېدلای هم سي ، داټول په ناڅاپي اوځرګندډول له يوراز عصبانيت سره مل سي . خوځرنګه چي ټول شيان وهغه ځاته متوجه وي چي انتظارباسي ، ځکه نوانتظارکافي اندازه اوږدسي .په پای کي هرڅه تيارسي اويوسهار ټول بکسونه اوبارونه دځارويو پرشاټرل سوي ، نوکران پرهغواسونو سپاره سوي چي سپك بارونه پرې باروي اوبارونه خوځېدوته اماده سوي.لويادوه ساعته وروسته سړی پخپله پرآس سپوراوروانيږي.

له کابله تريېښوره که هره ورځ اوږده مزلونه ووهل سي ، داتوروروخو سفردئ خوهغه خلك چي پرلاره معمولا پورته اوکښته سفرکوي ، نوبيادېولسو، دوولسو ورخولارده . که سفرپه دغه اوسني وخت کي وي، نوبيادسپارلی او بار اسونه بايد ښه تکړه وي. ځکه په غروکي مزل وهل اودلارو ډېرين اوزيږ حالت (سړکونه له کابل پرته بل ځای نسته ) داسانوله پاره ډېرستومانوونکي وي. ډېرو اوږدو ورځو په مزلونوکي خوځيني اسونه له ستړياځخه چپه سي او پر لار باندي داسونو دمړه کېدو موارد خوبيخي عام دي.

کله چي دکابل ناوه شاته پرېښودله سي ، نوشاوخوا ورشوډېره ويجاړه ښکاري .له غرونو، گارو اوشګوپرته بل څه نه ليدل کيږي .دسفرپه دوهمه ورځ د «لته بند » ترغاښي اوږي، چي له کابل ځخه په ښه پوره ارتفاع کي پروت اوکابل پخپله دسمندرله سطحي ځخه اووه زره فوټه لوړدئ . نورسفرنوترهغو چي جلال آباد رسيږي ، په غرونو کي دئ .دشپې تېرولوکمپ کليوته نژدې په هغونااوکي وهل کيږي، چي دلېرڅه اوبوله امله يوڅه محدوده مځکه دکرني وړکرزېدلې وي . دباران ډېرکمښت ددې سبب سوی، چي سيمه دي ډېره وچه اوشاوخوا دي په وادي کي غنمې گاري راغونډي سوي وي . دغرونو په بېخ کي حاصلخېزه خاوره جوړه سوې اودکرني وړده . په غرونو کي شنوبوټو اورنو ته هم اړتيا سته . دوريخو اوپرځنګ يې دشبنم نشته والی مځکي ته ديکنواخته رنګ ورکولو سبب سوی دئ . ډېري ښې غرنی ساحې سته، چي ښکلي کېدلای سي خود اتموسفيروچوالي ليري اونږدې غرونو او غونډيو تـه بېخونده رنګ ورکړی



دکابل اوپېښور پرلار کاروانسرای

دیٔ . دورخني مارش په پیل کي دمنظرې یوشانتوب اوترستومانوونکوبرخو تېرېدل سړی بېخي ستخ کړي. ځکه کوم په زړه پوري څه نه وي، چي دسترګیااحساس دي په کم کړه سي اویوازنی غوښتنه داوي چي مزل پای ته ورسیږي اودکمپ وهلو ځای ولټول سي.

له کابله ترجلال آباده، چي دپېښورتقریبا نیمایي دیٔ، معمول تم ځایونه دادي : بتخاك ، دوولس میله ـ بریکاب Barikab ، دودېرش میله ـ جګدلك ، شپاړس میله ـ ګندمك ، اته ویشت میله ـ فتح آباد اتلس میله او جلال اباد نولس میله . دافاصلې ټولي اټکلي دي. ځکه له یوه ځایه بل ځای ته درسېدلو دوخت له مخي اټکل سوي دي . نورځایونه هم سته چي که دشپې لخوالازمه وي ، کمپ پکښې وهل کېدلای سي اوپه دې اړه دې لري، چي څوك غواړي دغه سفرپه څومره ورخووهي .خو که څوك غواړي دهري ورځي مزل یې داسونو او باروړونکو ځارویوله پاره ستومانوونکی نه وي ، نوپورتني تم ځایونه ډېرمناسب دي. لنډ مارشونه په غرنیو برخوکي وي اواسونه پرهواره باندي داوږده مزله په اندازه ستومانه کوي . جلال آباد ته شپږورځنی سفرپرداسي لارودیٔ، چي د غونډیو په بېخ کي جوړي سوي دي اوتقریبا ټوله لارپه ریګواوکوچنیو ډبروکي تېره سوې ده [ وداسونو پښې پکښې ډېري ننوزي. داکاراسونوته سخت او ستومانوونکي وي. چاچي په وچو ریګو کي لږڅه تګ کړی وي، پوهیږي چي داوبو غاړه به داسونود سترګیا اچولو له پاره ډېره خوندوره وي.

زه چي له کابله راوتلم ، واوره اورېده اوتېري دوې ورځي هم اورېدلې أوسمه وغریې ټول پوښلي وو. دتوپان شمال ډېرېدلګېدی . دتوپان ساړه هغه چاته ښه معلومیږي، چي تجربه کړی یې وي .ماوروسته واورېدل، چي په هماغه شپه دوه درې تنه عسکر دشپې په پیره کي دیخنی له لاسه ترمرګه رسېدلي وو اودکابل په سختوژموکي، چي بادپه شدت چلیږي اودشپې لخواساړه مخ پرزیاتېدووي ، دامعمولي پېښې دي.

په واوره کي له څوساعتومزله وروسته چي اندامونه شخ اوحواس د ساړه شمال له امله فلج وو اوپه دې وخت کي مي دواورو په منځ کي دسرای (رباط ) دېوالونه ولیدل ، شکرمي وکیښ اوګله چي وروررسېدو اوله اسونوراکښته سولو،

پوه سوم، چې په ښې لاس کې مې دوېنې جريان ښخې بندسوی واو له څه مودې موښلو وروسته ښيرته سم سو. سرايونه، چې دلارې په اوږدوکې پرتاکلو فاصلو باندې جوړسوي دي ، اصلاً دکاروانونو له پاره دي او دمربع شکل لري چې شاوخوا جګ دېوالونه پرراتاوسوي وي. تردېوال دننه خونې جوړې سوي وي . دخونو مخې ته برنډه وي، چې بده هواکې دشپې لخوا دکاروان بارونه پکښې پراته اودغه راز داوښانو اوباري څارويو له پاره ددرېدلوځای هم وي. دسرای د دروازې دپاسه يوه لوړه خونه وه، چې موږلوموړی شپه پکښې واړول . داخونه دمعتبرو مسافرولپاره جوړه سوې ده اوپه دغه شپه زماپه اختيارکې وه . خودهوساتوب له مخې دومره ويلای سم، چې تربهرپاته کېدوښه وه . کښته خونې چې کوز اوپاس دکاروانونو مسافرپکښې اوسي، تودې وي خوهغه بيا چټلې اوزياتره داسې خلك پکښې اوسي چې دپاك اوستره عادت لرونکو کسانو له پاره مناسب نه وي . داخونه چې مانيولې وه نسبتاً پاکه خوفرش نه وه او داورځای يې هم نه درلود . دلرګيو کړکۍ يې وه چې دڅوکاټ پرشاوخوايې ديوه انچ په اندازه درزونه درلودل .دلرګي اودېوال ترمنځ يې خالي ځايونه جوړسوي وو. پخپله په دېوال کې هم غټ درزونه وو چې غالباً به دزلزلې له امله جوړسوي وو. تردغودرزوبادچلېدی . دبارونو ترراسېدوپورې ماپه برنډه کې اور بل کړ او يواړخ وبل به مې په روڼ سره ورته توداوه . شپه لانه وه خپره سوې، چې دبارونو څاروي راورسېدل اوماوکولای سول چې يوه پياله چای وڅښم .يوياداوه ساعته وروسته ډوډۍ هم برابره سوه . څوك چې ستړي اووږي اوتودوخه هم ترصفرکښته وي، دغه انتظارډېرستومانوونکي تماميږي . ددېوال له درزونو اوکړکۍ څخه سوړشمال لګېدی اوپه دې وخت کې کالي ايستل اوبيدېدل خوترتصوروتلې خبره ده. خکه نومايوازې بوټونه وايستل اوورغزېدلم . څه غالي چې مې درلودې، راباندې وامې چولې . سهار چې راپاځېدم ، ومې ليدل، چې په لګن کې اوبه کرنګ يخې سوي وې اود داوري ګردلې فرش اوبسترپوښلی و.

سهاراسمان شين اوخلانده و.دلمروړانګوته دداورې خلېدلو څوك ډېرنداوه . څه آن وروسته سترګې ورسره عادې سوې. خوبادپخپل ټول شدت چلېدی اوکله چې د «لته بند » غاښې ته وختو، هوادومره سړه وه، چې پر زين باندې ځان تکيه

کېدل سخت و. لاسونه اوپښې موداسې بیده اوبې حسه وو، چې مړو وبېرېدلو یخني یې راځخه یونه سي . خکه نوزه اوبدرگه مې له آسه راکښته اوقدم مووواهه، چې خانونه لږڅه تاوده کړو .اسونه مودماپښېن تردوو بجوپورې خوشې کړي وو . دغابښې پرهابله غاړه له باد څخه یوڅه خوندې وو خو ما فکر کاوه ، چې دساړوله امله پرآس سپارلي لازمي نه ده اوتر « بریکابه » مونوره لار په پښوووهله . دغه کمپ ته دمابښام پرشپږبجې ورسېدم .دورخې اوږده مزله دېرستړی کړی وم . دبارځاروي، چې دېردرانه بارسوي اودغرونو دپاسه پرلنډو لارو باندې په اسونو پسې وي، کمپ ته دشپې ترنهو بجو لاهم نه ورارسېدلي. خکه نوبیادېرناوخته و چې دمابښام دوډۍ برابره سوه. خوپردغه وخت هم ښه وه چې راورسېده .

تر دې وروسته نو ترجلال آباده پورې، چې دغرو هرې لړۍ مورنور هم کښته کولو، هوا ورځ په ورځ تودېده خوتودوخه یې صرف نسبتي وه اوجلال آباد ته چې ورسېدو، لاهم ښه یخ و . دلته مې یوه ورځ تېره کړه اوترخیبرکوتل پورې مې یوه اضافي ورځ بلمه هم درلوده. خکه کوتل دمسافروپرمخ په اوونۍ کې یوازې دوه واره خلاص وي.په دغه ورځ مې ځان دښار اودامیردماڼۍ اوباغچو په کتلو مصروف وساته . دایوکوچنی ښاراوله معمول سره سم دېوال پرې تاوسوی دئ. خودېوال (کلا ) ځای ځای کنډو دئ اوهرڅه دېرویجاړښکاري . زیاتره برخې کنډوالې دي. دښار دصفایي له پاره هڅه نسته .دهرکوراوسېدونکي د خپلې روغتیاساتني له پاره پخپله بندوبست کوي، چې په عمل کې گویاکورټ نسته . خکه هرڅوك دکورکثافات بهرته غورځوي اوکه دسپیو یاکارگانو په واسطه ونه خوړل سي ، همدلته ورستیږي . داوبو یې بدبوی ځې اودحیرانتیا خبره نه ده چې کله کولرا راسي ، دېردوام کوي اوزیات تلفات پېښوي . کولرا ورته له هندوستان څخه دکاروانونو په واسطه انتقالیږي . سړی تعجب کوي، چې ولې ټول خلك نه پکښې تلف کیږي. خوورچ اقلیم اودوامداره شمالونه بې له شکه دښارله روغتیایې حالت سره مرسته کوي اوښایي دکولرا دوامداره پېښېدلو زیاترو خلکوته دناورغۍ په مقابل کې معافیت ورکړي وي .

په جلال آباد کې مې د لومړي ځل له پاره د اوزبکانو یوه لــوبه (بزبازي )

وليدله . دالوبه پراسانو کيږي . لومړی کاردادئ، چي يو اوزګړی ياپسه په داسي حال کي چي اوزبك سپاره شاوخوا پرې راغونډوي په معموله توګه حلالوي . داکارچي سرته ورسېدی، اشاره ورکوله کيږي اوټول سپاره حلال سوي مږه ته، چي پرمخکه پروت وي، هجوم وړي . هرڅاڼه چي په لاس ورغئ، پرزين باندي يې مخي ته ړدي اوپه ټراټ سره خغلي . نورسپاره يې ترهغو تعقيبوي چي دبل يوه لاس وررسيږي اووروسته په عين خغستا کي دجسد د لاس ته راوړولو له پاره مجادله روانه وي . چاته چي په لاس ورسي ،نور يې په نوبت سره تعقيبوي او که حلال سوی مږ پر مخکه ولوېږي، بل سپور يې په تاخته کي حمله کوي . دآس دسورلی يوه پښه اولاس پرآس وي اونورهڅه کوي خان مخکي ته ورسوي .لوبه ترهغو پوري روانه وي چي حيوان اشلې پشلې سي. هغه څوك بريالی وي، چي په پای کي يوه برخه په لاس ورسي اوخوندي يې کړای سي . داسانوسرعت اوچالاکي ددې مانع وي، چي نورکسان يې څني واخلي .

له جلال آباد څخه ترپېښوره پوري معمولاً پنځه ورځي مزل دئ. ګردی کڅ لومړی تم ځای دئ، چي شل ميله کيږي . باسول اتلس ميله ، ډکه دافغان سرحدڅوکی ، شپاړس ميله اولنډي کوتل دخيبرکوتل په پای کي انګرېزي پوسته ، شله ميله . دسفرپه وروستی ورځ له لنډي کوتل څخه دخيبرکوتل له لاري ترجمرود اوړي، دا هغه کلاده چي دهند پرخوا دخيبر دخولې ساتنه کوي ، اوپېښور ته رسيږي .دانوهغه ځای دئ، چي يوواربيا څوك مدنيت ته داخل سي.

له جلال آباد څخه دخيبر ترغرونو پوري مځکه نسبتا اواره ده . اودسفرپه ډېره زياته برخه کي لاردکابل سيند پرغاړه تيرېږي .په دې ځای کي سيند پراخ اوژورنه دئ . که څه هم داوبو جريان دجلال آباد اوپېښور ترمنځ دسطحې دلوړتيا په پرتله چټك دئ . دسند په دغه برخه کي يوشمېر ګرداوونه سته اوهغه چاته ،چي له جريانونو سره ښه بلدنه وي ، په بېړی چلولو کي مشکلات او خطرپېښوي . ويل کيږي چي ګرادوونه زياتره دخيبر غرونو په تنګيوکي واقع وي اودغه ځای دئ چي وايي دجاله وانانو مهارت دناځاپي فاجعو په مخنيوي کي رول لري . څکه دجريان سرعت چاته لږ موقع ورکوي، چي دجلو غلطي تصحيح

کړي.

جلال آباد دافغانستان له هغو محدودو ځايونځخه دئ، چي زياتي وني لري . خنګلونه دښارپه ځوميلي کي واقع دي اوليدل کيږي چي ځيني غونډۍ يې پوښلي وي . چارتراش چي دچنغوزيو يوراز ونه ده .کله چي پرې سي به بدشکل يې ځلور کونجه کوي اولرګي يې سيند ته راشيوه کوي . هورې سره اوډل کيږي او پېښورته دخرځلاو له پاره دسيند له لارې وړل کيږي . يوه لږاندازه يې په هندوستان دخرځلاو لپاره استول کيږي.

پېښور ته زما په يوه سفرکي دجلال آباد والي داميرله حکم سره سم ځو دانې غټ ختکي چي هورې شنه کيږي ، راوليږل. ختکي دومره غټ وو، چي دوه فونټه اورده اويونيم فوټ يې بر (پسور ) و. ماله ځان سره دهغو دوړلو وسيله نه درلوده . داخبره، چي ترواني پورې ورسېده ، هغه سپارښتنه وکړه، چي ختکي دي پېښورته ورسول سي اوهورې دي ورتسليم سي. جاله وانانو راته وويل، چي دوی به له جلال آبادځخه پېښورته په دوولس ساعته کي ورسيږي . دافاصله سل ميله ده اوسړی دجريان سرعت ځني تصورکولای سي.

دسيند اوبه دغرونو دواورو له ويلېدو ځخه منځ ته راځي اوډېري سړې دي. ماته وويل سوه چي که ځوک غواړي ترسيند په لامبوبوزې وزي ، داوبو جريان يې دومره ليري يوسي چي بلې غاړې ته تررسېدو وړاندې يې داوبوسوړوالي بدن ورکنګل اودومره يې بې سيکه کړي، چي نږدې وي ډوب سي . دسيمي خلک چي غواړي ترسيند پورې وزي ، له پړسول سوي مشک ځخه کاراخلي چي هم بدن وچ ساتي اوهم له پښوولاس ځخه دکاراخستلو زمينه برابروي . خو دبدن غړي دومره کرخت اووچ سي چي يوغښتلي سړی به له رود ځخه دپورې وتلو ياپرهابله غاړه باندې ځوميله کښېته کلي ته دتللو له پاره دمشک کارولو توان ولري . ماته وويل سوه چي پرله پسې استعمال يې دلاسواوپښو روماتيزم پېښوي اوداخبره دمنلو وړده .

مشک هغه شی دئ، چي په ټول ختيځ کي دلامبوزنو په واسطه کارول کيږي . هغه دوزې ياپسه له پوست ځخه جوړېږي . پوست صاف اونرموي اوبيايې پړسوي، چي له سر اوپښو پرته نور سم دم هماغه لومړنی حيوان وي . بندونه يې

ورتېري .پوست چي تر هغو وږېروسول سي ، يوه ډېره سپکه بېړۍ څني جوړېږي .
کلېوال خان پرمخي پراچوي، ژورو اوبوته يې وربوري وهي، لاسونه وېښي
نوروي اوپه دې ډول گويا لامبوکوي . هغه کسان چي ماپه سيند کي په همدې
ډول لامبو کي وليدل ، زما داتکل له مخي يې سرعت په ساعت کي لس ميله
کېدی .
جلال آبادته نزدې، چي رود ددوو غونډيو په منځ کي تېرسوی اوسره تنګ
سوی وي ،کلېوال له يوې غاړي بلي غاړي ته دسيند دپاسه پنډه رسی تېروي،
چي يوسراوبل سرېې داوسپنو پرغټو ميلو باندي چي دغونډي په ګارو کي ښخي
سوي وي ، ترل سوی او ددغي رسی په مرسته ، دوی ديوې بدشکله تختې
دپاسه بلي غاړي ته پوري وزي . داتخته له بدشکلوزيږو خادو څخه، چي يوله
بله سره ترل سوي وي ، جوړه سوې ده . پرهغې باندي سپک سپارلي او څاروي
پوري باسي . دغه وطني رسی چي پنډواله يې يوشان نه وي ،له ښکاره وېښتانو
څخه جوړه سوې اودا وبو جريان ورته ښه زيات مقاومت ورکړی وي . زه
ورېږدېدم چي څوك له دغي وارخطايي سره، چي دتېرېدلو په وخت کي
ورپېښېږي ، څرنګه روږديږي .داچي وايي کله کله دغه رسی شلېږي اوله هغه
سره سم فاجعه ناکي نتيجې ترې راوزي ، زمادحيرانتيا سبب نه سو څکه
ډېرمحدود کسان لامبو کولای سي.
دسيمي خلکو يووخت اميرته دسيند دپاسه دپله جوړولو له پاره عرض وکړ
اوده ته يې ډاډ ورکړ، چي ازادتګ وراتګ په ددواړو غاړوکي دخلکو په ګټه
دی اوپله ته سخته اړتياسته . اميرچي له هرهغه ساختمان سره مخالف دی، چي
يووخت به يې دښمن کارځني واخلي، فيصله وکړه، چي هوايي پل دي جوړسي .
خوهغه خلك چي دې کارته يې ګومارلي وو، تر ټول بې تجربې کسان وو اوپرسيند
باندي يې لږکاروکړ. وروسته دامفکوره معطله سوه .
مايووخت اميرته يوه پروژه پېشنهاد کړه، چي له سيند څخه دي دجلال آباد
اوهندوستان ترمنځ دمالونو په انتقال کي کار واخيستل سي .داپروژه بالکل
عملي وه . خکه دسيند په پراخه برخه کي ديوه ژور کانال په کښلو اودغټو ګارو
په ليري غورخولوسره به چي د ګرداوونو اوکښتی چلوني ته د نورو خطرو سبب

کیږي ، هندوستان ته سفرکول اسانه سي اودبخاربېړۍ به دمالونو دوړلوراوړلو له پاره استخدام سي . په اوس وخت کي داکاردخارویو په واسطه سرته رسیږي اوهرکال حکومت ته په ډېره بیه تمامیږي .په کال کي څومیاشتي دجلال آباداوخیبر ترمنځ دکښته سیمي تودوخه اودباري څارویو په منځ کي دمړیني لوړه اندازه دهرڅه دلېږدولو په لارکي خنډ کیږي اوله ډېرو ضروري موادو پرته چي باید په هرقیمت وي ،راوړل سي ، نورڅه ممکن نه وي . امیر په لومړي سرکي ددغي پروژې عملي کېدل ومنل خوورو ورو یې له نظره وغورځوله او د نورو پروژو په شان یې سملاسي تیاري ونښود .

دجلال آباد اوخیبر ترمنځ سیمه ښه سمسوره ده اودسیند پردواړو غاړو باندي ډېرکلي سته خوزیاته اندازه دکرني وړمځکه همداسي شاړه پرته ده . علت یې بې له شکه دادئ، چي هندته یې دخرڅلاو په مقصد دمحصولاتو دانتقال له پاره ارزانه وسایل نسته. څکه نوخلك ترخپل لګښت زیات کېرلو ته زړه نه ښه کوي خاوره یې ډېره حاصلخېزه ده اوزیاتره غلې داني ،مېوې اونور هغه څه، چي دتاوده اقلیم له پاره مناسب وي ، پکښې ښه وده کوي . ددوبي په میاشتوکي یې تودوخه زیاته خودپېښور په شان زیاته نه ده . په هرضورت دومره توده ده، چي دهېواد په دغه سیمه کي سپارلي کول ډېره زیاته تجربه غواړي .زمابه یاد دي، چي یووخت مي په جون کي همدلته سفرکاوه ، خوله مي داسي وچه سوه، چي تالو ته مي دژبي وروړلو جرات له دې ېېري نه کاوه، چي مبادا ورباندي ونه نښلي اوبنده نسي . اوکه هرراز کوهی په مخه راغلی وای ، زه حاضروم اوبه یې وڅښم . له نېکه مرغه په دغه وخت کي کولرا نه وه .زه ترهغوناروغیوچي داوبو څښلو له لاري چاته پېښیږي، له بل هیڅ شي څخه دومره نه ډارېږم . دتودوخي درجه ترخپلي اندازې زیاته خسته کن سي. څکه ګاري دلمر تودوخه جذب کړي اوډېري تودې سي .ددغو ګارو تودوخه چي دلمر له هغې سره یوځای سي نو شاوخوا تنګي درې ددانښ په شان ګرمي کړي . څوك پکښې ترهغو ساه سمه نسي کښلای چي خنې ونه وزي. پرهرهغه چاچي په دغسي سیمه کي سفرکوي ، د اوارو مځکو تودشمال داسي لګېږي «لکه په وچه مځکه کي دغټي ګاري سیوري .»

له کابل څخه تر پېښور پورې لار د پېره لنډه ده او هغو کسانو ته، چې هندوستان ته ځي، ښه بلده لارده . هندوستان ته نورې لارې هم سته او که چاته د هغو لارو فرصت برابر سي، د پېر لږ کسان به حاضر سي، چې د سفر وخت وربانديې تېر کړي .

کله چې په افغاني خاوره کې د سفر وروستۍ ورځ وآخري نقطې ته، چې انګرېزي قلمرو پيل کيږي ، ورسيږي ، د پولې کرښه سمدلاسه څرګنده سي . تر دغه ځايه، چې افغاني واکمني غزېدلې ده ، سړی پرداسې سيمه سفرکوي، چې طبيعت جوړه کړې ده او لارې ګارو او تېرو کې تېره سوې او اسانو ته لازمه ده چې هيسته ودوري خپله لارې کښې ومومي .له دې امله يې پرسم سړک تراوړده مزله زيات ستومانوي . خوله هغه ځايه چې انګرېزي حاکميت پيل کيږي، سم سيده ښوي سړک، چې له خيبره ترلنډې کوتله پورې په غرونو کې لاهم آن تر پېښوره پورې له لوړو ژوروسره سره چاته دومره اسانه سي ، چې ځوک په داپوله فاصله کې د سپيوګاډې په تراټ سره څغلولای سي اوداپول واټن فقط يوځوساعته نيسي، خو د پولې په افغاني برخه کې داوږدو ورځو ستومانوونکې سپرلو غواړي .

---

پای

دجنوري لومړی ۲۰۰۲ کال

دماپښين دوې بجې وپنځلس دقيقې

سکاربورو - ټورنټو

کاناډا

محمد معصوم هوتک

# UNDER
# THE ABSOLUTE AMIR


BY

FRANK A. MARTIN

[illegible] ENGINEER-IN-CHIEF SUCCESSIVELY TO THE AMIRS ABDUR RAHMAN AND HABIBULLAH, AND FOR THE GREATER PART OF THAT PERIOD THE ONLY ENGLISHMAN IN KABUL


*Illustrated by the Author's Drawings and Photographs, and by other Photographs*




LONDON AND NEW YORK
HARPER & BROTHERS
45 ALBEMARLE STREET, W




1907

# UNDER
# THE ABSOLUTE AMIR

By

FRANK A. MARTIN




Translated in Pashto

By

MOHAMMAD MASSOM HOTAK

Toronto
Canada
2002

# Under
# The Absolute Amir

By:
Frank A. Martin

Translated in Pashto
by:

Mohammad Massom Hotak

Designed by: Shafiq



د افغانستان د کلتوري ودې ټولنه ــ جرمني
VEREIN ZUR FORDERUNG DER
AFGHANISCHEN KULTUR E.V
د خپرونو لړ (۵۷)